# پښتو ادب کښې کردارنګاري

د پي ایچ ډي
تحقیقي مقاله

ډاکټر محمد اعظم اعظم

پېش لفظ
پروفیسر محمد نواز طائر

پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي

ACKU

A

# پښتو ادب کښې کردار نګاري

---

ډي ايچ ډي
تحقيقي مقاله

---

ډاکټر محمّد اعظم اعظم

---

پېش لفظ
پروفېسر محمّد نواز طائر

پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي


AFGHANISTAN CENTRE AT KABUL UNIVERSITY
3 ACKU 00033452 3

ټول حقوق په حق د پښتو اکېډيمي محفوظ دي

د پښتو اکېډيمۍ د مطبوعاتو سلسله نمبر ۴۲۳

---

خوروونکی ــــــ ډائرېکټر پښتو اکېډيمي
پېښور يونيورسټي

په مرسته ــــــ اکادمي ادبيات اسلام اباد

چاپ ــــــ اول ځل

کال ــــــ سنه ۱۹۹۳ء

کتابت ــــــ لطف الله سوړيزی پايان

قيمت مجلد ــــــ ۱۶۰/- روپی

سټوډنټس ايډيشن ــــــ ۱۳۰/- روپی

په اهتمام د محمد جاوید خلیل په ملت پرنټرز لاهور کښې
چاپ شو او د پښتو اکېډيمۍ پېښور یونیورسټۍ نه خور شو.

# مننه

موږ د پاکستان اکادمي ادبیات تشکر

کوو چي د دغه اداري په مالي مرسته او

تعاون دا کتاب شائع کړے شو.

# فهرست



ACKU

بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# پیش لفظ

---

ACKU

کردارنګاري د ادب يو ډېر اهم صنف دے - ددنيا د هرې ژبې په ادبياتو کښې دې ته خاص مقام او اهميت حاصل دے - ديوناني ادبياتو په روایاتو کښې چې کردارنګارۍ د قدیمه راسې کوم اهمیت لرلے دے. د هغې اظهار د ارسطو د مشهور کتاب (Poetics) يا "کتاب الشعر" په موضوعاتو کښې څرګند دے -

د انساني فکر د مېښے هدف په خپله د انسان ذات وي. د کردارنګارۍ په ذریعه يو ادیب د هغهٔ شخصیت ، د هغهٔ کړهٔ وړهٔ، ناستې پاستې او د هغهٔ د خصائصو ، خصائلو او خبرو اترو د انداز او مکالمو مناظرو مطالعه هم کوي - د هغهٔ د شخصیت د تجزیې او موازنې سره سره د هغهٔ تشخص هم څرګند ه وي -

د ادب په مختلفو اصنافو کښې ددې قسمه اظهار تبولې ډېر ابې او تول اندازونه د کردارنګارۍ په ذیل کښې راځي دا د اديب او شاعر کمال وي چې هغه په خپل لیک کښې د خپل يو تخليق کړي کرد سروپا او د هغهٔ خصائص او خصائل په داسې فطري او دړهٔ راکښونکي

انداز کښې په ګوته کړي چې هغه پرې د هر جهته او هرې مخې په صحیح توګه من وعن حقیقت ته ورته اولیدے شي - داخصوصیت د ادیب د فني اوستکارۍ او کمال اظهار وي - څومره چې د یو ادیب کومه ادب پاره په دې معیار پوره وي هغه هومره د ادیب د فن خوند او خوبۍ منلے کېږي .

عام لوستونکے د ادب په یوه فن پاره کښې د کردارونو د فطري عمل او تداخل په مناسبت د هغې نه محظوظ کېږي هم او د هغې نه استنباط کوي او تأثر ترې اخلي - ولې یو محقق او تنقید نګار هغې ته په فني نقطهٔ نظر ګوري او د هغې د ښکلا او فني تول پارسنګ سره مخامخ کېږي او هم دغه تول پارسنګ په اصل کښې د یوې ادبي فن پارې د فني ښکلا هغه اړخونه په ګوته کوي کوم چې په دغه فن پاره کښې د کردارنګارۍ د فني خواصو او خوبیانو یا نیمګړتیاؤ په لور راهنمائي کوي. هم د دې مطالعې د مخه د ادبي پنګې هغه موضوعات چې د ادب د دې میدان سره تعلق لري په خپل ادبي حیثیت کښې خلقو ته درمخکښې کېږي او د غسې د هغې مقبولیت او اهمیت په ګوته کولے شي .

په پښتو ادبیاتو کښې هم د قیصو، داستانونو، افسانو، مثنویانو چاربیتو او بدلو او د دې نه پس په جدید ادب کښې د دې په افسانه ناول او ډرامه کښې د کردارنګارۍ روایت د وخت د سره راسې موجود دے - شاعر، ادیب او لیکوال په هر دور کښې د دې فني ضرورت اهمیت محسوس کړے هم دے - او په دې کښې ئې د خپل فکر او خپلې شاهدې جوهر هم ښکاره کړے دے - دغه شان د پښتو په رومانی او رزمیه ادبیاتو

کښې ښهٔ ډېر کردارونه ډېر په ښکلي انداز کښې د زمانو راسې موجود دي.
دقیصو کردارونه خپل حیثیت لري، د رومان او داستان د کردارونو خپل
مقام دے - د بدلې او چاربیتې خپل کردارونه دي او د افسانې ، ناول
او ډرامې دکردارونو خپل خپل معاشرتي حیثیت دے.

کردار نهٔ یواځې پهٔ ادب کښې د معاشرتي ژوند نمائندګي کوي
بلکې دا د تاریخي دورونو او پهٔ هغې کښې پهٔ بیله بیله زمانه کښې د
پېښو شوو واقعاتو سره هم سرې کار لري - دغسې دا کردارونه نهٔ یواځې
د حال نمائندګي کوي بلکې پهٔ دې کښې د ماضي او مستقبل نمائندګان هم
مخې ته راځي او دغسې د ادیب قلم او فکر د ماضي حال او مستقبل کړه
دکردارونو پهٔ ذریعه د یو ژغځیږ پهٔ شکل کښې یو ځائے کوي.

د هرې ادبي فن پارې موضوع خپله وي او د هغې د زمان او مکان
میدان هم خپل وي - ځکه هم د هغې پهٔ حدودو کښې دننه د هغې
کردارونه هم د هغه وخت او هغې ماحول نمائندګي کوي. دغسې مونږ
د دغې کردارونو پهٔ ذریعه د هغې ماحول سره پهٔ ذهني او فکري جوړ
له تړلے کیږو.

دا مطالعه د ادب او تنقید دوارو پهٔ لړ کښې ډېر اهمیت لري. د
پښتو ژبې ستر ادیب او شاعر ښاغلي ډاکټر محمد اعظم اعظم پهٔ خپله
دې مقاله کښې د دې اهمې موضوع تنقیدي او تحقیقي جاج ډېر پهٔ
خوند رنګ محنت او کاوش سره اخستے دے - دا یوه بشپړه مطالعه ده
چې لوستونکے ځان پلوٌ متوجه کوي - د دې نه استاد او طالب علم دواړه
پهٔ یو رنګ مستفید کېدے شي.

موږ د پښتو اکېډېمۍ له خوا داسې هره علمي کارنامه چې هغه د
پښتو ژبې د ترقۍ او ودې په لور د یو قدم حیثیت لري او د علم او
ادب د میدان مستندو ناقدینو د پوهانو د هغې استناد منلې او غوره کړې
وي. د وخت په وخت د شائع کولو او د علم او ادب د میدان مېړنانو ته د
ور رسولو مرام خپل هدف ګرځولې دے. د دغې سلسلې رومبنې چاپ شوې
کتابونه چې پکښې د ډاکټر محمد اقبال نسیم خټک مقاله "خوشحال او جمالیات"
د ډاکټر راج ولي شاه خټک مقاله "پښتو ادبي تحریکونه" د بناغلي شاهجهان
په "پښتو ادب کښې د مېړنو برخه" دي.

او دادے اوس د بناغلي ډاکټر محمد اعظم اعظم مقاله "په پښتو ادب
کښې کردارنګاري" ستاسو د وړاندې ده. په دې تحقیقي مقالو د دې
لیکونکو، محققینو ته د پېښور یونیورسټۍ له خوا د ایم فل او پي ایچ ډي
اعلیٰ سندونه ورکړے شوي دي. او هم دغه د دې مقالو د استناد ښکاره
ثبوت دے.

د پښتو اکېډیمي دا پروګرام به که خیر وي هم دغه شان جاري
وي او هره هغه مقاله چې د هغې ادبي حیثیت د دې جوګه وي چې د
اکېډیمي له خوا دې شائع کړے شي. هغه به په مستقل کښې هم د
مستند د پوهانو د ادبي محاکمې او سنجونې نه پس د هغوئ په منظورۍ
شائع کولے کېږي. د دغې به نه یواځې دا چې پښتو ژبه د علمي او
تحقیقي ذخیرې نه مالامال کولے شي. بلکې د هغو محققینو او ناقدینو
حوصله افزائي به هم کېږي. چا چې په خپلو خپلو موضوعاتو محنت
کړے وي. او پښتو ژبې ته ئې د خپل محنت نتیجه د کومې مستندې

ACKU

علمي او تحقیقي مقالې په شکل کښې وړاندې کړې دي.

زموږ د ښاغلي ډاکټر محمد اعظم اعظم د اعلمي کاوش هم د دغې پروګرام لاندې د پښتو اکېډيمي له خوا شائع کړو. ددې مقالې موضوعات څرګند دي ددې ادبي حیثیت او مقام په خپل ځائ ډېر اهم دے. لوستونکي ددې نه ډېر څه زده کولے شي. دا د پښتو ادب د یو خاص مېدان یو ډېر په زړه پورې جاج دے. زموږ دا یقین دے چې د پښتو ادب ټول شائقین که هغه مبتدیان دي او که استاذان هغوئ ټول به ددې نه په خپل خپل انداز کښې استفاده اوکړي. دا زموږ باور دے چې دا مقاله به په راتلونکي وختونو کښې د حوالې د یو کتاب حیثیت اولري او دغسې به پښتو ویکوالو او د پښتو ژبې د تحقیق او تنقید د مېدان کارکنانو ته ډېرې اسانئ پیدا کړي.

ددې کتاب د اشاعت او طباعت د کار په لړ کښې چې ددې ادارې سره کومو خلقو مرسته او اعانت کړے دے. زه د هغو ټولو مننه کوم بالخصوص د پېښور یونیورسټۍ د موجوده وائس چانسلر ښاغلي ډاکټر فرزند علي دراني او د هغوئ د دستِ راست ملګرو چې پکښې ډاکټر شکیل احمد او ښاغلے رشید احمد صالح په خصوصیت سره قابل ذکر دي. زموږ د ډېرې مننې حقدار دي. زموږ د پښتو شعبې د چېرمین ښاغلي پروفیسر عبدالجبار خلیل هم مننه کوو چې هغوئ د پښتو اکېډیمي په کار کښې بې حده زیاته دلچسپي اخلي او د تعاون او ملګرتیا لاس هر وخت راوړاندې کوي.

متاسفانه دا وئیل ضروري دي چې ددې مقالې املا په زوړ رسم الخط کښې په دې ده چې ددې کتابت د پښتو ژبې د یکلار د هغې فیصلو

نه مخکښې شوے ووچې د ترمیم شده رسم الخط په حقله فیصلې یکښې شوې دي او اوس پرې بنه په باقاعدګۍ سره عمل کولے شي - زموږ دا یقین دے چې دا کتاب به هم په دوېم اشاعت کښې د رسم الخط په دغې بدل شوې انداز کښې اوسکلے شي ولې فی الحال دا هم په دغې ځېل شکل کښې شائع کولے کېږي -

دکتاب د طباعت او اشاعت دپاره ددې مقالې د ترتیب او تدوین په لړ کښې زه د پښتو اکېډیمي دځپلو ټولو ملګرو مننه کوم چې هغوئ په دې علمي کار کښې په ځېل ځېل مقام او ځېل ځېل ځائے بنه پوره په ذمه وارۍ ځېل کار تر سره کړو - او ددوئ په محنت او کوشش سره ددې کتاب د اشاعت او طباعت کار اسان شو -

زه د ملّت پرنټنګ پرېس لاهور هم مننه کوم چې هغوئ زموږ دا کار لکه ځېل یو ذاتي کار اوګڼلو او ددې د اشاعت په لړ کښې ئې د پوره پوره احتیاط نه کار واخستو - زما دا یقین دے چې دوئ به اینده دپاره هم دغې نمونې د کارونو په لړ کښې زموږ سره ننې لاس کوي - او په دې کښې به پوره پوره اخلاص ښایي -

وما علینا الا البلاغ

پروفیسر محمّد نواز طائرؔ
ډائرېکټر پښتو اکېډیمي
پېښور یونیورسټي

# پېژندګلو

زما دپاره دا ډېره د ویاړ خبره ده چه د ښاغلي پروفیسر محمد اعظم اعظم د پي ایچ ډي په هغه مقاله یو څو تکي ولیکم کومه چه "پښتو ادب کښې کردار نګاري" د سرخط لاندې پښتو اکېډمي چاپ کول غواړي - په دې خبره کښې هېڅ شک نشته چه دا دې نه وړاندې په پښتو ادب کښې په کردار نګارۍ څه پښتو یک نهٔ وو - او ددې خبرې ضرورت ځکه وو چه نوؤ لیکوالو ته یوه لاره په ګوته کړې شي چه د هغوئ ادبي سفر به د څهٔ خندره اوکړي لیکه مخ په وړاندې روان وي - ښاغلي اعظم صیب دا ګران کار دومره په ښکلې او سپېڅلي دول تر سره کړو چه هر څوک به ئې ستائي -

د دې نه وړاندې چه په دې مقاله څهٔ اولیکلې شي یو منلې شوې تاریخي حقیقت لوستونکو ته وریادول به بې ځایه نهٔ وي - یو وخت داسې وو چه خلقو به پښتو د دوزخ ژبه بلله - ان تر دې چه خپلو هم کنځله اوړتله - ځکه نو په یوه موقعه ما په اوچت آواز اوویل ـ

ما په پښتو کښې د پښتو غندنه واورېدله
دا ظالمان ئې چه کنځي هم ئې پښتو کښې کنځي

دځنکدن سلګئ وهي نور پښتنې څهٔ پاتې دي
پښتانهٔ ولې داقیدي په زولنو کښې کنځي

رښتیا خودارۍ چه دا تشه شاعري نه وه - ددې پس منظر دا دے چه هر کله د پېښور په یونیورسټۍ کښې دایم فل او پي ایچ ډي دکورسونو فیصله اوشوه نو ما د پښتو ژبې دیو نمائنده په حیث په اکېډمک کونسل او کمیټي فار ایډوانس سټډي اینډ ریسرچ کښې د پښتو دپاره هم دا حق اوغوښتلو- نورخو نور، ځینو پښتنو ددے مطالبے سخت مخالفت اوکړو . ولے دالله پاک فضل وو چه ما د پښتو ژبے دپاره دا بنیادي حق ډېر په خوارۍ بلکه په زور واخستو- په دے لړ کښې ما د ځینې نوکرۍ او چوکۍ هیڅ پروا اونه کړه . دا خبره د څه ذاتي ستائنې دپاره نه یم بلکه ځینو ځوانانو ته هغه ورځې وریادوم چه پښتو خلقو د نورو ژبو سیاله نه شمارله .

د پښتو ژبے طالب علمان د خدائے بخښلي مولانا عبدالقادر صیب احسان په هیڅ توګه هېرولے نه شي ځکه چه هغوئ د خپل ژوند قیمتي حصّه ددے ژبے د پرمخ تګ دپاره وقف کړې وه - دا د هغوئ برکت ، د سردار عبدالرشید خان او میان جعفرشاه مرحوم مدد وو چه په کال ۱۹۵۵ء کښې پښتو اکېډمي جوړه شوه او بیا بیاغلي مولانا عبدالقادر صیب په تش لاس د پښتو شعبه خلاصه کړه - که چرے هغوئ دا کار نه وے کړے نو نن به مونږ دے ځائے ته چرے هم نه وو رسیدلي مولانا صیب په خپل وخت کښې ددے ژبے د ترقۍ دپاره مدافعانه لار خوښه کړې وه او ما جارحانه لار نیولې وه - خو په ما د خدائے پاک فضل او د مولانا صیب د دُعاګانو او لارښودنے اثر وو - نن مونږ په پښتو ژبه کښې څلور کسان د پښتو شعبه په برکت پي ایچ ډي یُو - ددے نه زیاتو کسانو په پښتو ژبه کښې ایم فل کړے دے او د پښتو د ایم اے شمار خو زرګونو ته رسیدلے دے .

یو دا سے وخت هم تېر شوے دے چه زه به خپله په دے ویشا مجبور

شوے دے۔ ¹

هم دے پښتو له بايزيد ه تاريکے جوړ کړے
تر اوسه سپین نهٔ شو لګیا دے نوړ هم توريږی

دده په جرم کښے خوشحال قبر له ځاۓ نهٔ مومنده
دده له تهـــه مولانا په ګوړ کښے هم کړیږی

د بناغلی اعظم دا مقاله په پښتو ادب کښے په کردارنګارئ پوره پوره بحث کوی ـ بنکلی بنکلی مثالونه ئے په مناسب ځاۓ کښے را وړاندے کړی دی او ځاے ځاے ئے ډیر په فنی انداز کښے غور ږن بحث پرے کړے دے ـ هرکله چه ټوک لوستونکے دا کتاب دشروع نه تر آخره پورے په غور سره اولولی نو په دے خبره به داوه شی چه په پښتو ژبه کښے کردارنګاری دشروع نه موجوده خو وه ولے چا په ګوته کړے نهٔ وه ـ دا کار بناغلی اعظم په ډیر دستار کښے اوتړو مبلو ـ

په دے کښے شک نشته چه مونږ ته د پردو ژبونه دکردارونو نومونه اخستل هسے نقل کول دی ځکه چه په پښتو کښے دا تهکی دشروع نه دا روان دی. لکه رقیب ، موذی ، ديار ، تالی څټ ، څپتو ، دوډی غرب ، باتور ، مرسئے تورزن ، ننګيال ، غيرتی ، ډارن ، ناکار ، ناویسا ، ځیګرور ، بریتی ، مکرے ، غلیے توکلی ، پت ، پیغور ، تورسری ، استانه دار ، نر ، نرتوب ، ننواتی ، تیږه تربګنی ، تور ، ننګ اوګودر وغیره ـ

په دے کښے دکردار او تمثیل دواړه اړخونه پورے پريوان موجود دی ـ او

---

¹ مولانا عبدالقادر مرحوم ـ د پښتو اکيډمۍ اولنے ډائرکټر او د پښتو شعبے اولنے صدر

ښاغلی اعظم په ارت مټ او روان قلم په کار راوستی دی .

ښاغلی اعظم چې له مقاله په اتلسو سرخطونو ویشلې ده او د هر سرخط سرخبره ئې په بشپړ ډول کړې ده . په دې لړ کښې د یکوال ژباړ د ستائینې وړ دے . چا چې د دوئ لړه ډیره رهنمائي کړې ده هغوئ هم د شاباسی حق لری . ولې د دے نه زیات د شاباسی حقدار د پېښور پوهنتون رئیس ډاکټر عبدالمتین صیب او د پښتو اکیډیمۍ ډائرکټر پروفیسر محمد نواز طائر دے چې دا قیمتی ملغره ئې د چاپ کولو د پاره د اکادمی ادبیات په تعاون خوښه کړه . زه د پښتو خوانانو نه دا طمع لرم چې هغوئ به د خپلې پښتو سره پښتو اوکړی . او دا غیرتی او علمی ژبه به نوره هم مخ په وړاندې بوزی .

والسلام

پریشان خټک

اسلام آباد

# دسرتوری

د فن او ادب په میدان کښې د کردار نګارۍ اصطلاح ګڼړه معنې او بې شمیره مفاهیم لري. د کردار په تعریف او تعارف باندې خو د دنیا په مختلفو ژبو کښې په تفصیل سره ډیر کال موجود دی ولې د کردار نګارۍ په حقله ځنې بشپړ او جامع تعریف (کم ازکم زما په نظر کښې) لاتر اوسه چورې نه دې را اغلې.

خو د دې حقیقت نه سترګې اړول هم ګران شي چې کردار نګاري د دنیا د هرې ژبې د ادب د هغې اصنافو یو لازمي توکې دې کوم چې په څه نه څه رنګ کښې د قصې عنصر لري. ځکه چې د دنیا هره یوه قصه د "چا" یا "څه" په حقله بیکلې کیدې شي. او د غه "چا" "څوک" یا "څه" په قصه کښې د کردار حیثیت لري. او کردار چې په مرتب او فني شکل کښې په قصه یا ډرامه کښې ځائې کړې شي نو د هغې فني او تکنیکي عمل ته کردار نګاري ویئلې شي.

د ډرامائي او افسانوي ادب بنیاد د هر څه نه زیات په ځلو کردارونو باندې ازه لري. او د موثرې کردار نګارۍ نه بغیر د معیاري قیصې، ډرامې ناول یا افسانې تصور هم کم کیدې شي.

په عالمي ادب کښې د کردار نګارۍ تصور ډیر لرغونې دې او د قدیمې

یوناني ډرامې[۱] تر ټوله اول د ښو او بدو کردارونو په باهمي ښخړې او تصادم باندې ولاړه ښکاري . د یورپ او امریکې د وسطي عهد په ډرامه او فکشن کښې د کردار نګارۍ په عنصر باندې زیات زور اچولې شوې دے - او د دوران صدۍ افسانوي ادب عموماً او ناول بالخصوص هم د ښې کردار نګارۍ په معیار باندې سنجولې شي .

زمونږ د نزدې ماضۍ داستاني ادب هم د کردار نګارۍ د ولقې نه په هیڅ توګه بهر نۀ ښکاري او زمونږ اولسي قصې (چه په پښتو کښې هغه زیاتې په منظوم شکل کښې لیک دي) هم د ښېلو کوتېلو او سپېڅلو کردارونو په حواله ترننه پورې ژوندۍ دي .

د دې تحقیقي مقالې غرض د پښتو د قصصي ادب په مختلفو اصنافو کښې د کردار نګارۍ د عمل سنجونه او پلټنه ده . د دې نه انکار نۀ شي کیدے چه د کردار نګارۍ موضوع په ځنله یوه ډېره ګرانه او ګنجلکه موضوع ده او دا هم یو عجیبه اتفاق دے چه له بده مرغه په دې ډېره اهمه موضوع باندې تر اوسه پورې ما په اردو یا انګرېزۍ ژبه کښې هم د څېنې جدا یا مکمل کتاب درک

---

۱ په فولکلوري قیصو، داستانونو، اساطیرو، جنګنامو کښې هم کردار نګاري اساسي اهمیت لري . د رامائن، مها بهارت، شاهنامې او سکندر نامې وغیره په شان رزمیه نظمونو کښې هم د کردار نګارۍ فن کمال ته رسولې شوې دے. د چینې ژبې په قدیمو ناولونو کښې هم د کردار نګارۍ اهتمام ډېر په فنکارانه انداز کښې موجود دے . په ایسک او سپا کښې زیات زور په کردار نګارۍ دي.

ACKU

او نهٔ لګولے شي (یا زما تر وسه ماله په لاس رانغي) په دغو دواړو ژبو کښې د ډرامې، ناول یا افسانې د فني او تنقیدي بحثونو په حواله د دغو اصنافو سره د تړلې مخصوصې کردارنګارۍ په حقله څو روور مواد خو اړو مرو موجود دي. ولې په پښتو او مکمل شکل کښې د کردارنګارۍ په موضوع یو جدا کتاب ما ته چا هم په ګوته نهٔ کړے شو.

ډیره عجیبه خبره دا هم ده چه د انسائیکلوپیډیا "برطانیکا" او "امریکانا" غونډې سترو او مهمو آثارو کښې هم د کردارنګارۍ په باب له څه نیکل موجود نشته. په داسې حالاتو کښې د څیړنې او تنقید په لاره کښې بې شمیره کړن لیچونه او پیچومي راوړاندې کیدل لازمي خبره ده. خو ددې اوچت غرڅوکے ته د رسیدو په څله کښې ما د ځلې محدودې مطالعې او مشاهدې په ډاګ د ادب د ځنونومورو فاضلانو، نقادانو او محققینو له خوا د ادب د مختلفو اصنافو د باره د معوئ د دمنع کړے شوؤ اصولو په رڼا کښې ځان له یا تګی خوښ کړل.

د تحقیق او څیړنې په لړ کښې د پښتو ژبې د داره قصصي او ډرامائي ادب پلټنه او مطالعه هم زما په وړاندې پرته وه او د ځنو خواخوږو ملګرو او پوهانو مشوره دا وه چه زهٔ دا مقاله د پښتو ادب یو خاص صنف ته رالنډه کړم. دغشان به زما کار آسان شي. خو ما په دې خیال ځل کار ګران کړو او ګرانې ته سے ملا او تړله چه په موجوده ډول کښې به ددې کار اهمیت او افادیت محض په دې وجه هم سیوا وي چه د کردارنګارۍ په حواله به ددې مقالې لوستونکو ته کم از کم دا موقع خو په لاس ورشي چه د پښتو ژبې د زوړ او نوي قصصي او ډرامائي ادب د نمائنده لیکونکو د کردارونو په وسیله د دغو لیکونکو د بنیادي خاکو څخه هم واقف شي. او کیدے شي چه په کتابي شکل کښې دا مقاله

ACKU

دادب د طالبعلمانو او عالمانو دپاره څېړنیزو تحقیقي کارونو دپاره په څه نه څه
دول څه هم مدد کېږه ثابته شي.

د پښتو ژبې او ادب د څېړنې کار په دې هم دروند شي چه زموږ په
لائبرېرو کښې ځنې بنیادي او ډېر اهم کتابونه په لاس نه راځي. د کتابونو او
مجلو د نایابئ په سلسله کښې د دېره یو غونډې د غوښې ذمه وارې مقامي ادارې
ذکو به هم بې ځایه نه وي. دا ډېره د افسوس خبره ده چه د دېره یو د لائبرېرئ
نه د دېره یو د ابتدائي دورې بې شمېره اهم او د تاریخي اهمیت مسودې ورکه
دي. په دغو مسودو کښې بعضې خو بېخي نایابه دي او ځنې ماله د دغو ډېرامو
د بناغلو لیکونکو د ذاتي لائبرېرو نه په لاس راغلې.

د ځېلو هم عصرو لیکوالو ملګرو په لیکونو او فن پارو باندې د تنقیدي
رائې څرګندونه کله کله ډېره ګرانه شي. خو په دې عمل کښې ما تر ځېله وسه
دا خیال ساتلې دې چه نه د چا بې ځایه ستائنه اوشي او نه بې ضرورته
غندنه. له دې کبله په دې مقاله کښې د یو لیکونکي د یک په تنقیدي جاج
کښې د ثبوت دپاره هم د هغهٔ د لیکونو حوالې او نمونې وړاندې شوي دي خو
د دې باوجود هم که څه کمې زیاتې ښکاري نو هغه به محض زما د پوهې او
معلوماتو کمې وي.

په دې مقاله کښې د یو نه زیاته نازکه مرحله ما ته د ځېلو لیکونو
رخصوصاً د تېلي وژن ډرامې په لړ کښې) په سنجونه کښې او په هغو باندې د
تبصرې او د ځېلو ډرامو د کردار نګارئ په حقله د رائې ورکولو په موقع راپېښه
وه. او سره د دې چه په ځېلو ډرامو باندې د بحث په لړ کښې ما زیاته د
ډرامې د فن د پوهانو او د هغو پروډیوسرانو په رائې باندې انحصار کړې ده.

ACKU

چاچه په ټیلي وژن دا ډرامې پېش کړې دي او له ځنې خواځې د پوره پوره ایمان اړئ نه کار اخستې دې - خو که بیا هم زهٔ چرته تېروتې یم نو هم د ځنې خوش فهمئ بخښنه غواړم او هم د غلط فهمئ -

زهٔ د دې مقالې د نګران پروفیسر او خپل خوږ استاد ښاغلي جهانزیب نیاز ډېره ډېره منته کوم چه په هر قدم ئې د زړهٔ له تله زما رهنمائ او حوصله افزائ کړې ده -

زهٔ د سترېکوال فاضل نقاد او محقق ښاغلي قلندر مومند د پېځلو مشوره هم شکر ګزار یم - د دې نه علاوه چه کوم کرانو ملګرو زهٔ د دې مقالې په تیارئ کښې په څهٔ نه څهٔ شکل کښې نمانځلې یم د هغوئ نوم دا دی - ښاغلې محمد انور خان تهاپسته ښاغلې سرفراز خان لائبریرین ، ښاغلې محمد جاوېد خلیل ، ښاغلې ډاکټر اقبال نسیم خټک ، ښاغلې مجیب الله خلیل شعبهٔ مسودات ټیلي وژن سنټر پېښور ښاغلې عمر ناصر پروګرام مینجر پاکستان براډکاسټنګ کارپوریشن پېښور ښاغلې نثار محمد خان پروګرام پروډیوسر پاکستان براډکاسټنګ کارپوریشن پېښور -

محمد اعظم اعظم پښتو شعبه

پېښور یونیورسټي



# کردارنګاري

دادب دهغو اصنافو دپاره کوم چه دقصې عنصر لري دکردارونو وجود یولازمي شے دے . بې له کردارونو دډرامائي اوقصيي ادب هیڅ تصور نه شي کیدے . ځکه چه دقصې، ډرامے یا ناول تعلق په څه نه څه شکل کښې دوګړو سره وي . او دغه وګړي دقصې کردارونه وي .

ددغې کردارونو دفني دغولړے دپاره چه کوم هنرپکاروي شي هغې ته دادب په اصطلاح کښې کردارنګاري (Characterisation) وائي

دنړۍ دادب په تاریخ کښې چه دتنقیدي اصولو کوم اولنے کتاب یادیږي هغه د ارسطوکتاب الشعر (Poetics) یانظمیات دے . کوم چه بیا وروستو تر پیړو پیړو په ختیځ اولوېدیځ کښې دډرامے دفن دپاره دبنیادي اصولو په توګه دستاویز اوګڼلے شو.

دارسطو دنظمیاتو دټولو نه اهمه برخه دټریجیډۍ یا المیے ده او د

---

له دارسطو د (Poetics) یانظمیاتو ددنیا په اکثرو ژبو کښې ترجمے شوے دي . په پښتو کښې هم په روانه صدۍ کښې ددے کتاب دوه ترجمے شوے دي . یوه دمولانا محمد اسرائیل کتاب الشعر اودویمه دقلندر مومند نظمیات .

المیې دپاره چه ارسطو کوم توکي غوره کړي دي هغه دا دي -

(۱) روښداد یا پلاټ (۲) اطوار (کردار)

(۳) ژبه (۴) تأثرات

(۵) آرائش (۶) موسیقي

ارسطو د کردار تعریف دا سے کړے دے -

که[1] د ډرامے د افرادو د عمل یا وینا نه څه اخلاقي مقصد ظاهرېږي نو دے ته په ډرامه کښے د کردار عنصر وائي او که دا مقصد ښه وي نو د کردار مقصد به هم ښهٔ وي -

د ارسطو په خیال په ټریجیډي کښے صرف د هغو خلقو د عمل عکاسي کېږي چه د عامو خلقو نه غوره او بهتر وي - په دے شکل کښے د ارسطو د کردار تصور د ټریجیډي هغه مقصد ترسره کوي چه د دغه اوچتو خصلتونو لرونکي کسان د بدے ورځے نه په امان ساتي - او د هغوئ په وجه په مونږ کښے د ویرے او د رحم جذبات او د هغوئ دپاره همدردي او ښهٔ پس زوئنه راپیدا کېږي - د سیرت یا کردار نګارئ دپاره د ارسطو دوئم شرط د تمیز او مناسبت دے - لکه مړانه او ترټوب یو دا سے مردانه وصف دے چه دا د ښځو سره ترل بے مناسبه ښکاري - او یو اځے د نارینهٔ سره ښهٔ ښکاري - د ارسطو په خیال د غوره کردار نګارئ دپاره دریم شرط په اطوار[2] و کښے د ژوند سره مشابهت دے - ښاغلی قلندر مومند په نظمیات کښے د دے نکتے تشریح دا سے کړے ده چه[3] کردارونه د هم هغسے ونښلے شي لکه

---

[1] نظمیات قلندر مومند ص ۴۶ - ۴۷ [2] بوطیقا عزیز احمد ص ۶۵

[3] نظمیات قلندر مومند ص ۴۸ - ۴۹ -

چه په زړو داستانونو sagas کښے ئے ذکر شوے دے - دمثال په طور ګولئ په خاطر یو طاقتور پهلوان ښودل پکار دی - او ایکیلس به تل یو بهادر او بے حده قهرژن سړے ظاهروے شي -

په تیموتیس ارسطو دا تنقید کړے دے چه دهٔ په څل یو مدحیه نظم کښے یولی سس په ژړا او فریاد ښودلے دے او دا خبره د یولی سس د کردار نه ډیره لرے ده چه هغه به د بښځو غوندے ژړا او ویر کوی -

په کردارنګارئ کښے دارسطو څلورمه او ډیره اهمه نکته داده چه د کردار خصلتونه به د سر نه تر آخره پورے یو رنګ وی او دا خصلتونه به مستقل وی دا سے نه چه یو کردار به اول قهرژن او غصه ناک ښکلے شي او وروستو دِ بیا هغه رحمدله او مینه ناک شي -

یا په سر کښے دے یو کردار توروزن او بهادر وی او په آخر کښے دے هغه بزدل شي - د دوشیدار دیا پلاتی په رنګ ارسطو په کردارنګارئ کښے هم په دے خبره زور اچولے دے چه څنګه به رو داد کښے د شاعر د پاره د واقعاتو په چانړ کښے دا لازمی ده چه هغه یِ د بښتني یا امکاني وی - دغسے په کردارونو کښے هم دا التزام ساتل پکار دی چه د فرد عمل او وینا دِ دغهٔ د سیرت او کردار سره جوړښت او مناسبت لري -.

د تیمیری یا المیئے سره خوا په خوا ارسطو د کامیډی یا طربئے په حقله هم څل څال څرګند کړے دے - دغهٔ په نزد دا د هغو کسانو نقل وی چه د اوسطو خلقو په نسبت خراب او بریوتے وی - خو د کامیډی خراب دارسطو په نزد هغه خراب خلق نهٔ دی چه دخهٔ غلطو یا بدو په وجه ورته دا نوم اخستے شي بلکه محض د څلو خندنو یا خندوونکو طبیعتونو په وجه - داوی

نو بے ضرره دے هغه لوړ اخلاقي مقصد ونه نهٔ ترسره کوي چه د اصلاح یا (Katharsis) عمل ته ځغښتنه کوي.

د ټریجیډي د هیرو (هیرو) په حقله د ارسطو اصول په زړهٔ پورے هم دي او مزوري هم. د ټریجیډي هیرو یو داسے بنده کیدے شي چه نهٔ ډیر نیک سیرته وي نهٔ بدسیرته او د هغه مصیبت د دیوے داسے غلطۍ باعث وي چه هغه د عام انساني سیرت د کوم کمزورۍ نتیجه وي. د کتونکو او لوستونکو د همدردۍ جذبات په دغه په شدت سره را ولاړیږي که چرے د هغه هیرو یو تو مورے فرد او د څه حیثیت څښتن هم وي.

د بنا غلی عزیز احمد په خیال[2] ارسطو چه د هیرو کوم تعریف کړے دے هغه نهٔ یوا ځے په یوناني او د یورپ په کلاسیکي ډرامه حاوي کیږي بلکه په رومانی ډرامه هم. د شکسپیر ټول نو موړی کردارونه لکه هیملټ، میکبیتهـ، لیر او تهیلو په دغه معیار باندے پوره خیژي.

د کردارنګارۍ په حقله د ارسطو د بحث حاصل دا دے چه په ډرامه کښے د ښځو او عورتو سیرتونه ازنستے شي. په سیرتونو کښے د تمیز او تناسب خیال ساتلے شي. د اطوارو د ژوندن سره مناسبت او مشابهت لازمي دے. او د ډرامے عمل دے د سیرت (کردارونو) د ارتقاء قدرتي او منطقي نتیجه وي. په دے شکل ارسطو په ډرامه کښے د غیبي طاقتونو د مداخلت سره تر وسه د ځنډے کولو تاکید کړے دے. په دے عنون بحث کښے د تهولو

---

[1] د پښتو په فولکلوري ادب کښے هیرو ته د قیص "شهزاده" ویلے شي.

[2] تمهید - بوطیقا، عزیز احمد ص ۲۱

نه اهمه نکته دا ده چه د کردار خصلتونه په داول نه تر آخره یو شان او مستقل دی - او دا هغه اصول دی چه ترڅ ورځې پورې پرې زمونږ دږ اماڼ او قصصی ادب د کردار نګارۍ عمارت ولاړ دے -

په انسائیکلو پیډیا امریکانا کښې چه د کردار کوم تعریف شوے دے - په هغې کښې هم د کردار دے خصلت ته اشاره شوے ده -

"While it is doubtless true that the things primarily weight and evaluate in our discussion of moral worths are actions, the actions of an individual do not form a haphazard aggregate of unrelated deeds. There is a certain continuity in a man's acts. Whereby one who knows him is able to predict pretty much what he will do continuity is due to the fact that behind the shifting play of emotions that is to be found in the mental life of every one, there is a background of permanent emotional associations and emotional process which changes very slowly or not at all. This stable background of the moral life is the Character."

1. THE ENCYCLOPAEDIA AMERICANA, VOLUME 6.

ترجمه :-

دا یو منلې شوې حقیقت دې چه کوم څېړونو له موږ د خپلو اخلاقي قدرونو په بحث کښې وزن او اهمیت ورکوو - هغه اعمال دي.

او د یو فرد سیرت د بې ربطه اعمالو بې وقره مجموعه نهٔ وي - د ص فرد په اعمالو کښې د یو خاص قسمه تسلسل موندې شي. هم له دې کبله د یو بنده د خوئ بوئ نه خبر سړے به د دې قسم پیشن ګوئي کولو جوګه وي چه د غه خاص فرد به مخصوصو حالاتو کښې څه قسمه عمل کوي.

(د یو انسان په اعمالو کښې) د تسلسل د دې حقیقت سره اړه لري چه د جذباتو د بدلیدو رابدلیدو د دې عمل سره هر انسان په ذهني توګه مخامخ کیږي - او د دې په شا د مستقلو جذباتي دشتو او جذباتي لړئ یو پس منظر پروت وي - کوم چه یا خو هډو د سره بدلیږي نه او که بدلیږي نو هم ډیر په مزه او استقامت د جذباتي ژوند د استقلال او تړلے پس منظر کردار یللے شي.

د ادب په اصطلاح کښې کردار نګاري هغې فن یا هنر ته وائي کوم چه په یوه قصّه د ناول - ډرامه - داستان) کښې د کردارونو د اعمالو د تهذیب او ترتیب او افرادو د سیرتونو او اطوارو د ذهني او نفسیاتي تنظیم د پاره استعمالیږي.

د شعر او ادب هغه اصناف کوم چه په قصّه بانده اړه لري په هغې کښې د کردارونو وجود لازمي عنصر دے - ځکه چه د قدیم یونان د رزمیه نظمونو نه واخله د یورپ د منځنئ دورے د ډراماتي ادب او د ختیځ او لویدیځ د ټا نوی دورے د داستاني ادب نه د موجوده وخت د ناولونو او افسانو پورے د ادب په دے مختلفو اصنافو کښې چه کومے قیصے راخستے شوي دي هغه یا خو

نیع په نیغه دبنیادمو قصے دی او یا په څه واسطه ددے مزکے د اوسیدونکو انسانانو د ژوند سره تړلے دی. په دغو قیصو کښے چه کوم افراد برخه اخلی هغه ددغو قیصو کرداړونه دی. د قیصو، ناولونو او ډرامو کرداړونه د غوښے او هډوکو جوړ زموږ اوستاسو غونے د ساه بندیان وی هم زموږ په شان د غم اوخوشحالئ، ویرے او همدردئ، مینے او غصے جذبات لری. او دا بیا دلیکونکی د فن کمال وی چه هغه په څومره فطری اوحقیقت ته نزدے پیرایه کښے موږ سره دخپلو کرداړونو پیژندګلو کوی.

دغه کرداړونه چه دخپلے زمانے اوخپل چاپیرچل په سمی به څومره ریښتنی او اثرناک انداز کښے انسانی عقل او جذباتو سره علاقه اوساتی دغه د کردارنګارئ د فن دکمال تخښه او دلیل وی.

دهرے زمانے دادب دهرے څانګے ساهو لیکونکے دخپلو کرد اړونو خالق ګڼلے شی. دکرداړ لیکونکی دکامیابئ ټول داړ مدار په دے خبره دے چه هغه خپل کرداړونه دعمل یا بیان په ذریعه په داسے ډول موږ ته وړاندے کړی چه دهغوئ د سیرتونو څهرے زموږ په ذهن کښے په داسے حقیقی شکل کښے اودیږی چه دهغے نقشونه دائمی او دهغے خاق نهٔ وړاندونکی وی. او ددے دپاره په لیکونکی کښے دمشاهدے، تخلیق اوبیان بے اندازے فطری قوتونه پکاردی.

په قصیعی ادب کښے داسے قیصے هم لیکلے شوی دی چه په هغے کښے مخاطبه بنیادمو ته شوے وی وے بیاهم دهغے کرداړونه بنیادم نهٔ وی لکه په لرغونی ادب کښے د ایسپ فیبلز یا کلیله دمنه قیصے چه په هغے کښے د اخلاقی درس دپاره ټولے قیصے د څناورو سره تړلے شوی دی.

دغه قسم له کردارونو ته موږ دکردارنګارئ په لمن کښے ځائے نهٔ شو ورکولے ځکه چه دیو غیر مخلوق دنفسیاتو اوخصلتونوحقیقي مصوري دانسان دطاقت نه بهر خبره ده - کردارنګاري یو داسے فطري عمل دے چه په دے کښے دتخلیق کوونکي خپل شخصیت اوذات هم ورک شي - یو انسان په خپله په خپل ځان باندے په حقیقي معنو کښے محض دیو بل انسان جذباتي اونفسیاتي کیفیت طاري کولے شي - هغه انسان کوم چه هغهٔ په حقیقي ژوند کښے د نزدے نه لیدلے کتلے وي ځکه نو هغه دتمیل په سترګه هغهٔ له دکردار په شکل کښے سر دوباره ژوند ورکړي - هغه ژوند کوم چه دعام انساني مشاهدے دسترګو نه فنا وي خو دلیکونکي دفن اعجاز ئے په داسے پیرایه کښے پیش کړي چه د هغه کردار ظاهر او باطن دواړه اړخه په برانستي شکل کښے موږ ته ځرګند شي - او دا هغه عمل دے دکوم له مخه چه یو نقاد بناغلے اې - ایم - فارسټر د تاریخ نه فکشن زیات دښتیني ګڼړي - بناغلے فارسټر په ناول کښے دکردارنګارئ په ضمن کښے لیکي چه[1] په عام او حقیقي ژوند کښے زموږ دیو بل سره پیژندګلي که څه هم ورته شي وے هغه اوږه او رسمي وي - وے دناول دګرو دکردارونو سرتو نه دمعنوي نیکئ اوبدئ ، جذبات او احساسات اودمعنوي باطني دنیا په خپل حقیقي شکل کښے زموږ دسترګو وړاندے راشي -"

---

1. ASPECTS OF THE NOVEL *(E.M. Forster)* Page 69-70.

# کودارنګاري او زموږ د ادب اصناف

په موجوده دوره کښې زموږ په ادب کښې د قیصې سره تړلې اصناف ډرامه، ناول او لنډه افسانه دي - د دې نه اګاهو چه زموږ د قیصو د پاره کوم صنفونه مخصوص وو په هغو کښې هغه داستانونه او علمي رومانونه شامل دي چه اکثر د نظم په جامه کښې لیک دي - په دغو منظومو داستانونو یا رومانی طرز مثنویانو او بدلو کښې ځنې خو د بهرنو ژبو د اکثر د فارسۍ، هندۍ او عربۍ، ترجمې دي ځنې پکښې طبع زاد هم دي کوم چه د دې پیښې او چاپیریال د اولسي ژوند، تهذیب او ثقافت سره علاقه لري - په بهرنو ترجمو کښې هم په اکثرو ځایونو کښې په پلاټ او کردارونو کښې زموږ قصه ګو یو د ځپله اړخه ډیر اړلون بدلون کړے دے - خو د اصل او نقل عمومي مزاج په دواړو ځایه یو شان دے.

د داستاني طرز قصو (ترجمو) د واقعاتو او پلاټ په شان د دغو کردارونه هم د عقل نه خلاف او د فطرت نه بالا ځینونه دي - او د دوئ په سیرتونو او کارنامو کښې ډیکونکو اکثر د دومره مبالغې نه کار اخستے وي چه د غه کردارونه تش د قومونو ترحده زموږ د مزکے او سیمو ونکي ښکاري - د دغو رومانی داستانونو هیرو کله خو د فردوسي رستم داستان شي چه هغه د مزکے په سر د ص لوئے نه لوئے طاقت د پنجه اچولے شي او په هره مقابله کښې د هغه بریالي کیدل لازمي خبره وي او یا د الف لیلې په ماڼو کښې او سیدونکي

---

ئه منش کرده ام رستم داستان
وگر نه یلے بود درسیستان
(فردوسي)

ناروئی شهزادګان چه د هغوئ د هر ارمان د پوره کېدو د پاره د الله دین چراغ د چل چادو کمالات ښائي -

د پریانو، دېوانو، ښاپیرو او شهزادګانو د دغه طلسمي او روماني دنیا سره خوا په خوا پښتنو قصه ویونکو په چېلو ملي رومانونو کښې داسې مثالي کردارونه هم تخلیق کړي دي چه د هغوئ د وجود ذرې د حقیقي ژوند په مزکه کښې مثال شوې دې او د هغوئ د تنو جرړې هم د دې مزکې په خاوره کښې خورې شوي دي. و دې بیا هم د دغو کردارونو په جوړښت کښې د هغه فني هنرمندۍ او استکارۍ برلاسې په ډېرو کمو موقعو په نظر راځي کوم چه د موجوده دور د قصه ګوئي او ډرامې د کردارنګارۍ وصف ګڼلې شي -

د موجوده دور د قیصې سره تړلې اصناف ناول، افسانه او ډرامه هم د چېلو فني او تکنیکي اوصافو او خصوصیاتو له کبله د یو بل نه بېخي جدا جدا تمیزونه دي - له دې وجې د اټول اصناف د کردارنګارۍ د څنو بنیادي او مشترکه شرطونو او لوازمو باوجود هم په ډېرو تمیزونو کښې د یو بل سره ښکاره فرق او اختلاف لري -

څله د کردارنګارۍ له رویه د دې درېو وارو صنفونو تفصیل جدا جدا وړکولې شي - خو د هغې نه وړاندې د کردارونو د قسمونو او ویش په حقله د هغې بنیادي اصولو تذکره به بې ځایه نه وي کوم چه د کردارنګارۍ په مناسبت نزدې نزدې د ادب په دغې ټولو صنفونو په یو شان حاوي کېږي او د کردارنګارۍ په فن کښې د قدر مشترک حیثیت لري -

## حقیقت نګاري

د ډرامې، ناول او افسانې مستند و نقادانو په یوه خوله د کردارنګارۍ د پاره اولنی شرط دا ټاکلی دې چه

ACKU

کردارونه دِ ربښتینې ښکارې او دحقیقي ژوند سره دِ کلکه او ټخه رشته لري. د کردارونو په اوصافو او خصلتونو کښې که هر څومره ځېل انفرادیت او ځانله والے موجود وي خو په عمومي ډول دوئ د خامو ښیادمو په شان ښکارې - او د دوئ دکړو وړو، لهجې او دودونو نه دِ دا څرګندیږي چه دوئ ټول هم د هغه زمانے او چاپیرچل مخلوق دے دکومے زمانے او کوم چاپیرچل سره چه دغه واقعات او پیښے تعلق لري -

په کردارونو باندے دلوستونکو (اوکتونکو) دا یاور لازمي حیثیت لري چه دغه کردارونه د روان ژوند ژوندئ نمونے وړاندےکوي او د کردارونو لوستونکي دِ د دوئ سره هم هغه قسم مینه اوکرکه ساتي کومه چه دوئ په عام ژوند کښے د ځېلو لید لوکتلو خلقو سره ساتي - د بناغلي ای ایم فارسټر په خیال ″ زمونږ ژوند د دوو ژوندونو نه جوړ دے - یو ژوند د وخت او زمانے په حساب اوبل ژوند د څهٔ مخصوصو اقدارو په حساب .″ د عنوره ناول نویسئ په لړ کښے ښاغلي فارسټر دویم قسم ژوند له په وړومبني فوقیت ورکړے دے .

د دے مطلب دا شو چه د یو ناول ادبي اهمیت د هغے د کردارونو په ځنو بشري اوصافو، خوبو او خامو او د اولسي او معاشرتي ژوند په حقله دهغوئ په رویو باندے اړه لري - او په ادبي اصطلاح کښے هم د هغے ځېنے ته کردارنګاري ویلے شي .

په ډرامه کښے د کردار نګارئ په موضوع په ځېله یو ه تجزیه کښے ښاغلي عشرت رحماني د حقیقت نګارئ په عنصر باندے ځېل خیال داسے څرګند کړے دے .

ډیوې ډرامې افراد دمغې دموضوع او پلاټ په سمې ددې دنیا
ژوندے مخلوق وي . ددے نظرے له مخه دسیرت نګارۍ فرض ترسره کول
ډیر آسان شي - ډرامه نګار ددے مخلوق خالق مطلق وي او هغهٔ ته دخپل
هر یو غړي (کردار) دسیرت او شخصیت پوره پوره اندازه وي او که هغه په دوی
کښې دمرتن دنفسیاتي تجربے کولو نه پس په خپل ذهن کښې جوړ کړے سیرت په
موزونو او مناسبو ټکو کښې وړاندے کړے او دهغوئ دباطني کیفیاتو او جذباتو
دځائے او موقع په مناسبت په ټاکلی شوی انداز کښې دڅرګندولو توان لري نو
یقیني ده چه دغه ډرامه نګار دکردارنګارۍ او سیرت نګارۍ په فن کښې کامیاب
دے ."

په ناول کښې دژوند او کردارونو دپوخ ترون او په تفصیلي شکل کښې
دژوند دمختلفو واقعاتو او چاپیرچلونو په حواله دکردارونو دفکري ارتقاء
دپاره دنورو اضافو په نسبت نور هم ګنجائش شته - ژوند چه څومره
ساده او پره ښکاري دومره ګنجلک او پیچیده هم دے او دتاؤ راتاؤ پیچیده
ژوند ګړئ په ګړئ بدلیدونکي شکلونه او حالتونه دبنیادمو په سوچونو
عملونو او رویو باندے هم خپل اثرات او نقشونه جوړوي - او دناول
کردارونه دغه ټولو تجربو څخه تیریږي او دهغې نه اثر اخلي کوم چه
دناول په خوره وره او ویره دنیا کښې مخ ته راځي .

په ناول کښې دکردارونو دژوند سره ددغه پوخ ترون په حقله

---

ؔ اردو ډراما تاریخ وتنقید، عشرت رحماني، ترجمه ص ۳۴ - ۳۵

ACKU

د پولینډ او سپیدو نکی او د انګریزی ژبې لیکونکی بناغلی جوزف کانریډ خپل تأثرات داسې ښکاره کړی دی . چه (Joseph Conrad)

د ناول نه زیات بل څه کیدے شی چه د هغې په وسیله مونږ ته د نوښو بنیادمو په وجود او هستئ یقین راځی او په دغه یقین کښې دومره تاثیر او شدت وی چه د تخیلی جامے درکولو نه پس هغه د حقیقت نه هم زیات څرګند شی ."[1]

د کردار نګارئ سره د حقیقی ژوند د رشتې او تړون په باره کښې افسانه هم هغه شرطونه پړدی کوم چه د ډرامے او ناول د پاره لازمی ګڼړے شی ځکه چه ناول او افسانه دواړه په خصوصیت سره د انسانی تهذیب او تمدن د هغې دوړ ے پیداوار دے کومه چه د عقلی او شعوری دور په نامه یادیږی شی. دا دے دواړو صنفونو شوړو په تسلیمه دنیا کښې شوے ده د فکشن (Fiction) ارتقاء چه په کومو حالاتو کښې شوے ده . هغه په یورپ او امریکه کښې د علمی ، فکری ، سائینسی او صنعتی ترقئ د تحولو نه روښانه دور یادیږی.

د افسانې د کردارونو او ژوند د مخت تړون په حقله بناغلی وقار عظیم لیکی چه .

"افسانه لیکونکی له پکار دی چه هغه د خپلے مشاهدے په قوت د یو سړی د خیالاتو د هغې د تحریکاتو او مخصوصو رجحاناتو د درک لګولو جوګه وی . د دے د پاره چه هغه په خپلو کردارونو کښې روح واچوی او د زیاتو نه زیات ...

---

[1] په حواله د ناول کی تاریخ او تنقید ، علی عباس حسینی ، ترجمه ص ۵۲

[2] فن افسانه نګاری ، سید وقار عظیم ، ترجمه . ص ۱۳۰ .

د ژوند سره ور بحث کړی ـ پکار دی چه د هغه هره خبره د حقیقت په رنګ کښې نغښته وی ـ ـ ـ ـ او د حقیقت سره د دې نږدې تړون باوجود دې هم افسانه ځکه چه د تخیل په مدد په کردار کښې څه داسې خبره پیدا کړی چه په هغې کښې یو ځانله والے، خاص والے او د نورو دپاره د دلچسپئ سامان هم وی."

د غه اصول د ناول په ضمن کښې هم وضع کړے شوے دے. ناول په حقیقت کښې د زوړ طرز د داستانی رنګ د غیر فطری قسم تیمس دواقعاتـــو موضوعاتو او کردارونو خلاف یو منظم او شعوری بغاوت کړے دے او افسانه په دے لړ کښې د ناول پامته داره او په یو شکل کښې (Biproduct) حسابږی.

د ناول کردارونه هم اګرچه د دوان ژوند نه اخستې شوی او په هغې باندے بناء شوی وی ـ ولے د کردار ژوند د عموی (حقیقی) ژوند نه لږ جدا او په بیل رنګ وی ـ د ناول لیـــکونکی کار د یو مورخ په شان نهٔ وی چه هغه د د یو فرد په حقله تش تاریخی حالات او واقعات راغونډ وی او هغه شائن دِ ئے بیانوی څنګه چه وی. ناول لیکل په بنیادی توګه یو تخلیقی کار وی ـ د دے لیـــکونکے د ژوند و حقیقتونو داورو سره د خپل تخیل د ماڼګے کړوڼ هم کوی ـ او هم د غه د تخیّل ماڼګه کردار له یو نوے ژوند او نوے رنګ ورکوی ـ

" حقیقت دا دے چه د ناول ژوند ز موږ د ژوند نه مختلف وی. ناول لیکونکے د یو الهامی کیفیت په اثر کښې یوه نوے دنیا رغوی او د دغې دنیا خلق

---

له ناول کیا ہے، ڈاکٹر محمد حسن فاروقی

ډاکټر نورالحسن هاشمی ترجمه ص ۲۷

چه څومره زمونږ د ژوند سره بوربنت او سمون خوري هومره غوره ده - خو صفوئ ته مونږ د ژوند نه ډیر بالاتخیلي ژوند غړي جوړیدل هم ضروري دي - د ناول د کردار پیدا ونبت او د دغه کردار هر فعل ډیر زړه پورے او خوندوره وی پکار دے - او په هغه کښے دے د عامو بنیادمو نه ځان له یو جدا روح وی".

## کرداری تسلسل

د دې اړے په بابت کښے چه ارسطو د تریجډي دپاره د سیرت نګارئ کوم اصول غوره کړی دی په هغو کښے یو داهم دے چه کردار به د خپل بنیادی فطرت نه خلاف څه عمل او خبره نۀ کوی - که په هنګامی حالتونو کښے په کردار کښے څه ادلون بدلون راشی هغه بیله خبره ده خو په عمومی ډول به په کردار کښے د خپل فطرت او مزاج مطابق یو روان تسلسل موجود وی -

دغه اصول د موجوده دور اے په کردار نګارئ هم حاوی کیږی او په ناول کښے هم تر ډیره حده د دغه اصول خیال ساتلے شی - هر څو که د ناول په خوره وره او بشپړه لمن کښے دومره ځائے وی چه کردارونه پکښے د مختلفو حالاتو او واقعاتو په مناسبت په ارتقائی مدارجو راتیریدے شی خو د غوره کردار نګارئ معیار دیکونکی نه دا غوښتنه کوی چه په دغه حالت کښے به هم د کردار هر فعل او عمل د هغهٔ د فطرت او مزاج سره سمون خوری۔

د ناول د فن په لړ کښے ډاکټر سهیل بخاری د خپلے مطالعے په رڼا کښے د ژوندو کردارونو ذکر دا سے کوی -

"ژوندی کردارونه هغه وی چه هغوئ ځینے جوت جسمانی خصوصیات لری

---

ﻟﻪ ناول کا فن ، ډاکټر سهیل بخاری ترجمه ص ۲۸

چه دبیان په لوستونکو زمونږ په زړونو کښې مختلف قسم جذبات راوپاریږی - دغو کردارونو داخلی او خارجی ژوند په ښیلو کښې سره په شخړه وی او دغوئ دا اختیار لری - چه په دغه شخړه کښې ځان له دعمل دپوی لارې چارې او انتخاب اوکړی - او پکار دی چه ددغه انتخاب نتیجې دغو دفطرت سره سمون خوری - کوم کردارونه چه ددغو خصوصیاتو نه عاری وی نو هغه به بې حسه او ناقصه کردارونه وی - "

دبنا غلی سهیل بخاری دمقالې په دې اقتباس کښې دژوندو کردارونو په حقله دنورڅه نه علاوه دکردارونو دفطرت او دهغې دتسلسل مذکورشوی دې - دډرامې او ناول په شان دافسانې فن هم دکردار نګارئ ددغې اصول بندیز لازمی ګڼړی او په لنډه افسانه (Short Story) کښې خو دنورو په نسبت دتسلسل ددې توکی اهمیت او ضرورت نور هم سیوا شی ځکه چه دغه کرداری تسلسل دافسانې دتاثر اکائی (Unity of Impression) ته بخښنه کوی -

په دې لړ کښې داخبره هم دتوجه وړده چه که په یوه قصه رناول یا ډرامه) کښې په یو کردار کښې اروڅرو په یو خاص وخت څه تبدیلی راتلونکی وی نو ددغه تبدیلئ دپاره به لیکونکې هغه وجوهات او محرکات په ګوته کوی چه ددغه تبدیلئ دراوستو یا په نورو ټکو کښې دکرداری تسلسل دماتولو موجب ګیږی - او دغه وجوهات به دومره مدلل او تللی وی چه دلوستونکو رپاکتونکو) پوره پوره سود او تسله پرې اوشی - دکرداری تسلسل داکلیه اګرچه په عام ژوند او عامو خلقو باندې دحاوی کیدو په وخت څه عجیبه غوندې ښکاری خو لکه چه مونږ ته ښکاره ده دکردارونو ژوند دعام وګړی دژوند نه څه نه څه

په بل شان وي ۔ په عمومي ژوند کښې یو صادق او رښتونے بنده مصلحتاً دروغ هم وائي یا د یو رحمدله انسان د لاسه کله کله د خپل غرض په لړ کښې زیاتے او بے انصافي هم اوشي ۔ یا خود غرضه سړے په څینو ځایونو کښې د اخلاص او محبت نمونے هم وړاندے کړي ۔ خو دغه عملونه که هر څو زمونږ د پاره حیرانوونکي وي ولے بیا هم پرے باور پوخ وي ځکه چه د سترګو وړاندے کیږي ۔ خو قیصو (Fiction) په نړئ کښې دا قسم له سوچ مونږ ته ډیر ګران پریوځي ۔

هم دغه خبره د لنډے افسانے د مطالعے په موضوع باندے د انګریزئ ژبے په یو کتاب کښې په ډیر ښائسته ډول شوے ده ۔

1. "The matter of consistency is one of the important respects in which fiction differs from life. In life we have all met people who do certain unexpected things at unexpected times.....

We have come to accept such inconsistency in life because we tend to accept that we actually see. But we are unwilling to accept the same thing in fiction. If a person in story is established as a selfish person, we expect him to act selfishly throughout the story. We expect characters in fiction to be consistent.

---

1. STUDIES IN THE SHORT STORY by Adrianh. Jaffe and Virgilscott Page 10.

ACKU

ترجمه :-

کوم ځینو نه چه دحقیقي ډونډ او افسانې تر مینځه کربنه راکاږي په مغو کښې دتسلسل مسئله ډیره اهمیت لري - په عام ډول کښې زمونږ دسترګو نه ډیر داسې کسان تیریږي چه دمغوی نه په غیر متوقع وختونو کښې غیر متوقع کارونه کیږي - په عام ډول کښې مونږ دا قسمه بې قاعدګۍ او خلاف توقع ځینو مثلو ته تیار یو ځکه چه انسان په هر هغه ځیز باندې باورکوي څه چه په خپلو سترګو وینې او کوري خود افسانو په دنیا کښې دغه قسمه بې قاعدګیو مثلو ته مونږ جوړ نه یو - که په یوه قصه کښې یو بنده یو ځلي خود غرضه اوښکلي شي نو تر آخره به مونږ دهغه نه دخود غرضۍ دچارو په طمع یو (ځکه چه) په افسانو کښې مونږ دکردارونو نه دتسلسل طمع لرو -

## دکردارونو قسمونه

دویش په توګه نقادانو دکردارونو دوه غټ قسمونه ښودلي دي - یو جامد (Still / Stock) یا ساده (Flat) کردارونه او دویم متحرک ارتقا پذیر یا غوښن (Round) کردارونه. داول قسم کردارونه هغه دي چه داول نه تر آخره پورې په قیصه کښې په یو شان او یو ټیپ روان وي او هیڅ قسمه تبدیلي پکښې نه راځي - یا داسې هم کیدې شي چه لیکونکي په هغه حالت کښې زمونږ سره مخامخ کړي وي - چه کله په دې کردارونو باندې انقلاب چل اثر کړې وي او دارتقا یو خاص حالت ته رسیدلي وي -

ساده یا جامد کردارونه عموماً دلنډې افسانې دپاره موزون وي خو په ډرامه او ناول کښې هم ددې کردارونو استعمال عام دے. متحرک (Round)

ACKU

یا ارتقا پذیر کردارونه دوخت د تیریدو، د واقعاتو بدلیدو او د حالاتو د اړوګرځ سره بدلیږي را بدلیږي او کله کله خو د قیصې په آخر کښې بیخي بدل شي - خو په کردار کښې د تبدیلۍ دا عمل ورو په ورو، په مزه مزه او په مختلفو ارتقائي مدرجو باندې د تیریدو نه پس پکار دے. دا عمل چه څومره فطري وي دومره ذهن او زړه ته پرېوځي او ددے دپاره څه معقول وجه یا وجوهات ښودل هم ډیر ضروري دي. په عام ژوند کښې هم د بنیادم د فطرت یا سیرت د یو خاص اړخ د تبدیلۍ دپاره څه معقول او مناسب جواز پکار وي - دغه جواز ورو ورو د بنده په تحت الشعور کښې ځائے اونیسي تر دے چه یو داسے مقام ته خبره را اورسي چرته چه تبدیلي لازمه شي.

## TYPE مثالي کردارونه

دا په یو طرز په کوټلي شکل کښې جامد یا (Still) کردارونه وي چه د یو مخصوص قسم فطرت نمائندګي کوي او ددغے کردارونو د نامو د آوریدو سره سم د بنده په ذهن کښې د هغو نمونے جوړے شي.

ددے طرز کردارونه د نیکۍ او شرافت، طاقت او لوئۍ یا د بدۍ او شیطانت او غورزیدلو اوصافو انتهائي او مجسمے ماډلے وي. لکه زمونږ په روایتي داستانونو او ملي رومانونو کښې د هیرو یا ویلن کردارونه - ددے طرز کردارونه عموماً د مهماتي یا جاسوسي قیصو دپاره مخصوص وي - زمونږ د اخلاقي او اصلاحي قسم ناولونو او افسانو سره هم ددے طرز د کردارونو نه یکیدلے دے. لکه د نولسمے صدۍ په آخر کښې د نقش نګین دا صغرئ خانم کردار یا د روانے صدۍ په شورو کښې د بناغلي راحت زاخیلي د افسانو اکثر کردارونه.

زمونږ په ډراماټي ادب کښې هم د مثالي کردارونو بے شمیره مثالونه

مونده شي ـ لکه د ویتوجام کښې د فساد میرخان ، قارون سیټھ اونیک عالــــم کردارونه

## انفرادي کردارونه INDIVIDUAL

په کرداري افسانو کښې عموماً د افسانے پلاټ دیو مخصوص کردار نه چاپیره چورلیږي او ټول واقعات د دغه کردار د فطرت دیو خاص اړخ یا څو اړخونو په حواله په وړاندے روان وي ـ

د مثالي یا جامدو کردارونو د دغه انتهائي قسم چه د زمانے او چاپیرچل تبدیلئ بره هیڅ اثر نهٔ غورزوي اکثرو نقادانو غند نه کړے ده او دا رنګ خصلتونو او فطرتونو ته ئے غیر انساني وئیلي دي ـ

> "We can not accept these characters because they are too good (or too bad) to be true. In other words they are not human. Which is why good writers are careful to present rounded rather than flat characters that is to give their "good" characters, some faults, their bad characters some virtues. This is why we make the generalization that before a character in a story can afford to be any thing else, he must be a human being. What we are saying here is essentially what Chekhove meant when he said that it was the job of a writer neither to hate nor to love any character in a story but only to understand him."

1. STUDIES IN THE SHORT STORY. *cJaffe* and *Scott:* Page: 12.

ترجمه :-

" دا قسم له کردارونه نمونې زړونو ته په دې نهٔ پرېوزي
چه دوئ دومره ښه (یا دومره خراب) ښکلې شوی وي چه دحقیقت
نه ډیر لرې ښکاری - په نوړو ټکو کښې دښیادمو ګمان پرې نهٔ
کیږي - هم له دغې وجې ښه یوکوال دجامدو (هوارو) کردارونو
په ځائې عونو (متحرک) کردارونه وړاندې کوي - دهغوئ د
نیکو او اشرافو کردارونو سره څهٔ خامئ هم تړلې وي او د هغوئ
دبد انو کردارونو په برخه څهٔ خوبئ هم رسیدلې وي. هم له دغې
انده مونږ په قصّه کښې دکردارونو په حقله ددې کلیئ قائله
یوُ چه هغوئ دِ پرته له هر څه انسانان وي - په دې غرض مونږ
دِ مخوف دهغې وینا تائید کوُ چه دیو لیکونکی کار دخپل
کردار سره کرکه یا مینه نه بلکه دهغه پیش ندکلی ده -"

خو ددې بنیادی صداقت باوجود هم دقصې (Fiction) په دنیا
کښې داسې لوړ خیالی لیکوال هم تیر شوی دی چه هغوئ ساده او مثالی
کردارونه پیش کړی دی - وئې بیا هم دغه کردارونه لافانی کردارونه
دی او د کردار نګارئ دفن او چتې او نادرې نمونې دی - خو په هوارو
او ساده قسم کردارونو کښې دساه اچولو دپاره داعلیٰ فکر او لوړ تخیّل

1. ASPECTS OF THE NOVEL cc *E.M. Forster* Page: 76.

ACKU

ماهر تخلیق کار هم پکار دی . ځکه چه دساده اوبو ابخیزو کردارونو سره داولس دخوښئ او دلچسپئ د قائمئ ساتلو دپاره ستر پیکوال دخپلو نورو غیر معمولی صلاحیتونو نه کار اخلی او د قیصې (یا ډرامې) په واقعاتو او عمل کښې دتخیل دامسالیه ورګډه کړی چه دیکوونکی اولوستونکی ترمینځه فاصله کمه شی او د دوارو مقصد ترسره شی .

دانګریزی ادب نقاد ای ایم فارسټر دناول په فن باندې دبحث په دوران کښې په دې حقله دانګریزئ ژبې دنومورې ناول نګار چارلس ډکنس دمثالی کردارنګارئ ذکر کړې دې او داحقیقت ئې واګېز کړې دې چه دبناغلی ډکنس دکامیابئ اوشهرت ټول دارومدار هم په مثالی کردارنګارئ کښې پټ دې او دبناغلی فارسټر رائې داده چه .

"ډکنس زموږ دانګریزئ دادب په څو نومورو لیکونکو کښې شمیرې شی - او هغه چه دمثالی کردارونو په رغونه کښې د کامیابئ کوم مثال قائم کړے دے .... هغه ته دسختو نه سخت نقاد هم کوته په خوله ولاړ دے - ځکه چه د ډکنس کردارونه دسره دخپله مثالیته انسانان معلومیږی او دهغه میکانیکی (مشینی) اوبو مخیزه خصوصیات دخطرے نه خالی دی ."

کومه خطره چه دمثالی اوصوارو کردارونو دتقوړ سره تړلے دی - په دغه پیرایه کښې بناغلی فادسټر دایچ جی ویلز دمثالی کردارنګارئ

1. ASPECTS OF THE NOVEL cc *E.M. Forster* Page: 76.

صفت او ستاینه هم کړې ده - خو د بناغلي فارسټر په خیال په چېله په دغو کردارونو کښې دومره زور او حرکت نشته - دا د ډکنس او د ویلز غوندې د فن داستاذانو د تخلیقي ذهن بې مثاله قوت دے - چه د دغو کردارونو کمزورې ارخونه ئې هم د ناول په نورو ژوندو برخو باندې پټ کړي دي -

د مثالي کردارونو په ضمن کښې فارسټر د رچرډسن - دفو او جین آسټن غوندې اصلاح پسنده او تصور پرستو ناول لیکونکو د دغه تخلیقي قوت او فنکارانه مهارت هم زښته ډېره ستائنه کړې ده خو په عمومي ډول ئې د مثالي او جامدو کردارونو غندنه کړې ده - ولې چه د بناغلي فارسټر په خیال متحرک کردارونه په هر صورت د هوارو کردارونو نه غوره دي ځکه چه دا د لیکونکي د پښتئ نه زیات په چېلو پښو د اودریدو توان لري -

حقیقت دا دے چه هوار (Flat) او ترلي (Stock) قسم کردارونه په مزاحیه رنګ قصو او ډرامائي ماحولونو کښې زیات موزون او پسندے ښکاري- بالخصوص په ناول کښې د مزاحیه قسم ترلي (stock) کردارونه د چېلو مخصوص کړو وړو او ترلو دویو له کبله پېژندے او زیات خوښولے شي -

په ډرامائي ادب کښې د دوئ د کامیابئ مثال د موجوده دور د فلم او ټیلیوژن په اوږدو ډرامائي سلسلو کښې زیات څرګند دے - د هوارو او غونډو کردارونو د تقابلي جائزے نه پس بناغلے فارسټر په دې نتیجه رسیدلے دے چه غونډ او ګنجلک کردارونه په هر شکل کښې د هوارو او یو مخیزو کردارونو نه زیات ژوندي او اثرناک وي -

ACKU

"For we must admit that flat people are not in themselves as big achievements as round ones, and also that they are best when they are comic. A serious or tragic flat character is apt to be bore........... It is only round people who are fit to perform tragically for any length of time."[1]

ترجمه:-

موږ له دې خبرې اعتراف پکار دے چه یو مخیز کردارونه په خپل ذات کښې دومره قوي او اثرناک نه وي لکه څومره چه متحرک کردارونه دي - او دا هم چه دا یو مخیز او مثالي کردارونه د مزاح په رنګ کښې ښو اثر لري وے په سنجیده یا المیه انداز کښې دا قسم کردارونه دیکسانیت او بوریت باعث شي. محض غونډ کردارونه د دې جوګه وي چه د وخت د طوالت نه بې پروا په المیه حیثیت کښې خپل اثر قائم اوساتي.

## د کردار ارتقاء

په غونډو کردارونو کښې د تبدیلۍ په عمل کښې دوه پړاوونه مخې له راځي. کله چه یو کردار د حالاتو او واقعاتو په چپاؤ کښې په مزه مزه ارخونه بدلوي نو دا د کردار ارتقا یا

(Character in making)

---

1. ASPECTS OF THE NOVEL *E.M. Forster* Page: 77.

بللې شي او دتبديلۍ دوېم پړاو ته په هغه حالت کښې راځي څه وخت چه د کردار (يا کردارونو) په جذباتو کښې يو غوبل جوړ شي او مختلف قسم خيالات او نظريات ديو بل سره په ټکر کښې شي او دکردار دپاره دا فيصله کول ګران شي چې کومه لاره خپلول پکار دي. نو دې حالت ته د کردار اضطراب (مضطرب کردار) يا (Character in crisis) ويلې شي.

دا قسم له کردارونه (يا کرداري کيفيتونه) عمومًا په لنډه افسانه يا ډرامه کښې تر مخه کيږي ځکه چه په ډرامه يا افسانه کښې زيات اهميت هيرو يا هيروئن (د قيصې شهزاده يا شهزادګۍ) يا په نورو الفاظو کښې مرکزي کردارونو ته ورکولې شي او ټول پلاټ د دغو کردارونو داطوارو او رويو نه چاپېره جوړ لى.

د مرکزي کردارونو سره خوا په خوا د ثانوي کردارونو حيثيت هم لازمي او ضروري وي او دوئ د قيصې او پلاټ په ارتقا کښې لوئې لاس لري او بنځه ليکونکي په خپلو ثانوي کردارونو باندې هم پام او توجه برابره ساتي. ځکه چه دبنو ليکونکو په شان بنځه لوستونکي دد غه ثانوي يا امدادي

(Support Character)

کردارونو سره هم هغه هومره دلچسپي قائمه لري. څومره چه د مرکزي کردارونو سره. نو دا امدادي يا ثانوي کردارونو په جوړښت او ارتقاء کښې د دې خبرې خيال هم ساتل پکار دي چه دوئ دومره هم را اوبره نه شي چه د دوئ په وړاندې د مرکزي کردارونو څېرې تتې شي او دا ضرورت د ادب د نورو اصنافو په نسبت په ډرامه کښې زيات محسوسيږي.

---

## کردارنګاري او اختصار

په ډراماټي ادب کښې د کردارنګارۍ يو ډېر لازمي شرط (د ډرامې د محدود او تړلې وسعت په سمې ) د مناسبت اختصار هم دے -

د پروفيسر تهو لمين په وينا په ډرامه کښې

ډهيرو يا د ولن اهم شخصيت صرف هغه خصوصيات راجوتول پکار دي کوم چه په حقيقت کښې په ډراماټي عمل او افعالو اثر غورزوي ـ

نو دا يو دلچسپ اتفاق دے چه د دنيا ډېرو سترو او نوموړو ډرامه ليکونکو هم په ځنو ځايونو کښې د دے اصولو نه ډډه کړې ده - او د شکسپيئر غوندے د کردارونو عظيم او ستر تخليق کار هم کله کله د خپلو کردارونو په ارتقاء او رغونه کښې دومره بوخت شي چه د اضافي او سيواۍ کردار نګارۍ (Over Characterisation) ښکار شي .

په دے لړ کښې نقادانو د وليم شکسپير يو مشهور کردار هيملټ په ګوته کړے ده - د دوئ په خيال :-

**"There is undoubtedly more in the character of Hamlet, for example, than is actually required to account for his part in the plot."**

AN INTRODUCTION TO THE STUDY OF LITERATURE
*William Henry Hudson* Page: 189.

---

1. AN INTRODUCTION TO THE STUDY OF LITERATURE
*William Henry Hudson* Page: 188.

ACKU

ترجمه:-

په دے کښې هيڅ شک نشته چه د ميلټ کردار په پلاټ بانسے د هغې نه زيات حاوی ښکاری څومره چه ئے په پلاټ کښې ضرورت وو."

زمونږ په ادب کښې د ډرامے ناول او افسانه

## داستاني ادب او مافوق الفطرت کردارونه

د رواجي نه آخا صو د داستانونو او اولسی رومانی قيصو يو ښېرازه پانګه هم موجوده ده.

په پښتو ادب کښې دغه قيصے او داستانونه نزدے نزدے واړه په منظوم شکل کښې ليک دی او دخپلو مقامی اولسی رومانونو نه علاوه تقريباً ټولے قيصے د نورو ژبو لکه فارسئ، عربئ، هندئ او اردو نه زمونږ اولسی شاعرانو پښتو ته راړولی دی. او په دغه ډول دخپلو مقامی او طبعزادو اولسی رومانونو نه علاوه په ترجمه شوؤ قصو کښې دکردارونو پس منظر او چاپيرچل دمعمولی تصرف سره هم هغه ښودلے شوے دے کوم چه ددغو قيصو په اصل کښې موجود وو.

دداستان دفن او لئے شرط دادے چه هغه چل لوستونکی د حقيقت ددنيا نه لرے درومان دنګينو اوزړه دابنکونکو هيوادونو ته بيائی - په دغه نابلده ښارونو کښې چه کوم مخلوق اوسی هغه دبنيادمو دهغے طبقے سره تعلق لری څه ته چه اوچته طبقه ويلے شی - بادشاهان، اميران، وزيران او اوچت سوداګر عموماً ددغه بارونق هيوادونو اصلی اوسيدونکی وی - عام وګړے او غريب خلق دداستان ددغو اصلی کردارونو سره لکه د سيورې ګرځی راګرځی - او ددوئ حيثيت دداستان په نړۍ کښې محض دضمنی او اضافی (Dummies) کردارونو وی.

دانسانی ښکلا په وړاو اومافوق يا نہ ے نمائځلے شهزادګئ نخبط دداستان

ACKU

د دنیا د هیروش د مرتبې دعوی کوے شي . او په فوق العاده قوتونو یا نه ماموره شهزادګان د دغې دنیا میرني پېلې شي . د شاهي دربارونو او محلونو د شان او شوکت په دغه رنګین پس منظر کښې د داستان کردارونه د انساني جلال او جمال تخیلاتي نمونې وړاندې کوي .

ولې د داستاني ادب د لوستونکو د پاره روایتاً هم په دغه قسم کردارونو کښې د دلچسپۍ او زړه راښکون سامان موجود وو . د بادشاهانو شهزادګانو او امیرانو په دغه رنګینه فضا باندې د بناپیرو وزرې هم خورې وې . او عجیبه خبره خو داده چه د دېوانو او پیریانو غوندې فوق الفطرته مخلوق هم د داستان د نرئ او سید ونکو سره په غم بنادئ کښې پوره پوره شریک وو .

دعقل او فکر په انساني پیمانه که هرڅو دغه فوق الفطرته عالم او دبنیادمو سره د مغوئ رشتې او تعلق ته څه دیقین او باور نه وړ ے لرے خو بے ښکاری ولې د داستان د دنیا د دغو ستائیلو کردارونو په شان د داستان لوستونکی هم په دغه تخیلاتي او طلسماتي دنیا کښې او سیدل او هم په دغه تصوراتي عملونو او د مثالي کردارونو په وجود کښې د مغوئ د خوښئ او دلچسپۍ پنګه پرته وه . او د دې هرڅه په شا باندې د انساني تاریخ د محرومو او ناآسو دګو یو اوږد داستان پروت دے .

د اردو ژبې نوموړي نقاد سید احتشام حسین د داستاني ادب او کردارونو سره د عام اولس د دغې دلچسپۍ د پاره ډیر ښکلے او دلچسپ جواز کتلے دے . ستایلے نقاد په خپله یوه مقاله

" ناول اور افسانوں سے پہلے "

کښې د دې موضوع باندې لیکي چه . . . .

"تہذیب اور تمدن نے دنیا کے بعض حصوں میں قدم بہت بڑھائے تھے۔ اور[۳] کے ہزاروں ذریعے نکال لئے تھے۔ لیکن انسانی سماج کی ترقی میں بڑی بڑی رکاوٹیں تھیں۔ کیونکہ سائنس نے کسی خاص سمت میں ترقی نہیں کی تھی۔ مافوق الفطرت عناصر کے جا و بے جا استعمال میں ایسی دشواری پر قابو پانے کی کوشش نظر آتی ہے۔ خیر و شر کا تصادم۔ تقدیر اور تدبیر کی آویزش کو پیش کرتے ہوئے ان کہانیوں کے لکھنے والے کبھی انسان کو فتح مندی سے ہمکنار کر دیتے ہیں۔ کبھی بے بس مخلوق کی حیثیت سے پیش کرتے ہیں۔ لیکن عام طور سے ان کی نظر بلند ہوتی ہے۔ اور وہ امید کے ساتھ آگے ہی کی طرف دیکھتے ہیں۔"

ترجمه :-

"تهذیب او تمدن د دنیا په ځنو برخو کښې ډیر وړاندې تلے وو۔ او د ښته ښځې بے شمیره وسیلے ئے په ګوته کړے وے خو بیا هم د انسانی ژوند د ترقۍ په لاره کښې لوئے لوئے بندیزونه موجود وو۔ ولے چه سائنس لا په یو خاص اړخ کښې ترقی نهٔ وه کړے د مافوق الفطرت عناصرو په دغې بے دریغه استعمال کښې هم په دغه کړانه باندے د قابو موندلو زغل په نظر راځي۔ د خیر او شر ټکر او د تقدیر او تدبیر توپنتکه کښلو کښې ددے قیصو لیکونکی کله د بنیادم ګټه او بریالے اوښاقې او کله ئے د یو بے وسه مخلوق په څیر وړاندے کړی۔ خو عموماً په دے کولو کښې د هغوی اراده لوړه وی۔ او د امید په ذکو ستر ګو په وړاندے ګوری۔"

---

[۳] روایت اور بغاوت

سید احتشام حسین ایم اے صفحہ ۱۷۵

هم دغه وجه ده چه دالف لیلا ئې طرز په قیصو کښې کردارونه که هر څوک وی اود ما فوق الفطرت عناصرو برلاسے که هر څومره انسانی عقل خوزوی ولے بیا هم په دے هر څهٔ کښې دلوستونکو او اوریدونکو بنیادی دلچسپی دهغو پیښو او د هغو دنتیجو سره وی دکومو تعلق چه په حقیقت کښې دبنیادمو سره وی اوکه پـــه دے پیښو او واقعاتو کښې د پیریانو دیوانو او جادوګرو یانورو غیبی طاقتو نـــو تذکرے راځی خو دلوستونکو دهمدردو او پیرزوینو مرکز هغه کردارونه وی کوم چه دهغوئ په شان بنیادم وی -

دبادشاهانو یا شهزادګانو ددغو روایتی او مثالی کردارونو دذات سره دهغوئ چیل نا اسوده خواهشونه او نیمګړی ارمانونه هم تړلی وی -



# په پښتو کښې خارجي قيصې

د دنيا د هرې ژبې په ادبي پنګه کښې د داستانونو يوه لويه برخه موندې شي - زمونږ په ختيځ و (مشرقي) داستانونو کښې د سنسکرت داسودستا- هرش جوتر دش کمار جوتر او ترلوک سندرې، د عربۍ ژبې کليله دمنه، الفليله کتاب الحيوان، السندباد - د فارسۍ انوارسهيلي، طوطي نامه، رموزحمزه، ګل بکاولي ګل صنوبر او بوستان خيال - او د اردو ژبې طوطا کهاني، چهار درويش، طلسم هوش ربا او الف ليلئ او داسې نور داستانونه ډير شهرت لري -

په پښتو کښې د داستاني ادب سر د دولسمې صدۍ هجرۍ د شوبو و سره لګي - او ښکاره ده چه په پښتو کښې د خپلو ملي رومانونو چه مخه په کرو ورو کښې د داستان دفن نه تر ډيره حده پورې جدا دي، نه علاوه د طبع زاد قسم داستانونو هم د سره درک نۀ لګي - خو د نورو ژبو ځينې مشهور داستانونه د مثنوي او رلو په شکل کښې په پښتو کښې ترجمه شول - د دې روايت ابتدا په دولسمه صدۍ هجرۍ کښې اوشوه او ديرېشوې صدۍ په آخري او د ديارلسمې صدۍ په رومبۍ برخه کښې ئې ډير رواج بيا موندو او د بهرنو ژبو (فارسۍ، عربۍ او اردو) نزدې نزدې ټولې مشهورې او مقبولې قيصې په آزاد مت پښتو ته راواوړيدې -

د اولې دورې په دغو منظومو ترجمو کښې چه زمونږ په ادب کښې د تاريخي

حیثیت کوے جوګه قیصے دی په هغې کښے د غالب رشید ګل صنوبر (۱۱۰۷ھ) د عبدالقادرخان یوسف زلیخا (۱۱۱۲ھ) د عبدالحمید نیرنګ عشق او شاه ګدا (۱۱۳۷ھ) د فیاض شهزاده بهرام او ګل اندامه[1] او د احمدی صاحبزاده قصه د جهاندار شهزاده د ذکر ورے قصے دی.

په دویمه دوره کښے چه په پښتو کښے کومے بهرنۍ قیصے ترجمه شوے دی په هغو کښے د معین الدین عذرا وامق، د ملا نعمت الله الف لیله، حاتم طائی، شش ژوندۍ دوما لیلیٰ مجنون او شاهنامه د قاضی صفی الله الف لیله. د ملا رفیق شاهنامه د ممتاز شهزاده، شهزاده بهرام او ګل اندامه یوسف زلیخا، د احمد اخو امیر حمزه داستان، د کبنت شهزادګۍ او جمجمه بادشاه او بے شمیره نور منتشر منظوم داستانونه دی.

د شلمے صدۍ (عیسوی) د ابتدا سره نواؤ شا زمونږ ځنې اولسی شاعرانو دداستانی دول ځنې داسے قیصئ هم اولیکلے چه د هغے اصل نسل خو د فارسۍ وو. ولے زمونږ شاعرانو دغه قیصے سر دوباره د خپلو ترمیمونو او اضافو سره په نوی انداز کښے اولس ته وړاندے کړے. کوم ته چه فاضل محقق بناغلے عظیم شاه خیال بخاری[2] د خپل فکر او طبع ځینے زیږیدلے قیصے وائی. لکه شیرو یه ګیتی افروزه، شهزاده دل افروز

---

[1] داقصه په ۱۸۷۲ء کښے پادری هیوز په کلید افغانی کښے چاپ کړے ده او د پښتو اکیډمۍ پېښور د پوهنتون له خوا څو کاله اګاهو د بناغلی خیال بخاری د فاضلانه څیړنے په ځنګ کښے چاپ شوه.

[2] مقدمه د ے شهنۍ ص ۳۲

شهزاده فلک ناز ، سیمرغ و شهزاده فخر الزمان مکرزنان او دیو تربان ......

نو حقیقت دا دے چه ددغو قیصو جوړے هم د فارسئ او هندئ د داستانی منګے څخه راوړی دی ۔ دا بیله خبره ده چه زمونږ شاعرانو پکښے د خپل فکر او مزاج سترګے او قلمونه لګولی دی ۔

د ذکر شوؤ قیصو سره سره خوا په خوا څنے قیصے داسے هم دی چه هغه هم روایتاً د پښتو خپلے طبعزادے قیصے ګڼلے شی لکه محبوبا جلات نیمبولا یتمبولا د جان عالم او د ممتاز شهزاده قیصے ......

نو د خپل مخصوص طرز کردارونو او کمایونو د نومونو په وجه ددغو روایت ربنتیا والے هم ډیر مشکوک ښکاری ۔ په فکری او ماحولی لحاظ دا قیصے هم د داستان د فن سره بخت تړون لری او د دوئ د واقعاتو او کردارونو جوړښت د عام انسانی ذوق نه ډیر لرے او د فطرت نه خلاف ښکاری او د پښتو د هغو مقامی او لسی رومانوی د طرز څخه څرګند فرق لری کوم چه ددے خاوړے د اوسیدونکو د فطرت موافق واقعاتو عقل ته پریوتونکو اعمالو او رښتینی تهذیب او ثقافت سامو عکاسی کوی ۔

د منظومو قیصو نه علاوه چه په پښتو کښے په نثر کښے کومے قیصے لیکلے شوے دی ۔ په هغو کښے د شیخ سعدی شیرازی[له] د ګلستان د ترجمے نه علاوه دوه نور د ذکر وړ کتابونه دی یو خو د ایسپ د قیصو ترجمه ده چه میجر راورټي د قیصئ ایسپ الحکیم په نوم کړے ده چه په ۱۸۷۱ء کښے په لندن کښے چاپ شوے ده ۔

---

له دا ترجمه عبد القادر خان خټک "د ګلدسته" په نوم کړے ده ۔

ACKU

که[1] دے کتاب ته موږ د پښتو د قیصو اولنئ مجموعه اووایو نو شاید چه غلطه به نهٔ وی - او دویم کتاب د هشنغر د ټنګی د مولوی احمد دے کوم چه هغه د نومړی مستشرق پادری هیوز د پاره لیکلے وو - دا قیصے په اصل کښے د پادری هیوز د عظیم کتاب کلید افغانی یوه برخه ده او د مولوی احمد دغه قیصے د ګنج پښتو په نوم لیکلے شی[2] -

په نثر کښے د پښتو قیصو بل د ذکر وړ کتاب د افغانستان د ښاغلی محمد ګل نوری ملی هنداره دے - په کوم کښے چه د پښتنو مشهور ملی رومانونه په داستانی پیرایه کښے جمع شوی دی - دا کتاب د روانے صدئ په شوروکښے لیکلے شوے او چاپ شوے دے -

## په پښتو کښے داستانی کردارونه

د داستان د فن عمومی اوچت خصوصیات دادی -

د قیصے اوږد والے - ګنجلک او پیچیده پلاټونه - په واقعه کښے واقعه او قیصه کښے قیصه - د مافوق الفطرت عناصرو او مثالی کردارونو برسیره ناشونکے پیښے او عقل خوزونکی مهمونه - د نیکئ او بدئ د انتهائی (Extreme) قوتونو ترمینځه کشمکش (چه آخری برے به یکښے خامخا د نیکئ وو) د کمزوری حقدار او زورور باطل ترمینځه اوږدے کشالے (چه آخری کامیابی به د حقدار د پاره لازمی وه -) او دد ے ټولو په نتیجه کښے په قیصو کښے د هیرو پرستئ هغه نهٔ ماتیدونکے تصور چه تر ننه پورے زموږ د لوستونکو په ذهنونو باندے سور راروان دے - په

---

[1] مقدمه دلے اوشهئ ص ۲۶

[2] یو بل اهم کتاب د قصه خوانئ ګپ هم قابل ذکر دے -

داستانی روایت کښې عمومًا داسې ماحول[1] (Situation) ډیر شهرت او قبولیت لري - چرته چه د مبالغې ترحده زورور او کمزوري خلق په ځلو کښې تصادم کوي - یو اړخ ته دتاترین او کړنګونو ژوروالے او بل خوا دسترګو د دښت نه وتے لوړوالے - او د زورور او کمزوري په دے مقابله کښې اردمرو دکمزوري برے او کامیابے هم داولس دذوق غوښتنه وه او هم د داستان دفن -

لکه چه وړاندے ذکر راغلے دے - دداستان دنیا داوچتے طبقے دخلقو دنیا وه او دد ے دنیا مرکزي او ستر کردارونه یا خو یو رحمدله او نیک زړے باچا کیدے شو یا یو پیر مخ او باتوري شهزاده - یا یوه پري جماله ګل اندامه شهزادګۍ یا یوسفي او کروړپتي حاتم طائ -

داولس عام وګړے خو به ددغے کردارونو سره دیو څو کیدار، چپاکس یا توپک مار په حیث په خاص خاص موقعو په یوه لویه فاصله باندے لیدے شو - اوکه ډیره به اوشوه نو دچا فتح خان بریڅے به شو - او یا دچا تورابان دیو دکو مي خوراک به شو-

په حقیقت کښې دداستان دنیا یوه خیالي او رومانی دنیا وه - چه محض د اوریدونکو او لوستونکو د دلچسپۍ او ساعت تیرۍ دپاره دتعقل او تخیل په لوړو دنګو برجونو باندے ولاړه وه - او په دغه دنیا باندے دجادو، سحر کراماتو او معجزو دنغریبه او نظر فریبه فضا خوره وه - ددغے دنیا کردارونه د داستان ګوئي په لاس کښې محض دموم ګوډاګي وو چه په کوم طرز ئے غوښتل په هغه طرز ئے په اسانه تاوولے شول -

---

[1] پښتو افسانه ص ۲۳

د داستان دنیا د عجائباتو دنیا ده او د دنیا هر ناشونے کار او هره ناممکنه خبره د دے دنیا په ممکناتو کښے شامله ده. د پښتو په خارجي ترجمه شوو قیصو کښے تر دے نزدے د ټولو چولئ د دغو رنګارنګ عجائباتو او حیرانوونکو واقعاتو نه ډکے دی او د دے د میړنو منسوب نه عقل ګوته په خوله پاتے شي.

د فیاض په شهزاده بهرام او ګل اندامه کښے بهرام یو آدم زاد دے او د پریانو بادشاه صغور او د مخهٔ وړونو له هم ماتے ورکوی او هم ئے په ونو پورے کلک تړی لکه چه صغوئ ډیر عام او کمزوری بنیادم وی.

نور صیفور ئے تر سر پورته کړهٔ یارانو[1]

نور ئے کوز په مزکه وویشت بے تحمله

صیفور کوز په مزکه پریوت سر د لاندے

شهزاده بهرام پرے توقه بنه اوکړه

...　　...　　...

...　　...　　...

شهزاده وے هغه زور قوت د ځهٔ شهٔ

اوس به بیا لاڼے کوی لا یو تربله

نور ئے او تاړهٔ صغور په ونے پورے

سر اسیا ئے ننه اړے لره زا تلله

د داستانونو دیوان چه څومره ویرووونکے او هیبت ناکے جوړے لړی هومره د رومانی او جمالیاتی ذوق څښتنان هم وی - او یوه نه یوه بناکسته شهزادګئ

---

[1] شهزاده بهرام او ګل اندامه - فیاض ص ۸

یا بنا پیری ئے دځان سره په جیری قید کښے ساتلے وی .

افراد[1] دیو په یوه تخت بانده اوده وو
په بل تخت بانده ئے وو د پښو سرونه

هسے غټ دیو په جهان کښے چرته نه وو
که لمتوئے د په دده پسے ملکونه

یوه جل وه بناسته قید ه په کوهی کښے
چه د پښو ته ئے پراته وو زنځیرونه

. . .  . . .  . . .

شهزاده وے چلے چاته بنده کړے
څه واقعه ده ستا په ځان وایه حالونه

د ے وے زه یم بناپیری دیو راوستلے
چه په ځ ے اوښے ځی دغم رودونه

دخلاصی لورے ے نشته د ے زلمیه
زیست د روزګار ے همیشه دغم په خونه

د ے زما دیدن کوی نور په امان یم
دوغ عالم رابانده ے لاندی ګمانونه

هم دغه شان واقعات د احمدی صاحبزاده قصه دجهاندار شهزاده کښے دجهاندار شهزاده په وړاند ے راځی - په هغه هم یوه داسے بناپیری پیښیږی چه یو ظالم دیو قیده کړے وی او شهزاده چه دمعصومے او

---

[1] شهزاده بهرام او ګل اندامه فیاض ص ۲۲

مظلومے بناپیرئ دغې حالت ته اوګوری نو دعفۀ وینے لۀ تاوه په خوټکیدو شی ۔

دۀ وے وژنمه دادیو چه تا کرم خلاصه[1]

د ګار وایمه له ذرۀ کرم له اخلاصه

دے وے فهم کړه ددۀ مرګ نشته خبر شه

پرے خطا نۀ شے له دۀ نه په خطر شه

دداستان شهزادګئ عموماً دیرے بناشسته اوتنکئ بنو رلے شوے وی ۔ او اکثر د څوارلسو پنځلسو کالو په عمر کښے دمعشوق دبنائست دګلستان نه د چازلمی شهزاده دپاره دمینے دسپرلی اولنئ وږمه پورته کیږی ۔ اوخواوشا هم په دغه تنکئ ځوانئ کښے دقیصو شهزادګان هم ددنیا په هرعلم هرهنر اوهر صفت کښے یکتائے روزګار شی ۔

دفیاض شهزاده بهرام دپنځلسو کالو په عمر کښے په حربی فنونو کښے کمال ته رسی اود طاقت له خوا هم حغه رستم زمان وی ۔

چه پنځلس کاله تیر دشهزاده شو

شجاعت ئے بنه معلوم کړ منصفانو

په سورلئ کښے شهزاده ښے شهسوارشه

دبدبه ئے دیره شوه په دبنمنانو[2]

---

[1] قصه دجهاندار شهزاده ۔ احمد صاحبزاده ص ۴۳

[2] شهزاده بهرام اوګل اندامه ۔ فیاض ص ۱۰

په قوت کښې پهلوان ترے پوره نهٔ وو

ځائے په ځائے ترحذر کړهٔ پهلوانانو

د فارسئ نه ترجمه شوۀ قصو باندے د ایران د جمالیاتی مکتب د امر پرستۀ رنګ هم غالب ښکاری - هم له دغے دمایته د قصې دمیرو دچه عموماً په شهزاده وو د وجودی بنائست په صفت او ستائنه کښې هم حغه شعوری رنګین بیانئ تمامی کړی کوے چه په ادب کښې د زنانه حسن د تعریف او توصیف دپاره مخصوص دے دی۔

د جهاندار شهزاده په قصّه کښې احمدی صاحبزاده د خپل خیالی شهزاده سروپا په داسے رنګ ستائی۔

د مزری په دودے سترګے وے خونخوار سے

حرام شه که یو ذره وے د چا یارے

دواړه شونډے دانار ګلو په رنګ وے

څهٔ به وایم چه له حده زیات خوش رنګ وے

د خوارانو د زړهٔ څښلے به ئے ستل وینے

حرام شه که به ئے کاتهٔ چا ته په مینے

. . .

د مخ ګیخ نه چا پیره پروت ترے ښامار وو

چه لاس وړاندے کا د چا دا رنګ کار وو

څهٔ به ئے زهٔ درته تعریف د هر اندام کړم

ځان به سترے په ویل د ګل اندام کړم

ے قصه د جهاندار شهزاده ص ۶ - ۷

نوم ددهٔ جهاندارشاه جلوه هروخت وو

چاته څخ چه به دهٔ کړهٔ دعفهٔ بخت وو

هم دغه حال دشاه وګـدا دقصے دے. شاه وګدا په فارسئ کښے د بدرالدين هلالی چغتائی ليک وو. چه عبدالحميد بابا په پښتو کښے دمنظوم ترجمے دپاره غوره کړلو اودښاغلی خواجه محمد سائل په الفاظو کښے.

"پښتو ادب ته چه کومے نورے ديرے ګڼرے دحقيقت نه لرے اوفضول قيصے راننوتے دی. په دغو کښے دا يوه قيصه هم شامله ده - چه دحقيقت نه څه لرے غونډے ښکاری او مرکزی خيال ئے ديوے داسے خلکے يا ہلاتړ نه چاپيره چورلی چه په هيڅ شان له ممکن اودعقل دمنودو نهٔ دے - ديو ښائسته شهزاده دومره پربوتل چه يو فقير سره يارانه دوستانه اوساتی اوديو ګدا دومره زړهٔ ورتيا چه دبادشاه په زوئے مئين اشق شی د ممکناتو نه بهر خبره ده ـ"[1]

دداستانی دور شهزادګان چه څومره په متو زورور وی دومره ئے زړونه نرم وی او عموماً به داسے اوشو چه " شهزاده په ناپيدلی څخ مئين شو."

دطالب رشيد په ګل صنوبر کښے شهزاده شاه صرا ته دښکار په نيت وتے وی خو هلته په ځنګله ديوے کاغذی ليلا دعشق ښکار شی ـ

---

[1] عبدالحميد بابا، خواجه سائل ص ۷۷ - ۷۸

ناگهانه نسل صنور[1] تے
د رښکاره شو سے خوبصورته

چه په دوئ کښے وه کلانه
د مغو سیلیو خانه

د ے په لاس کښے یو بنځه ځین وو
ډیر بهشتښائستے لذیز وو

هغه ځین چه نبا یان وو
په کاغند کښے په شان وو

شهزاده چه نظر اوکړو
په هغه ځین ئے برابر کړو

په کاغند کښے یو صورت وو
ښائسته په لطافت وو

په کاغذ باندے څهره وه
ښائسته ښکلے بشره وه

... ...

... ...

شهزاده چه اولیدله
ذرهٔ ئے لاړه شه ترکوګله

هسے شان باندے مئین شو
چه په ذرهٔ صورت دروں شو

---

[1] ګل صنوبر، طالب رشید ص ۲۴ - ۲۵

په نالیدلی مخونو مېښېدل او د نالیدلو منزلونو په تګل کښې ورکیدل د داستانګویو

د فن څخه ضرورت وو. د کوم له مخه چه یو خوا د صفوټ دشهزادګانو په دے فطرت

د نړۍ خوږزیږې چه صفوټ په هر څخه لاس ته لاس اچوی چه د عام اولس او وګړو د

وس نه بهر خبره وی - او بل خوا د داستان څخه مقصد ترسره کوی چه په قیصه کښې

قیصه را اوږده وی او دا سے مضمونه وړاندے کړی چه د داستان واقعات د زیاتو

نه زیات ګنجلک او تاؤ راتاؤ کړی او د خپلو میړنو کردارونو د پاره داسے موقعے او

پیښے اولټوی چه په څخ کښے صفوټ د خپلے مړانے او شجاعت مظاهرے په آزاده توګه

اوکړے شی -

هم دغه د زړهٔ کمزورتیا د داستان میړنی داسے معرکو ته وړاودیکی چه

په هغے کښے صفوټ د مزرو سره په پنجه اچولو کښے هم څه ویره نهٔ محسوسوی -

د بهرام او ګل اندامے په قیصه کښے چه شهزاده بهرام د ښکار په موقع د مزری

سره مخامخ شی - او د هغه تول ښکر ترے په شا شی نو د اپواځے د بهرام همت

وی چه ملا اوتړی -

زمری خُلهٔ[1] ورپسے وازه کړله راغے

له غړیناتے خلقه شول حیرانه

شهزاده او زمرے دواړه مقابل شو

زمری پورته کړه څپیړه ناګهانه

په بهرام باندے نے ورکړل ګذارونه

شهزاده په مزکه کښیناست زما جانه

---

[1] شهزاده بهرام او ګل اندامه ، فیاض ، ص ۱۱

ACKU

وروستۍ پښې ئې د زمرۍ اوښوې په لاس کښې

نو دئې زړۀ له ځيله سره کړۀ کړداته
شهزاده بهرام نعره وريانۀ سے اوکړه

له هيبته زمرے اولويده بے حواسه
لکه طفل ئې چاروپست له ځيله سره

نور په مزکه ئې ارتاؤ کړ ناګهاسه
هر يو بند ئې د زمرۍ واړه جدا کړ

د زمرۍ د ژوندون خونه شوله وړانه

او د داستان ګويو د فن کمال هم دغه دے چه دځلو کردار دنو
د جمالي او جلالي صفتونو مظاهره په داسے دول اوکړي چه د لوستونکو او اوريدونکو
نفسيات په مستقله کيره راولي - مهم جوړ او ناشوونکي کارنامے ترسره کول د داستان
د ميړنو ازلي برخه وه ځکه خو به دے قيصو کښے اکثر با دشاهان دځلو لوړو د ودلو
دپاره څۀ داسے عجيبه شرطونه ږدي چه هغه هرو دسره څۀ عقلي جواز نۀ
لري -

دجاندار شهزاده په قيصه کښے د حسن بانو پلار ضحاک شهزاده ته
دا شرط ږدي -

ه

چه د نۀ ليدلو خېز کړه تۀ بنکاره
چه تمام عالم ئې اوکه ننداره

ئې قيصه جاندار شهزاده ، احمدي صاحبزاده

چه د نه لیدلو حال وی زهٔ ئے غوارم

په هغه څه ساعت بل څه له خلق نه اورم

دګل صنوبر د قیصے قول چل هم په دغه یو ول کښے نښتے وی چه ګل په صنوبر څهٔ اوکړل . یا په محبوبه جلات کښے دخونکار باچا اووهٔ زامن دمحبوبے په خیالی مینه کښے سروصلی بر وصلی یو په یو خپل وطن اوخپله باچاهی پرین دی اوسیوا د آخری (جلات) نه نور ټول یو په یو د نالیدلی شهزادګۍ په مینه کښے خپل سرونه کیږدی - دعبدالکریم دجلات محبوبه ددغو د فطرت اومعمول نه خلاف کردارونه په لړ کښے د محبوبه د پلار نامسلم باچا نامه په سر کښے راځی چه په پنځوس ښځو کښے ئے نرزوزے پیدا کیږی نه اولونړه چه به ئے څومره پیدا کیدے دهغوئ سرونه به ئے کوتره کول .

درته وایم دبادشاه نامسلم حال

یو ذره به پکښے نهٔ وی قیل و قال

پنځوس ښځے ئے ساتلے په حرم کښے

دهٔ به لونړه ترے وژ لے کال په کال

اوچه دنامسلم دټولو ښځو په صلاح محبوبه دباچا دسترګو نه پټه اوساتلے شی اوپه نهم کال باچا په دے خبرشی نو دغه دبنا ئست خوره په یو داسے قلا کښے بند یوانه کړی چه دهغے لار معلومول دهچا کار نهٔ وی - اونامسلم هم د ضحاک په شان دخپلے لور د وادهٔ دپاره دا شرط کیښود چه د محبوبے د قلا لار ګودرچا معلوم کړو هغه به د

 له قصه جلات محبوبه - عبدالکریم ، ص ۵

ACKU

محبوبے داوربل خویندار وی ۔

چہ زما دلوں مرغوک وی خویندار
ورکوی دے نغارے لہ دِ گـــذار
دے قـلا تہ دِ ورځی لورم دِ گوری
پہ تلاش ددے دِ ښکتہ پورتہ گوری
کہ ئے بیا موندہ وادہ بہ ورلہ لورکړم
اوکہ نہ بہ چِلو وینو کښے ئے سورکړم

خودا د داستانی روایت یوہ کړئ دہ۔ چہ دمغے دکردارونونفسیات هم دمحبوبے دقلا پہ شان تاڈ راتاؤ وو۔ اودامرڅہ دعام وگړی دفـکر اوپوہے نہ ډیر اوچت وو اوهم پہ دغہ ناپوهئ کښے ددومان دتصو راتی نړئ وارہ ښکلا پټہ دہ ۔

پہ داستانی ادب کښے ځنے کردارونہ داسے هم را غلی دی چہ صعولہ تاریخی اومذهبی رنگ ورکړے شوے دے۔ لکہ دامیرحمزہ داستان یا جنگنامہ حضرت علی اوداستان نگار پہ داسے پیرایہ کښے ځپلہ قیصہ شوروکوی چہ دخپل لیک دپارہ دځپلے مخے تاریخی حوالے هم ورکوی ۔ لکہ دامیرحمزہ پہ داستان کښے ښاغلے احمد بیگی ۔

لہ تاریخ لہ مورخہ نکتـہ داسـہ[۲]
روایت صحیح مسلم واورہ لہ ماسـہ

---

[۱] قیصہ دجلات محبوبہ ۔ عبدالکریم ص ۳۰

[۲] قیصہ امیر حمزہ ، احـمد ، ص ۷

هسې واڼې په مکه کښې يو سردار وو

په نامه عبدالمطلب ښکلې نامدار وو

خو د تمهيد نه پس چه په دا سې قسم داستانونو کښې دعقل او پوهې نه خلاف کوم واقعات او مافوق الفطرت قسم کردارونه ښکېلي شي . دمغز نه خو دتاريخ سره څه رشته شته او نه دعام ژوند سره .

بناپيرو وے چه زموږ په کارخانه کښې

راشه اوګوره په خاصه خزانه کښې

اے اميره واخله څه چه دِ پکار وي

دُر ګوهر ياقوت الماس که څه ابدار وي

نور اميس لاړو دننه په خانه کښې

زيـدو دبناپيرو په خزانه کښې

يوه توپئ ئے زړه زوړنده اوليـدله

هم توپئ سره دره وه زړه بـله

...                    ...

...                    ...

امير اوو ے داقيمتي توپئ دچا ده

بناپيرو وے داتحفه دحق تعالٰى ده

راليږ لے سليمان ته وه اميره

اوس را اورسيده بيا تر دے چا ګيره

---

[1] قيصه اميرحمزه (نوے طرز) احمد ص ۱۵۶.

د فردوسي شاهنامه په تو له نړۍ کښې د زمانو راسې یو لوړ ادبي مقام لري او د نړۍ په ګڼو ژبو کښې ددې ترجمې شوي دي - د پښتو نوموړي اولسي شاعر او قصه ګو ملا نعمت الله هم شاهنامې ته د پښتو جامه ور اغوستې ده.

په شاهنامه کښې هم ځاے په ځاے ددې داستان میړنې رستم پهلوان د ایران د لرغوني تاریخ او قدیمي بادشاهانو په حواله یو تاریخي کردار پېښلے شوے دے - او د رستم په شکل کښې چه فردوسي کوم مثالي طاقتور بنیادم دنیا ته وړاندې کړے دے او د مختلفو تاریخي پېښو په تسلسل کښې چې ددې مثالي انسان (Superman) کومه تصوراتي نقشه راکښلې ده - په ځنې ځایونو کښې د پېړو راسې د اوریدونکو او لوستونکو د تصوریت او هیروپسندۍ مینه ماتېږي -

د انساني قوتونو په مقابله کښې د یو غیر معمولي انسان برې او بریالیتوب که په هر څو مره مبالغه سره بیان شي په ځنې ځو یا هم بنده باورکولو ته مجبور شي وے کله چه دده په مقابله کښې دیوان او پیریان او دروے شي نو که څه رستم هم وي نو په داسې حالت کښې د معمولي فکر د خاوندانو د باور او یقین دیوالونه هم اوخوزي -

لکه په شاهنامه کښې د اکوان دیو سره دا طاقت خوښته چه رستم د سره تاؤ کړي او په لرو اطرافو ځے ګذار کړي خو په یوه بله موقعه چه هم دغه دیو د رستم مخے له راشي نو په یو ګذار ځے داسې بې غمه کړي لکه چه هغه یو عام او کمزورے آدمزاد وي -

څه په هغه چشمه ورغے نامور
رستم پورته کړو له قهره شوروشر

وے اے دیوه د غلا کار وی د نامرد
که ته مرد یے مخامخ اوکړه نبرد

نو د معلومه به شی ستا دیو مردانه
یا په مایا به په تا کړم دنیا ورانه

دیو څرګند شه رستم بند کړو په کمند
بیا یے اوواهه پس خلاص یے کړو ژوند

سر یے پریکړو رستم راغے ترینه بیرته
په دربار کښے شه حاضر خسرو نامورته

خو دد ے قسم کردارونه رغول او د خپلو کردارونو د پاره د ارنګ ماحولونه او منظرونه پیدا کول هم دداستان دیکونکو مجبوری وه او هم د مغوی دلوستونکو او اوریدونکو - د فقیرانو بزرګانو دعاګانے (اوښیرے) او د غیبی طاقتونو تصرف هم دداستانی روایت د زنځیر یوه اهمه کړۍ ده - د اکثرو داستانونو باد شاهان په شوګرو کښے بے اولاده وی - د چا رسیدلی فقیر په دُعا رنګ شی او خدائے ورله نر فرزند ورکړی او دغه نر فرزند چه لوئے شی نو د نرتوب داسے معرکے ترسره کړی چه دنیا پرے آفرین او شاباسے اووائی - او کله چه په سخته او مصیبت کښے راګیر شی نو هم د غه فقیر یے مدد له ځان رارسوی - او کله چه هم یو بهرام

---

۱ شاهنامه بزبان افغانی ، ملا نعمت الله ص ۲۱۱

ACKU

دځپلې خیالي ګل الله اے په لیتون پسې بے لارے بے ګودره مزلونه کوي نو۔

"د غیبي شاه پیس د سخا دریاب په چپو شي او ځپله تو له اړي موري ده ته اوبخښي - اوورته واني -

په دے مسله کښینه - دا به ږ په هوا د ذره مراد ته اورسوي دا د رنجو سلاني په سترګو کښې اووهه تاته به هر څه ښکاري او ته به هیڅ ته نه ښکاره اوداسا په لاس کښې واخله چه څوک ورته ښاني دابه ورسره ځپل عمل کوي۔

شهزاده د پیس په وینا چلے په چټ کے عمل اوکړو اودد ےنه پس غیبي شاه پیر غیب شي - اود داستان د فن کارنا ے په څوګند یدو را اوټکي"[1]

د فقیرانو منګانو سره عقیدت زمونږ په اولسي معاشره کښے دبابا آدم تد ترد ے دمه پورے راروان دے۔ او دداستان په هیوادونو کښې دد ے ډلے د اهمیت او تعرف نه انکار ناشونے دے۔

دنعمت الله په مثنوي شیرینئ او فرهاد کښے چه فقیر دبادشاه د محل په دروازه کښے دخپل غوښتو دپاره اودریږي (دکه چه په هغه دروازه کښے نه پهره داروي نه څوکیدار) دبادشاه لور شیرینئ د فقیر آواز واوري او هغے مورځپله خدمتګاره ورلیږل غواړي خو شیرینئ په دے دلیل په ځپله دورتلو اجازه غواړي چه

ذه فقیر لره ورځمه    چه دعا ترے اوغوارمه

---

[1] پښتو افسانه، تاریخ او تنقید، ص - ۲۵

[2] شیرینئ فرهاد، نعمت الله ص ۱۲

ACKU

دبابا په حق به دیره    دعا کړم زهٔ دابرخیره
چه آباد موسلطنت وی    دانه لرے هرآفت وی

اوشهزادګۍ چه فقیر ته دخیر ورکولو په بهانه ورمخامخ شي نو هلته د فقیر په جامه کښے نامراده فرهاد ولاړ وی او دشهزادګۍ په جامه کښے بامراده شیرنۍ .

فرهاد وے بی بی میرمنے[1]
نهٔ کړم طمع دغو بنیتنے
ستا په عشق کښے زهٔ رنځور یم
تل ترتله په ضرور یم
شهزادګۍ وے داخه وائے
اے سپیرهٔ وے نګیا ئے
فقیران اودا خبر ے
دی له عقله لرے لرے
...    ...
...    ...
چه ئے داتقریر تمام کړو
بیائے رو ورته کلام کړو
چه زهٔ هم په تا شیدا یم
ستا په غم کښے په سودا یم

---

[1] شیرنۍ فرهاد ، نعمت الله ، ص ۱۵

داوه دداستان دنیا اودعغې کردار ونه - چه زموږ پښتونیکو نکو هم په ځل ځل دخت اوځل ځل رنګ هم په هغه شان اوشوکت اوجمال اوجلال کښے وړاندے کړل - څنګه چه په فارسئ ، عربئ یانورو ژبو کښے موجود وو - دغه د زمانے رواج وو دغه دوخت اوذوق غوښتنه وه اودغه دفن روایات وو -

دداستان دروایت په هره کړئ کښے د رومانی تصوریت یوه رنګینه دنیا ودانه ښکاری اوپه دغه دنیا کښے دداستان دمینانو دپاره په هر قدم یوه داسے سرګومه نشه پرته وی چه دهغې خمار ترآخره دهغوئ په سوچونو خور وی - د ښاغلی وقار عظیم په ژبه -

" بے خودی کی یہ دولت بے پایاں اس دنیا کا مقصود ہے جسے داستانوں نے اپنا بنایا ہے - یہاں کے حقائق ہماری آپ کی دنیا کے حقائق سے بالکل مختلف ہیں ...... یہاں کے جنوں، دیووں اور پریوں کیطرح سارے انسان بھی عجیب الخلقت ہیں - حد درجہ خوبرو اور حد درجہ بد وضع - انتہا کے اچھے اور انتہا کے بُرے - خیر کے مجسمے - شر کے پیکر ہر چیز کی انتہا - ہر چیز کی معراج - بلندی سے بلند اور پستی سے پست -"[1]

توجمه :-

دبے خودئ داپے انتہا دولت ددے دنیا یو مقصود دے چه داستانونو خپل کړے دے - ددے حقائق زموږ اوستاسو ددنیا دحقائقو نه بیخی په بل رنګ دی .... دپیریانو ، دیوانو ښاپیرو په رنګ ددے توول بندیان هم څهٔ عجیبه مخلوق وی - دوئ بے انتہا ښائسته اوبدرنګ بے انتہا نیک خویه اوبدخویه ، دخیر مجسمے اودشر نمونے دهر څهٔ انتها

[1] ہماری داستانیں ، سید وقار عظیم ص ۱۱ - ۱۲

د هرڅهٔ معراج ۔ په بلندئ پستئ کښے بے ساری ۔"

نو بجيبه خبره داده چه زمونږ د پښتو قيصه ويونکي چه کله د خپلے مزکے او خپل پښتني چاپېرچل سره تړلے قيصے ېيکي نو ددغه داستاني دور دانتهائي عروج په وختو کښے هم د هغے واقعات او کردارونه د حقيقي ژوند او ژوندي حقيقت سره ډير نزدے معلوميږي ۔ ددے اولسي روماني قيصو زمانه که هره بنودلے شي ۔ کردارونه ئے زمونږ اوسناسو د سترګو ليدلي کتلي ادم زاد وي ۔ او د هغوئ نامے که هرڅهٔ وي د هغوئ کارنامے د انساني قوتونو د توان او وسے نه بهر نهٔ ښکاري ۔

## د پښتو مقامي اولسي رومانونه

د نوروژبو په شان په پښتو کښے هم د خپلو اولسي روماني قيصو يوه بشپړه پنګه پرته ده ۔ په دے قيصو کښے زمونږ د ثقافت او تمدني ژوند ډيره ښکلے او ساهو عکاسي شوے ده ۔

ددے روماني قيصو د ټولو نه لوئے خصوصيت دادے چه دا زمونږ د عام انساني ژوند سره ډيرے جختے دي او د ژوند وحقيقتونو سره اړه لري ۔ په دے قصو کښے د اکثرو روايت په سوونو کلونو باندے خور دے او د زمانو راسے سينه په سينه او خوله په خوله د دغه روايتونه تر مونږه رارسيدلي دي ۔ داده چه د هرے زمانے او هرے علاقے له خوا په دغو روايتونو کښے اضافي او ترميمونه شوي دي خو د قيصے د بنيادي جتے خدوخال او کرهٔ ورهٔ بيا هم محفوظ وي ۔

د پښتو دغه اولسي رومانونه زمونږ سره په منظوم شکل کښے موجود دي او ددے دپاره زمونږ شاعرانو يا خو د فارسئ مثنوي صنف غوره کړے دے او يا ئے د پښتو د مخصوص بحر د بدلے په جامه کښے خپلے قيصے وړاندے کړي دي ۔ د بدلے په طرز کښے چه زمونږ کوم رومانونه نقل شوي دي هغه دورو ستئ دور سے

(نولسمې او شلمې صدۍ عیسوی) سره تعلق لري .

په خپلو اولسي رومانۍ قیصو کښې چه په پښتنو کښې کوم زیاتې مشهورې او مقبولې دي دغه دادي .

آدم خان درخانئ ، تور دلے شهئ ، فتح خان رابیا ، موسٰی خان ګل مکئ مومن خان شیرنئ ، بنادي ببو ، ظریف خان مابئ ، یوسف خان شیربانو او میمونئ شیرعالم - داتولې قیصې په خپل خپل ځائے باندے اهمیت هم لري او قبولیت هم .

ولےبیا هم مونږ دخپل تفصیلي بحث دپاره په ذکر شوؤ قیصو کښې وروستۍ څلور قیصې غوره کړي دي - په دے نه چه دا قیصې د نورو نه زیاتې دلچسپې اهمے یا په اولس کښې مقبولې دي بلکه په دے چه دغه قیصې په خپل خپل وخت کښې کومو شاعرانو لیکلې دي ـ دغوئ خپل شاعرانه حیثیت اوعلمي مقام هم منلے شوےدے او دغو منظومو رومانونو دقیصو فني حیثیت هم مسلم دے .

په دغو قیصو کښې اولنئ دوه قیصې (آدم خان درخانئ اودلے شهئ) د نن نه څه درے سوه کاله اګاهو دستر خوشحال خټک نوموړي زوئ صدرخان خټک لیکلې دي او وروستئ دوه قیصې (فتح خان دابیا اوموسٰی خان ګل مکئ) د موجوده صدئ د اولے برخے د پیاوړي او مستند قیصه ګو شاعر ملا نعمت الله دکاوشونو نتیجے دي .

په دے څلورو وارو قیصو کښې دقیصے دموادو اوواقعاتو د ترتیب او تهذیب خیال هم ساتلے شوےدے - اوکردارنګاری هم پکښې په ډیر مناسب فطري او حقیقي رنګ کښې شوے ده .

دے دواړو قیصه ګویو چه دخپلو قیصو تنے بودے دکوم چاپیرچل نه

راښستي دي ځېل کردارونه ئې هم دمغې مخصوص چاپېرچل دغوښتو په مناسبت تراشلي دي - او دا زيارئې کاڼلے دے چه کردارونه دچل پلاټ سره په فطري انداز کښې تړلي اوګنړلي ښکاري -

دغې پياوړو ييکوونکو په خپلو قيصو کښې دد ے خبرے خاص التزام ساتلے دے چه دعقل او فطرت نه خلاف خبره اوعناصرو نه تروسه ځان بچ اوساتي او دا صغه شے دے چه زموږ اولسي قيصے دعام داستاني روايت نه بيلوي -



# آدم خان درخانۍ

د پښتو د ټولو نه مقبول اولسی رومان آدم خان درخانۍ د مثنوی په طرز صدرخان خټک په کال ۱۱۱۸ھ کښې اوليکلو او دغه نسخه د پښتو اکیډیمۍ له خوا په کال ۱۹۵۹ء کښې د ښاغلی محمد نواز طائر د مقدمے سره چاپ شوه ـ ښاغلے مولانا عبدالقادر د صدرخان د مثنوی په مقله په خپله پیژند ګلو کښے ليکی چه ـ

"آدم خان درخانۍ په پښتو افسانوی ادب کښے يقيناً د ټولو نه زیا ته عامه خوښه او مقبوله قيصه ده ـ"[1]

د آدم خان درخانۍ د قيصے روايت د صدرخان د وخت نه هم د ېر وړاندينے ښکاری ـ د دغه نه علاوه د دغه وروں عبدالقادر خان خټک هم دا قيصه نظم کړے ده ـ د صدرخان د وينا مطابق د دے مثنوی په تالیف کښے په خپله د دغهٔ د تو موړی پلار خوشحال خان خټک خواهش او مُله هم شامل وو او د دے خبرے وضاحت هغهٔ د کتاب په شروع کښے داسے کړے دے ـ

د عُشاقو افغانانو  د ماضيو عاشقانو
کتاب بويه چه نګار شی  وروستو پاتو يو يادګار شی

[1] آدم خان درخانۍ اکیډیمی چاپ ص۵۱

دهٔ وے بنه دِ اوو ے زوید
یو کتاب په دا باب بوید
که د عمر څهٔ وفا وی
د کار بار فرصت زما وی
له آدم له درخانئ
بویه ښے سخن دانئ
چه منظوم یوه نسخه شی
یادګار پاتو په ستنه شی

دا قیصه[1] په کال ۱۸۸۳ء کښے د پیښور اکبرشاه هم په خپل استدان کښے لیکلے دهٔ - په ۱۳۱۲ هـ کښے سید بوعلی شاه سرته اورسوله او په ۱۸۷۲ء کښے د تنګی مولوی احمد ورته د نثر جامه ور واغوستوله - د دے نه علاوه میجر راورټي په خپل کتاب پښتو ګی انشا کښے د فخرالدین[2] صاحبزاده د نثری نسخے ذکر هم کړے دے او وئیلے وائی چه دا کتاب د کال ۱۷۵۵ء په خواؤشا کښے لیکلے شوے دے.

خو ښاغلی محمد نواز طائر چه د صدرخان د قصے په تحقیق او څیړنه کښے د بحث په وخت د کومو اضافی خبرو مذکوره کړے دے د هغے بنیاد د بوهان شاعر په هغه بدله پاندے دے کومه چه ښاغلی مولانا عبدالرحیم په خپل انتخاب مجموعه[3] کلام افغانی کښے شامله کړے دهٔ - د افغانستان

---

[1] پښتو افسانه (تحقیق او تنقید) ص ۷۲ [2] ادم درخانئ (یوه څیړنه) محمد نواز طائر ص ۲۱
[3] د انا چاپه نسخه د پښتو اکیډمئ ملکیت دے او په دے کښے د بوهان شاعر د بدلے وروستئ برخه نقل کړے شوے دهٔ -

له خوا په چاپ شوے دبنا غلی محمدګل نوری د نثری قیصو په مجموعه ملی هندارۍ کښے هم دآدم خان درخانۍ قیصه شته.

ددغے ذکر شوؤ حقائقو اودروایتونو په بنا دآدم خان اودرخانۍ رومان که یو خوا یو ډیر لرغونے او بشپړ حیثیت لری نوبل خوا ددے قیصے په روایت کښے ځائے په ځائے ډیرے ادلۍ بدلۍ هم راغلی دی - او دهغو په رڼا کښے ددے قیصے د ځنو اهمو کردارونو په حقله دبحث نوے لارے اوزاوئے هم پیدا کیږی خصوصًا دځنو روایاتو له مخه دمیرمائی اودهغهٔ دزوئ ګوجرخان کردارونه ډیر بحث طلب او متنازعه (Disputed) شی.

ولے بیا هم په دے ټولو روایتونو کښے د صدرخان قیصه زیاته مستنده ګڼڵے شی هم دقیصے اوکردارونو له رویه اوهم دشاعرۍ له خوا -

## دآدم خان کردار

آدم خان ددے قیصے مرکزی کردار دے او صدرخان دے دیو داسے پښتون خانزاده په رنګ کښے وړاندے کړے دے چه هغه که یو خوا دمردانه حسن پیکر دے نوبل خوا یو ننګیالے تورزن اوپه پښتنی اوصافو پوره ځوان هم دے - ددغے سره خوا په خوا آدم خان دعلم اوفن سره هم پوره علاقه لری - او دآدم درباب ترنګ خو تردے دمه دمې دوی د درخو دښکرو دشرنګ سره همنوا راغلے دے - د هغهٔ دعلمیت شان هم صدرخان په هغو رومانی منظرونو کښے په ښهٔ شان برخیرن کړے دے چرته چه هغه د درخو سره په پټو ملاقاتونو کښے په بحث اومناظرو کښے انښتے دے.

دآدم خان پیژندګلی په اول ځل صدرخان زمونږ سره په ښکلی شاعرانه انداز کښے په داشان کوی -

آدم بیشت پہ شیںخانہ وو[1]

شب و روز پہ ترانہ وو

دے پس د حسن خان وو

میتہ خیل وو نوے ځوان وو

پہ بنائست کښے بے مثالی وو

لطافت ئے روحانی وو

درست مجلس پرِ معطر وو

ہر مفلس ئے موړ پہ زر وو

ہم گلزار وو ہم مجلس وو

ہم زردار وو ہم مفلس وو

پہ ہمت پورتہ پہ دوُ ستۀ

پہ تدبیر وړو وړو پہ روتۀ

... ...

... ...

پہ چشمانو کہ آھو وُو

شیں پہ زړۀ نھنگ بازو وو

آدم خان دد غو خوبو او خصلتونو سرہ خوا پہ خوا چہ د مغۀ د موسیقئ د علم پہ حقلہ صدرخان کوم بیان کړے دے ۔ د مغے نہ پہ ښکلہ د صدرخان دد ے فن د رموزو اوکوز پاس سرہ د ډورے علاقے پتہ لگی ۔

---

[1] مثنوی آدم درخانئ ، صدرخان ختک ، ص ۶۷ - ۶۸

موسیقی علم ئے ډیر وو

په مروند کښے ئے ډیر سر وو

دسرود په هر مقام وو

دے عالم پرنے نام په نام وو

چه به دے په اول سانشۀ

له عراق به په حجاز شۀ

بیا به کوزشۀ خراسان ته

بیا به وخوت وبل شان ته

بیا به دے په حسینیٔ شۀ

په بنۀ رنګ به په چاشنئ شۀ

چه به بیا په ترقئ شۀ

جوړ به دے په عشاقئ شۀ

عشاقی پرده به ډیره

دۀ خپل شان کړه تر حد تیره

خبر دار له هر مقام وو

شان ئے وخت (او) په هنګام وو

بے هنګامه به هیڅ کله

دۀ پرده نه غږوله

---

۱ مثنوی آدم درخانئ ، ص ۶۷ - ۶۸

چه سرود دے په هنګام وو

اش خکه په کښے تام وو

دآدم خان او دموسیقئ د ترون په حقله په دے دومره تفصیلی بیان کښے یقینی ده چه صدرخان سره دخپلو لوستونکو احساس مل وو د چا په خیال کښے چه د اول نه د زړو روایاتو له رویه آدم خان یو ښه شوے ربابی او موسیقاروو.

دآدم خان او درخانئ اولنئ ملاقات او ددے عظیم المیه رومان شوره هم دغه محفل نه کیږی کوم ته چه آدم خان اودغهٔ ملګری خاص هم په دے غرض رابللی شوی وی چه ددوئ د سرود او نغمو په برکت د بنانُست سره درخانئ خپل مخ له چابه راڅرګنده کړی - اوآدم خان هم دغے محفل ته په مضبوطه اراده او پوخ یقین راغلے وو چه هغه به ددرخو په مخ پراتهٔ د حیا او ستر پلووُنه دخپل فن په تاثیر په سوزولو کښے کامیابیږی - او دا هم حقیقت دے چه دا د درخانئ د نالیدلی مخ لیے وی چه دآدم خان د نغمو سره دستی سمندر ساز ملګرے کړی او دغه دواړه لیے چه سره یوشی نو دننګ اونام اورسم ورواج واړه پردے اوسیزی -

درخانئ[1] ناګهانه دهمزولیو تر شا جانه

عین په وره کښے اودریدله

لکه نمر اوځلیدله

آدم خان دعامو پښتنو ذهنو غوښے یو دوست پروره اویارباش خان وو او په دغه وخت چه دغهٔ یو ملګرے ىلو د درخانئ دلاثانی بنانُست

---

[1] ادم خان درخانئ ص ۶۸

د ننداړے نه محرومه پاتے شی او چیل خان ته ګیله اوکړی نوصدرخان د آدم خان دکردار دغه اړخ هم په ډاګه کړی چه هغه دچېلو ملګرو څومره خیال ساتی- او په دے قطعه کښے هغه درخانئ ته دبلو په خاطر د څخ څرګندولو خواست داسے کوی.

دټولی په مخکښے د ہوی[1]

درخانئ ئے نکه بطـه

نورے جونے نکه ستوری

ته ئے سپوږمئ ئے بنارخطه

دبلو دپاره اوکـړه

برته پیر حجاب سقطـه

چه دوویني پـه عـین

دتاعین له نقطـه

په دے المیه رومان کښے صدرخان آدم خان دیو داسے مهم جو رومانی هیرو په دود وړاندے کړے دے چه هغه په مینه کښے د دود دستور او سروما ل هیڅ پروا نهٔ ساتی او څه وخت چه دے د عشق نغښے په زړهٔ اوخوری او د درخو یادونه ئے نا قلاره کړی او دهغې دیده و بله هیڅ لار پاتے نهٔ شی نو دشپے په تیارهٔ کښے د هغې دملاقات دپاره دهغوئ کور ته دوړا وریدو تابیا اوکړی او په دغه مهم کښے میرو هم د آدم خان ملګرے وی.

---

[1] آدم خان درخانئ، ص ۸۳

آدم اووے میړو یاره[1]

دعشاقو مددګاره

ته اوري ے وماته سیے

خبرګی اونیسه محکے

زۀ به ستا په اوږو پښې پ دم

بیا به لاس په دیوار کیږدم

په دارنګ به تر دیواره

زۀ وږ واوړم میړو یاره

اوهم له دے ځایه دعغهٔ رومانوی مهم جوئ ښکاره کیږي کوم چه د انګریزئ ژبے د نوموړی درامه نویس بناغلی ولیم شکسپئر دمشهورے رومانی المیئ رومیو جیولیټ هیرو رومیو اوآدم خان سره خوا په خوا اودروی -

دشکسپئر رومیوهم په دغه قسم حالاتو کښے جیولیټ وینی اوور پسے سمدستی دځان اوجهان له ویرے بے پروا دجیولیټ ماڼئ ته دهغے دملاقات په نیت پیښه کوی - دمختلفو وختونو اوبیخی بیلو اوجدا تهذیبونو په ځینو کښے دزیکیدلو دے مشهورو رومانی المیو دواقعاتو اوکردارونو ترمینځه دے نزدے شابهت ته بناغلی محمدنوازطائر هم دآدم خان درخانئ په حقله په خپله څیړنه کښے ډیرے دلچسپے اوښائسته اشارے کړی دی -

دولیم شکسپئر په ډرامه کښے چه رومیو دخپلے معشوقے سره دشپے د تیرولو نه پس دسحر په ښکالو پوهے شی نو دهغهٔ تأثرات څه داسے وی -

---

[1] مثنوی آدم درخانئ ص ۱۱

ترجمه :-

څه چه لاندے کړے خیس دے

که مے مرکړی عذر نشته

زهٔ په دے باندے رضا یم

بنائی ستا خوښی هم دا ده

سپین بخنه چه اَ ښکاری

نه چه سترګه د صبا ده

داخو جوړے زیړ بخنه

د سپوږمئی د مخ رنړا ده

په نغمو باندے چه سر ده

نه دا خرارهٔ د هوا ده

تش د ړشین آسمان ولاړ دے

پاس په سر زموږه باندے

زهٔ د تلو د تلوسے نه په د زیات یمه خوشحاله

چه هم دلته کښے ولاړ وے

راشه اے مرګیه راشه هرکلے زهٔ درته وایم

جیولیټ هم په دے رضا ده

دا سے نهٔ ده وایه ځانه څه چه دواړه مشغولین و

نیته لړے د صبا ده

---

له آدم خان درخانئ یوه ټیرنه (ترجمه دانګریزئ نه محمد نواز طائر)

ACKU

او نور ډېر نور هم د غه تأثرات د صدرخان په مثنوي کښې د آدم خان دی.

هم دا شپه عمر زما وے [1]

مرګ مې دا سحر صبا وے

چه له هغې مخ بېلېږم

بیا ژوندے څوم حیرانېږم

په ژوندون چه شا کومه

درځو پاتے شوه زه څمه

حیف په دا عمر زما شه

صد نفرین په دا وفا شه

د شکسپیر رومیو د آدم خان غونډے د موسیقۍ د فن نه اګاه نه وو خو رومانی تصورات ئې ازلی ملګری وو او جمالیاتی حس ئې ډېر بیدار وو او حوصلې سره چه په کوم تقریب کښې د دواړو ملاقات کیږی ـ هلته دے د ځلے او لنډۍ معشوقې روزلین دلیدو په غرض تلے وی ـ د آدم خان په حقله د دے قسم معاشقے خو د مخکښې نه د صدرخان په مثنوی کښې درک نه لګی ـ البته په توله مثنوی کښې صدرخان د آدم خان د منګوے طوطیا ذکر په ایکی یو مقام کوی ـ

هغه وخت طوطیا پسند نے [2] منګوحه د آدم بنګلے

هورته ناسته وه حاضره په خله چپ په زړه ناظره

---

[1] مثنوی آدم درخانئ ص ۹۹

[2] مثنوی آدم درخانئ ص ۱۱۰

ACKU

ولے دبنا غلی محمدگل نوری په ملی صنداره کښے چه دآدم خان اودرخانئ په نوم کومه قیصه چاپ شوے ده په هغې کښے دتوتیا (طوطیا) سره دآدم خان دشیشتے یوه ځان له مکمله واقعه موجوده ده -

" یوه ورځ په یوسفزو کښے یو وادهٔ وو-آدم خان ئے سره د پلاره اوسره له یارانو ور اوغوښتل-چه وادهٔ لره ورغلهٔ - نوجلا اتنړونه کوی - ښځے جلا اتنړونه کوی - اوکله ښځے اونړ یو ځائے اتنړکوی-یوه جینه مسته پیغله ده -دا ے پړله اوړی لکه کوتره - اودا ے ښائسته ده چه ستړگے نهٔ پرے ودریږی - داپیغله توتیا نومیږی - دبازین خان لور ده - دښے لوئے کورنئ ښځه ده - حسن خان آدم خان تـه اووئیل - زویه - دا ښکلے مسته پیغله ده - دا به دی اوغوارو - دهٔ ورته اووئیل زهٔ ښځه نهٔ کوم "

اوآدم خان ځکه دے وادهٔ تـه تیارنهٔ وو چه هغه دالکاهو مــنـه دربنا غلی نوری په خیال) ددرخانئ دمینے په رنځ اخته وو - خوکله چه دهغهٔ پلارحسن خان دخپله اند ه په بازین خان مرکه اوکړه نوهغه هم په دے خیال دآدم خان سره دخپلے لور دخپلوئ نه انکار اوکړهٔ چه دآدم خان اودرخانئ د مینے چرچے دهغهٔ غوږ وته هم رسیدلے وے او په دے خبره آدم خان ته تنګ اوددیه او دبنا غلی نوری په الفاظو کښے.

آدم خان که څهٔ هم دمخه په دے کار راضی نهٔ وو - مګر په غاره کښے

---

[1] ملی صنداره دویم ټوک کابل چاپ ص ۱۱۹

[2] ملی صنداره دویم ټوک کابل چاپ ص ۱۲۱

ځ نويدلے اوتوتيا دده په نامه شوے وه او دا يوه بدنامي وه

چه اوس ځ پرينے وے ."

او هم له دے کبله آدم خان په ناخوالئ مخ کاږ ته بوره شو چه نه خو

ددرخانئ سخلے مينے اجازت ورکولو او نه دپښتنې معاشرے اولسی روایاتو

او دتوتیا دمور پلار درضا نه په پټه له کوره تښتول يوه داسے واقعه ده چه

دآدم خان دکردارسره دمخه دخواخوږ و همدردئ کموی -

بناغلی نوری داواقعه مخکښے هم بیانئ - بازید خان دخپلے بے عزتئ د

بدل په خيال دحسن خان په خيلخانه چپاؤ اوکړلو او ددواړو غاړو نه مړی ژوبلے

اوشول - او څو ورځے پس آدم خان دپلارسره په صلا دبازيد خان ډيرے ته ورغے

دالئ تپالئ ئے ورکړے . ځښنه ئے ترے اوغوښته او

" وروسته سره خپلوان سره قراره قراری شوه - آدم خان

مخسے دخپلے پښتونولئ په سبب ددرخانئ منسوب پټ ساتی ."

دبناغلی نوری دا بیان تر دے حده خود صدرخان دبیان تصدیق

او تائید کوی چه توتیا دآدم خان منکوحه وه . وے بل خوا ته دا حقیقت هم په

ګوته کوی چه د توتیا دلیدو نه اګاهو درخانئ دمخه په زړه کښے ځا ئے

کړے وو چه مخه هم د صدرخان درروایت سره سمے نه خوری . بلکه دا چه په

ملی هنداره کښے د صدرخان دروایت خلاف میرمانئ دآدم خان سخړته دے

بنسیٔلے شوے .

د صدرخان په مثنوئ کښے چه دآدم خان او درخانئ قیصه په کوم طرز

---

له ملی هنداره ص ۱۲۱

کښې بيان شوے ده د هغې صداقت او رښتنوالے (کم از کم شعري او ادبي) ځکه موږ پوخ ګڼړو چه د صدرخان زمانه د نورو په نسبت د دے قيصے زمانې ته زياته ور نجخته ده - لازمي ده چه په هغه پسې راتلونکو قيصه ګويو په اصل روايت کښې سيوا تصرف کړے وي .

صدرخان په خپله قيصه کښې دا زيار کاږلے دے او له خپلے خوا ئے د دے خبرے خصوصي التزام ساتلے دے چه آدم خان د يو مهذب او عالي دماغه انسان په شکل کښې وړاندے کړي - د صدرخان آدم خان د خپلے ليونئ مينې د پاريدلو جذباتو باوجود يو حساسه او باشعوره انسان او دې وند خوښ رښتون هم دے - د مينې د ليونۍ سيلاب په غورزنګونو کښې هم هغه د حيا او شرافت غاړه کلکه نيسي -

کله چه هغه په رومبي ځل د درخو ملاقات له د هغې کور ته ورشي او د هغې د پالنګه پورے د ور رسيدو ازميښتونه هم سرکړي نو بيا هم د هغې د ويښولو جرأت نهٔ شي کولے - او چه د هغه ملګرے ميو آدم خان په دے کيفيت کښې ګير او وينې نو هغه ورے ټهک کوي .

چهٔ داخهٔ سلا در پيښه
شوه وتاته اے دل ريشه
چه داخل په خپل محبوب شوے
وړتلے نهٔ شي په غم ډوب شوے[1]

---

[1] مثنوي آدم درخانئ ، صدرخان خټک ، ص ۹۳

ACKU

دڅوے اے زما غمخواره

ادب اوویستم له کاره

میرو واخست په دوه لاسه

په درخو ئے اوویشت دپاسه

دآدم خان په فطرت کښے سره ددیره علمیته یوه معصومه سادګی هم لیدے شی هغه دسړنه تر ښتو پورے ددرخو په مینه کښے ډوب دے خوکله چه درخو دشوخئ نه دهغهٔ په طبیعت سکونړاره اولګوی۔

دمشکنړو سودا ګر وے[1]

اوس د لعلو ے دلال کړے

که ته ګل دکشمالی وے

په ګریوان درخانئ نال کړے

نو دآدم خان خوددارهٔ (اوساده) طبیعت ددومره ښانیښے او نازینے معشوقے دغه تیوقه هم دخپلے ښتو په مخ چیپړه اولګېږی اودهغهٔ ردعمل ددے وینا نه څرګندیږی۔

ادم خان وے چه لاشے دے[2]

دګلونو کشمالے دے

چه دمیڅو په شماره دے

دمشکنړو بنجاره دے

---

[1] [2] مثنوی آدم خان درخانئ ، صدرخان خټک ۹۲

درخو دواړه صفه زه کړم

په یو بنه ځینې یاد نهٔ کړم

او دچپل ځان په دفاع اومرسته کښې چه هم ددے خبرے جواب درخوله ورکوی نو په داسے شائسته اومهذبه پیرایه کښې چه نهٔ سیخ اوسوزی اونهٔ کباب۔

زهٔ په اصل کته باز یم[1]

چه په تا ذرکے شیدا شوم

اوس خندا په قهقهه کړے

چه زبون ستا دخندا شوم

دآدم خان دپوهے اوعلمیت په حقله چه صدرخان په چپل زړهٔ کښے کوم مقام تپالی دے صفه دهغے مناظرے نه ډیر بنهٔ څرګندیږی کومه چه دمیرماتی کورته درسولو نه پس صفه د درخانئ سره کوی ۔ ددے مناظرے شوروصدرخان د درخانئ په ژبه کوی ۔

درخو اووے آدم خانه

سوال زهٔ دالرم له تانه

چه چارپائی لیورکه انس دے

همګی واړه یو جنس دے

کل حیوان واړه یو جنس دے

فضیلت څهٔ رنګ دانس دے

او ددے په ځواب کښے چه آدم خان کومه عالمانه اوفاضلانه خطبه بیانوی

---

[1] مثنوی ادم درخانئ ص۱۳۱

هغه ځانته داسې ښکاري لکه چه ديو روماني هيرو په شان په ځان په ځپله صدرخان ولاړ وي او د آدم خان (او درخانۍ) په کوه‌اري مطالعه کښې دا اوږد عالمانه بحث يوه پرتکلفه مبالغه ښکاري - او په دې اوږد تمثيلي بحث کښې که يو خوا آدم خان د درخو دعلم او ذهن کرې په دې الفاظو کښې ستائينه کوي -

آدم اوو ے دانا دے

دې علم مکمل

ماوے تا په له اوله

په خواب کښې کړم درغله

اما شاباش ستا په دين شه

ستا په علم آفرين شه

نو بل خوا درخانۍ هم د هغه د پوهې حکمت او علميت منښه داسې کوي -

دې خو اوو ے پس آدمه[1]

دې علم دک قلزمه

دا خلعت چه د انسان دے

دے بزرګ د درست جهان دے

هيڅوک نشته له جهانه

چه په سم شي له انسانه

---

[1] مثنوي آدم درخانۍ ص ۱۳۹ [2] ايضاً ص ۱۴۵ په دې مثنوۍ کښې د ادم خان کردار د انساني فضيلت د تشخص په رنګ کښې ښو دلے شوے دے د آدم دا رتقائي تشخص د پاره اوګوري د ابن طفيل کتاب حيّ ابن يقظان -

تاچه دا علم بیان کړ

ذما ذرهٔ د درست نشان کړ

دتحسین د رحمت باد ے

زهٔ شاګرد ده ته ٔ استاد ے

... ...

... ...

اوس چه نوم دآدم اخلم

بے صفته به ئے نهٔ اخلم

په دے دروستی بیت کښے دآدم دنوم ذومعنیت دتوجه جوګه دے - هم په خصوصی معنو کښے اوهم په عموی معنو کښے - دا په دواړه غاړو دآدم خان دعلمیت ګواهی ورکوی -

خپلو کو دارد نو له دا هسے رنګ علمی مرتبه او عالمانه لهجه ورکول دصدرخان شعوری زیار معلومیږی او ددے عمل اوفکر په شا دعفے وخت خپل ثقافتی پس منظر هم بریښی - اودهرے ژبے په ساهو ادب کښے دخپلے زمانے تهذیبی او ثقافتی نقشونه ځلا کوی -

دعفے نه علاوه دادیب یاشاعر خپل چاپیرچل او شخصیت هم دعفهٔ په لیکونو کښے په څهٔ نه څهٔ شکل کښے ځان ښائی - داردو ژبے د یو پوهان په وینا

"ہر ادب میں عصری رجحانات کا وجود لازمی ہے یہ تو ممکن ہے کہ اس دور کے ادیبوں میں کچھ نظریاتی اختلاف موجود ہو - مگر اس تضاد واختلاف کے باوجود ان سب میں ایک

---

لہ ادب کا تنقیدی مطالعہ، ڈاکٹر سلام سندیلوی ص ۲۸ - ۲۹

مشترکہ چیز ضرور ہوگی اور یہ چیز اس دور کا رجحان ہوگا جسکو ہم روح عصر بھی کہہ سکتے ہیں ۔ اگرچہ شکسپیئر ، مارلو ۔ جانسن ۔۔۔۔ وغیرہ کے ڈراموں میں فرق ہے ۔ تاہم ان سب کے ڈراموں میں دور ایلزبتھ کی تمدنی جھلک موجود ہے ۔"

ترجمہ :-

په هر ادب کښې د عصري رجحاناتو وجود لازمي دے ۔ داخو ممکنه ده چه ددغې دور په ادیبانو کښې د شه نه شه نظریاتي اختلاف موجود وي ولے سره ددے په دوئ ټولو کښې یو مشترک څیز ضرور وي ۔ او دا څیز دهغې دور هغه رجحان وي چه مونږ ورته عصري روح وئیلے شو ۔ سره ددے چه د شکسپیئر ، مارلو ، جانسن ۔۔۔ وغیره په ډرامو کښې فرق دےولے بیا هم په دے ټولو کښې دالزبتھ د دور تمدني رنګ جوت لیدے شي ۔"

دا سے ښکاري چه صدرخان هم د ادب په دغه اصول پاندے (غیر شعوري طور ) عمل کړے دے ۔ د صدرخان آدم او درخانئ دوارہ داوچتو کوردونو سره تعلق لري او د صدرخان په خیال کښې داوچتو او معززو کورنو دسړو او ښځو ذهني پایه هم دغه هومره لوړه په کار ده ځکه چه صدرخان په خپله دستر خوشحال د درنے خیلخانے یو غړے وو ۔ او په معاشي توګه ددغې سترے کورنئ علمي او ادبي کارنامے هم د صدرخان په نظر کښې وے او ددغه پس منظر په رڼا کښې هغه دخپلو کردارونو فکري تجزیه هم کړے ده ۔

آدم خان یو ځنګړور او میړنے زلمے وو او دخپل مقصد او مرام د حاصلولو په لار د دنیا هیڅ یو طاقت دهغهٔ مخ نیوے نهٔ شو کولے ۔ څهٔ وخت چه هغه د درتو په کوړ کښې دهغې د نوکرانو په ګیره کښې کښیوزي او د درخو دولس نوکران

په صفه د ځلې ګواښ اوکړی او جنګ ته ئې اوګومارې۔[1]

پرته ئې ژغ کړې میته خیله

ګردن مۀ غړوله ځیله

که ته ئې وه په کمند شوې

د قضا په زنځیر بند شوې

نو دے په یواځے ځان د صفوئ مقابلے ته وراوځی۔ او په دغه وخت کښے

چه درخانئ په کومو الفاظو د آدم خان د دغے ارادے مخه وهی صفه که یو اړخ ته

د صفے د چپل تدبیر او فراست ثبوت وړاندے کوی نو بل اړخ ته د آدم خان د

فطری ترتوب او مړانے صفه ګوبنے هم په ګوته کوی دکوم چه دینا قائله ده۔

درخانئ وه دا منا دلـه

په چل یاروپو میدله

چه داشیں دلوبو درګو

څو دے ماوینی په سترګو

کله وی چه له میـدانـه

دے روان شی په اسانه

پرے ئې ژغ کړی آدم خانه

تلف مۀ شه رائیکانه[2]

---

[1] مثنوی آدم درخانئ ص ۱۱۴

[2] ایضاً ص ۱۱۴ - ۱۱۵

ستا دتور ے نام څر ګند دے

دمردی نام ډیر بلند دے

او دغه د صدرخان د حقیقت پسندۍ یو ډیر ښائسته مثال دے - چه هغه خپل هیرو په فوق العاده (Super-Natural) رنګونو کښے نه بلکه په سوچه انسانی جثه کښے وړاندے کوی - او که د روایتی داستانی میړنو غوندے دایکی یو بنده دلاسه یو ړه درځی وسله داړو کسانو له ماتے ورکول هغه مناسب نه ګنړی او ددغے حقیقت پسندۍ په وړاندے آدم خان هم سر ټیټوی۔

چه دا اوویل درخانئ

دوراندیشی کل نشانے

آدم خان توره عریانه

ډال په مخ اووت له میانه

کورته راغے اندرون شهٔ

غمژن پریوت سرنګون شهٔ

د آدم خان کردار تر دغه وخته یو ژوندے روان او متحرک کردار وی کله چه هغه درخانئ دمیرماۍ (پیرمامی) کورته یوځی - خوځه وخت چه میرماۍ د پښتو نوا لے او ناموس واړه اقدار شاته اوغورزوی او درخانئ څه د پاپاوی له ویرے او څه د زرو په زور پاپاوی ته په ډولۍ کښے واچوی نو په آدم خان باندے جهان تورتم شی او ددغے واقعاتو نه پس په نظر راتلونکے آدم خان یو مړ ژوندے او د لادو باد و پریوتے آدم خان وی چاچه بس ځان د

---

ك مثنوی آدم درخانئ، ص ۱۱۵

نصیب چارو ته سپارلے وی - دغه آدم خان صغه آدم خان نهٔ ښکاری کوم چه دده نه مخکښے موږ ته صدرخان ښکلے وی -

دده دومره لوئے واقع خلاف دصغهٔ رد عمل دومره قدرے ښکاری کوم چه دصغهٔ دقبیلے دعامو افرادو یا دده قبیلے دعامو لوستونکو او اورېدونکو کیدے شی -

دمېرمائی په دغه بے پښتو حرکت باندے آدم خان هم په صغه لهجه کښے بد او سپک وائی په کومه لهجه کښے چه پرے دصغهٔ دقام قبیلے خلقو اودصغوئی نه دوستو راتلونکو نسلونو هم لعنتونه وئیلی دی -

نو دده بدو ردو اوښېرو فریاد په لوکو کښے دصغے آدم خان ځهره ورکه شی کومه چه په ټوله قصّه کښے دلیے غوښے کړځېدله - ددغے دوره (برخے) دآدم خان نقشه صدرخان داسے راکښلی ده -

وچ کوکل په ځائے حیران شهٔ[١]

هوش ئے لاړ ملکه بے ځان شهٔ

پس له درنګه چه په حال شهٔ

په آهنګ ئے دامقال شهٔ

مېر بامیه ذوړ دکم شه

ستا په کور دغم ماتم شه

ستا په آل په فرزندانو

دځ تعین شه دکریانو

---

[١] مثنوی ادم درخانئ ، ص ١٥٢

د میرمائۍ په لاس د درخانئ پایاوی ته حواله کیدل د پښتو په جامه یو داسې داغ وو چه هغه به نهٔ یواځې د میرمائۍ د خیل سترګې کوزې کړې وی بلکه ټول یوسف منډنړ ئې په لړزان کړو خوتر کومې چه د دغو بښیږو تعلق دے د هغې اثر به د میرمائۍ په آل اولاد خدائے خبر چه کله شوے وی (د دغې په حقله په قیمه کښې هیڅ درک نهٔ لګی) خو د دغې واقعې فوری اثر به آدم خان دا اوشو -

آدم خان چه په غم کښیوت[1]

د نس خوږی په رنځ پریوت

هسې خوار ضعیف په تن شه

چه وینستهٔ ئې یار ترمن شهٔ

خو د آدم خان نمونهٔ فطرتاً مهم جو سړے په داسې حال کښې پریښودل هغه کرداری تسلسل ماتوی کوم چه د کردار نګارئ په فن کښې یو بنیادی اصول ګڼړلے شی او بجیبه خبره خو دا ده چه د دے دومره لوئے واقعې په رد عمل کښې نهٔ آدم خان څه لاس پښې اوخوزول نهٔ د هغهٔ د ملګرو یا قبیلې نه څوک راپورته شول او نهٔ د میرمائۍ د خیلخانې چا غړی د دے خلاف څه عملی قدم پورته کړلو.

پروفیسر محمد نواز طائر[2] چه په دے لړ کښې د برهان شاعر د بدلے په

---

[1] مثنوی آدم درخانئ ص ۱۵۵

[2] مجموعهٔ نظم هائے افغانی غیر مطبوعه

ق ۱۳۳ ص ۳۰

مولانا عبدالرحیم صاحب د بیان کومه حوالهٔ ورکړے دہ صفه د صدرخان د قبیلے د کومه چه د بناغلی طائی د څیړنے او مقدمے سرہ تعلق لری ، دے برخے ته هیڅ پښتنی نهٔ شی ورکولے ځکه چه که د برهان شاعر په بدله کښے د پیرمای ( میرما ئی ) زوئے کوجوخان د دے غ بے پښتو فعل په وجه خپل پلار وژلے هم دے نو دا دیوسف زو قبیلے د پت او پښتونوالے په دفاع او بچاوی کښے خو وراشے کیدے شی ولے د صدرخان د مثنوی او د صفه د کردارونو سره ئے هیڅ تعلق نشته .

د دے حالاتو نه پس د آدم خان او درخانئ د مینے ( او ژوند ) رشته ترصفحه کلدستو پورے محدوده وی کوم چه به د پایاوی د کور نه د درخانئ د چاپه لاس مرغوتی

---

له مولانا عبدالرحیم د برهان شاعر د بے د دروستئ برخے په سر کښے خپله پیش نهلو داسے ورکړے دہ .

"هرکله چه آدم خان درخانئ د پیرمائی کره راوسته نو پیرمائی خپل زوئے کوجوخان ته او وے چه پایاوی د درخانئ چنغول به درباندے ضرور بسکو اوکړی اوس درته بائده دی چه په تلوار لاړشه او خپل عزیزان له دے حاله خبر کړه چه راسره کمک اوکړی . کوجوخان ما پخو ته لاړ او آدم خان هم سره د میروبلو غوړه ته دبنکار د پاره لاړشو . په دے دوران کښے پایاوی سل روپئ بهجے پیرمائی ته ورکړے او درخانئ ئے ترے بوتله . چه آدم خان دا خبره واوریدهٔ نو داسه راپریوت په ډیران اولوید . چه کوجوخان خبر شو نو خپل پلار ئے اووژهٔ ."

په حواله د مجموعهٔ نظم هائے افغانی

یر مطبوعه ق - ۱۳۳ - ص ۳۰

آدم خان له دمینے د والئ په دود ځلو ینبت ورځے پرله پسے لیږلے او د صدرخان په وینا ۔

دګلونو په بوئ د له

ددهٔ ساه به چلیـــد له

او د دغے نه پس چه په کومه ورځ داګلونه را او نهٔ رسیدل نو دمینے بازئ باشلونکی آدم خان دژوند دلوبے نه هم لاس واخست او په وروستنی ځل چه موږ دآدم خان دخُلے نه ګفتار اورو نو ههغه ددرخانئ په نامه میږوکی ته دهغهٔ داپیغام دے ۔

چهٔ موږ لاړوکه ریښتیا کړے

تهٔ به هم ورانه دنیا کړے

له دنیـــا شــه مسا فــــره

زړو ماستــه شه حاضـــره

هغه ځائے چه تل وصال د ے

زړ رادړومه نه امهال د ے

که دِ مینه په ریښتیا وی

داپیغام به مرګ د تـا وی

مخ به ماتــه زرحضور کړے

تورلحـــد به په ما نور کړه

---

ئه مثنوی آدم درخانــئ ، صدرخان ، ص ۱۵۹

که په مینه نقصانی وے

مونږ باقي یو ته فاني وے

ته په دا فاني هوس کړه

مونږ ته غم په هر نفس کړه

دائے اووے نور ئے ساه

په آسمان لاړه له آه

او دغه شان دد ے ستر روماني او المیه داستان دمیږنی (هیرو) خاتمه په ډیر دردیدونکی ماحول او مایوس کوونکو حالاتو کښې اوشي۔

ښاغلی محمد نواز طائر په خپله څیړنه کښې دآدم خان کردار له دشکسپئر درومیو سره مشابهت ورکړے دے۔ دهغهٔ په خیال۔

"آدم خان او رومیو دخپلے خپلے قیصے مرکزی کردارونه دی او د دواړو د قیصے په اړانړه اوتنه بوده کښې د دوئ شخصیتونه غالب رنګ راوړی آدم د درخانئ او رومیو دجولیټ په ملګرتیا کښې دواقعے دابتدا نه ترآخره په دا شان حاوی ښکاری او دا دواړه جوړے د خپل داستان سره په ډیر سرعت دمینے په میدان کښې ترقی کوی ...

.... دا دواړه ذلمی څرنګ چه ظاهریږی په خپله مینه مئین وو او دواړو د خپلو مینو زړونو دتاؤ اوګرمئ دسړولو دپاره خپله خپله لار غوره کړے وه۔"

---

له ادم درخانئ یوه څیړنه

محمد نواز طائر ص ۱۱۸ - ۱۱۹

دښاغلي طاټر له خوا د دے دواړو رومانونو ترمنځه په خپلو کښے دواقعاتو حالاتو او (ترڅه حده) دکردارونو د نږدے مشابهت دا انکشاف یقیناً چه یو دلچسپ تحقیقي ذیا ددے ـ خو دشکسپیئر دالمئے رومیو په ډیر (Rational) انداز کښے دخپل موک دپاره په خصوصي توګه دا کاهو نه د زړو اهتمام هم کوی او د غالب په ژبه ـ

تیشے بغیر مرنہ سکا کوہکن اسد

ولے د صدرخان آدم د مړکیدو دپاره د زړو د تکلف هیڅ حاجت نهٔ ګنړی (ځکه چه د ژوند زړو هغه څومره کوتلی وی هغه کافی ګنړی ـ)

د دے دواړو کردارونو د انجام او خاتمے په حقله د دویو او طریقو داپلتون هم د ژوند په لوری د فکر او سوچ د هغو زاویو فرق په ګوته کوی ـ کوم چه د ختیز او لویدیز ترمنځه موجود دے ـ

## درخانئ

د آدم خان درخانئ په مرکزی کردارونو کښے د آدم خان سره جخته د درخانئ نامه راځی ـ او د کردارنګارئ د فن له دویه کوم دنګارنګی جامعیت او ښیښتیا چه د درخانئ په کردار کښے لیدے شی د هغے په وړاندے د آدم خان کردار هم پیکه ښکاری ـ

د صدرخان په قیصه کښے درخانئ د باز درے د خان لور ده ـ د دغے خان[1]

---

[1] ښاغلے محمدنواز طائر چه دخپل کتاب "آدم درخانئ یوه څیړنه" په اول مخ لیکی ـ "درخانئ د طاؤس خان ملک لور وه ـ" نو د دغے ښاغلی د سید بو علیشاه یا برهان شاعر په بدله کیدے شی ـ

نامه صدرخان نهٔ ده ښودلے - خو دومره ښکاره ده چه دآدم خان دپلار په شان ددرخانۍ پلار هم دباټيزو او رانيزو دټپے يو ياد خان وو - درخانۍ دلاثانی ښائست او ښکلے ځوانۍ ميرمن وه او په خواوُشا علاقو کښے ئے دښائست دېر زور وو ....

او دصدرخان په تهکو کښے .

چه دځوارلس کالو دا شوه [1]
په کور کښې ئے دېرا شوه
چاوے دا سکه قمر ده
چاوے دا په حُسن نمر ده
... ...
... ...
چه ئے مخ تمامی ښوی وو
په شغلو تمامی سپوی وو
چا ئے مخ ته ښېرا دېره
کتے نهٔ شو بے خا دېره
د خاصے او وه حجابه
دے په سرکړل صاف تر آبه
له مشرقه تر غروبه
له شماله تر جنوبه

---

[1] آدم ددرخانۍ، صدرخان ص ۵۶

نهٔ وه هیڅ ستر کو لیدلے
دا رنګ حسل بنائسته ښکلے

د صدرخان په دے بیان کښے د داستانی روایت شعری مبالغه څرګنده ښکاری وے بیا هم دوے رومانوی هیروئن په حقله د دوستونکو او اوریدونکو تصوّر هم دغسے پیر رغولے شی دکوم ضرورت چه صدرخان نهٔ ګنړلو.

د درخانئ پیلار د ښځے د تعلیم او زده کړے هم پوره بندوبست کړے وو او د ښځے د تعلیم او تربیت په غرض ئے په کور ملا ساتلے وو - د درخو د ذهنی رسائیی فهم او پوهے په لوری هم صدرخان اشاره کړے ده کوم چه په راتلونکی ئی وخت کښے د ښځے دکودار سره پوره پوښان والے او هم آهنګی ساتی.

پهٔ اندک مدت ملا شوه[1]
په معقول منقول دانا شوه
سخن سنجه سخن ګو شوه
پوه د علم په نکتو شوه

د وړوکوالی نه تر ځنوی پیغلتوبه پورے درخانئ پوه حیاداره خو شوخه او خوش ارواحه او د سیلانی طبیعت بے غمه بے پرواه جینئ وه - د ښځے د یرے ملګرے (سهیلئ) هم وے چه په دغو تهولو کښے د باز درے بسکئ دے ته دیره نژدے او عزیزه وه .....

---

[1] آدم درخانئ صدرخان ص ۵۶

دځنو دوایاتو[1] له دویه ښکلئ ددرخانئ دتروږ لور وه . صدرخان پ
ې حقله وائي .

ښې ښې جونه به خوشي کړې[2]

ورسره وې نیک فرهنگې

ناست ولاړ ئې په کلزار وو

تل ئې سیر به د بهار وو

بازدره چې پاس بالا وه

مغه هم جنت آسا وه

په مغه کښې ښئ نامه

هم بنه جل وه کل الله امه

په ښائست کښې بې نظیره

ذخپل کلي د قول میره

چې اختر به شو هر کله

دا به سیل وته وتله

---

[1] دسید بوعلیشاه دقیصې دابیتونه په ښکاره دول دې اړخ ته اشاره کوی
چې په بره بازدره د درخو تروږ وه

اوسید له هلته مغه په خپل کور وه

دمغې وه یوه لور ښکلئ ئې نوم وو

دښائست آوازئې هرچاته معلوم وو

[2] مثنوی آدم درخانئ ص ۵۶ - ۵۷

درخانئ به هم پوېا شوه

سیلانئ به په عید دا شوه

له هغه به بسکئ شوه

له دے لور به درخانئ شوه

په یوځائے به دواړه خورے

وبله یوځائے شوے حضور ے

په دے بیان کښے د درخانئ او بسکئ دواړو د بناښت او خوش مزاجئ مذکور شوے دے او په اسانئیا سره بندره دا اندازه لګولے شی چه درخانئ فطرتًا خوش طبیعته او د ښځلی ذوق مېرمنه وه - او څه وخت چه بسکئ هغے ته په ډېره مینه او ځله چېل دا خواهش ښرګند کړۀ چه د هغې (بسکئ) په وادۀ کښے د درخوګـدون لازمی دے ځکه هغه به د چېل وربل غوټه پرانه نیځي - نو د درخانئ جواب هم دا د ول وو چه ترے نه د هغې دا خلاص او مروت ښکاره نخښے ښرګندېږی .

دۀ خو هم وعده محکمه

ورسره وکـره دمد مه

زۀ به غوټه بے لتانه

د وربل نه کړم پرېشانه

د صدرخان د دے بیتونو نه دا هم ښرګندېږی چه د بسکئ سره د درخانئ رشته محض د همزولتیا او ملګرتیا رشته وه - ځکه د وینے په

---

له مثنوی آدم درخانئ ، صدرخان ص ۵۸

په رشته کښې بیا دیوے بلے په ودونو کښې دگډون دپاره ددے قسمه وعدو او لوظونو څهٔ حاجت کیدے شو - او بیا تیرےپرے لادا چه څهٔ وخت دبسکۍ وادهٔ جوړ شو او خلق راغونډ شول نو بیا درخانۍ ترهغے رانغله ترڅو چه دبسکۍ په خواهش دهغے مور ورپسے کورته نهٔ وه تلے -

په دغه موقع چه دبسکۍ مورته درخانۍ کوم جواب ورکوی دهغے نه دهغے دحیا داری اوستر پردے دپابندۍ او دپوخ اولسی شعور اند ازه لګی.

ترُدا وړاندے چه سیلونه[1]

مونږ کول هلکے ووسه

اوس مو ستر زوړ اور دے

ولاړ عیب ناست ے هنرد ے

عیب ته زهٔ خرنګ پاخمه

وهنرو ته شا کومه

خوکله چه دبسکۍ مور ورته زارۍ اوکړے او ډیرونه سوګندونه ئے ورته واچول نو بیا هم درخانۍ دخپلو تللو دپاره خپل شرطونه وړاندے کړل -

یُو دا شرط چه کل همسا ے[2]

همسایه دی که څوک سیا ے

---

[1] مثنوی آدم درخانۍ صدرخان ص ۶۱

[2] آدم درخانۍ صدرخان ص ۶۱

دوئی له ما روانے نه کړه

په حرمت ئے دریغ ومهٔ کړه

دویم دا چه وورے درشم

هسے ځائے د مستئ شم

چه د نرو د زنانو

زهٔ ستوره له چښما نو

دسِتی اوړدے به ددے نه زیات ځوک خیال اوساتی چه د درخانئ په شان[1]

دسړو سره د بنځو نه هم ځان پټوی ۔ او دد غے د پاره خو دهغ وخت د

روایاتو له مخه هم څه جواز نهٔ وو ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔

داسے بنکاری چه درخانئ سره د پردہ دارئ نه علاوه د خپل

بے مثاله ښائست احساس هم وو ۔ ۔ ۔ ۔

کنی دهغ داشرط دخپل وخت او یوے علاقے د زنانوؤ د پاره هم د

حیرانتیا خبره وه ځکه خو د بسکئ په وادهٔ کښے زلمی جونه د پیرصالح نه

راتاؤ شول او هغهٔ ته ئے ددے خبرے د څهٔ مناسب حل کتلو د پاره په

ګړه خواست اوکړو ۔

مونږ عرض لرو پیره

د درماندو دستګیره

دا نه دود نهٔ روایت دے

بلکه داستر بدعت دے

---

[1] آدم درخانئ، صمدخان ص ۹۳

درخانئ د نصیحت شی
چه بېزاره له بدعت شی

او د پیر صالح غونډے رسیدلی او تجربه کار انسان هم د دیر فکر نه پس ددے ګوان کار دپاره په آدم خان ګوته کیښوده ۔آدم خان چه هم د نارینه حسن او ترتوب پیکر وو او هم یو منلے موسیقار وو شاید چه پیر صالح ته ددرخانئ د خوش ذوقئ په حقله څهٔ علم وو۔

دآدم خان او دهغهٔ د ملګرو په راتګ چه محفل څو مره ګرم شو او د هرچا په خلهٔ دآدم خان ،آدم خان نعرے شوے نو د درخانئ غونډے حیاداره او سترمنه بی بی هم د اووُ ځادرو له حجابه رابهر شوه دآدم خان رباب چه د درخو د روح تارونه اوچیړل نو دهغ په زړهٔ کښے هم دلافانی مینے چپے په غورزنګو نو شوے ۔اودیوهٔ آدم دپاره دټول عالم په وړاندے سرتوړه اودریده او صدرخان په دے منظر کښے څه په هوښیارتیا دخپل نوموړی پلار ددے شعر مجسمه ترجمانی کړے ده ۔

عقل[1] سل د مصلحت بند ونه جوړ کا
چه د عشق سیلاب پرے راشی واړه نوړ کا

نو ددے نازکے مرحلے د راتلو نه آګاهو هم درخانئ د ونیځے نه دآدم خان په حقله په رموز کښے دهغهٔ داصل او ذات پښتنه کوی۔

داصفت[2] چه دوئ زما کا ددیدن ے تمنا کا

---

[1] کلیات خوشحال

[2] مثنوی آدم درخانئ ص ۷۴ ، ۷۵

دے ګوره پر ے خبر شه
خبر راوړه شتاب تر شه
په ذات څوک دی څه کسان دی
دوئ مغل دی که افغان دی

اوکله چه وینځے د درخو ښځه طبع تسله اوکړه نو دهغے نه پس دځان او جهان نه بے پروا دځنګل میڅن په ویاش ے اوددیده اوچه د آدم خان سره ے سترګے څا څخ شوے نو دعقل او هوش لمن ئے دلاسه اوښوئیده ۔

څو ښځه جدا وه له تمیزه
دا ولاړه وه عزیزه
چه په هوش شوه داهوښیاره
له ولاړ شوه سکون ساره
چه دا پر مخ پر یوتله
خلقه ولاړه شوله

اوهم له دے ځایه دهغے غم لړلی داستان ابتدا اوشوه چه انجام ئے د دے دښتین عاشقانو دځوانئ دمرګ نه سیوا بل څه نهٔ شوکیدے ۔

ددرخانئ په شخصیت کښے دظاهری جاذبیت نه زیاته دهغے دباطنی ښائست اوکرداری خوبو هم لویه برخه ده ۔ هغه دحیا ، پاکئ او ښیښتو په صفتونو نمانځلے یوه وفاداره اوخوش اروا حه پیغله وه اودخپلے زمانے په معیار دهغے علمی او فکری مقام هم ښهٔ اوچت وو ۔

---

[1] مثنوی ادم درخانئ ص ۸۱

شوخي او بذله سنجي د درخو د طبيعت يوه ځلانده حصه وه او کوم وخت
چه آدم خان د مغوئ په کوڅه کښې د مځې سره ملاقات له تللې وي نو درخو د هغه
ډېرلو په خيال په هغه داسې ټوک کوي .

د مشکنړو سوداګر وې

اوس د لعلو ئې دلال کړې

که ته ګل د ګلشا لې وې

په ګرېوان درخانې نال کړې

او چه په دې خبره د آدم خان طبيعت د ړونه شي نو هغه په ډېره چالاکۍ
او هوښيارتيا د آدم په زخمونو پټۍ ږدي .

که ته ځم شو پړوانه يې

زه ستا شمع غم د تا کړم

ته لا نه يې پيدا شوې

زه لمبه په سر بر پا کړم

آدم خانه ميته خيله

د غوري د ښې خان يې

زړه دې ډک په درګوهر دې

په خبرو دُر افشان يې

زه په مثل يو صورت يم

ته زما د صورت جان يې

---

له مثنوی آدم خان درخانۍ ص ۹۶ - ۹۷

ACKU

اوکه څوک د درخانئ په دے شاعرانه قسم خیالاتو د مبالغے ګمان کوی نو هغه ځائے نهٔ لری ځکه چه صدرخان په شوروکښے دخپلے میروټن په حقله دا تفصیل ورکړے دے چه هغے په کوم د مُلا نه د علم نکتے زده کړے وے او دهغه په الفاظو کښے.

سخن سنجه سخن ګو شـــوه
پوهه د عـلم په نکتو شوه

د درخانئ د علمیت اندازه دهغے مناظرے نه ډیره په ښهٔ شان لګی کومه چه د انسان (آدم) د فضیلت په موضوع دهغے او آدم خان ترمینځه شوے وه. او دخپل علمیت احساس هغے ته په خپله هم شته ځکه خو په پوخ اعتماد دخپل استاد په وړاندے دخپلے بے غرضه مینے اظهار په پوهه عالمانه پیرایه کښے کوی.

دا [2] د عـلم نتیجـه ده
چه په ما کښے دا شغله ده
دا شغله دعشق بازی ده
نهٔ بازی ده شاه بازی ده
دے شغلے ته عقل حس دے
نام وننګ ورته عبث دے
چه دچا عـلم حاصل شی
نور ئے دا شغله حاصل شی

[1] مثنوی آدم درخانئ ص ۱۳۱ نه ۱۲۷

[2] مثنوی آدم درخانئ ص ۱۰۲

حقیقت پسندی او حقیقت پرستی هغه ځیزونه دي کوم چه د درخانئ د کردار لازمی جزونه دی او دد ے عملی مظاهره هغې دد ے رومان په مختلفو برخو کښے ځائے په ځائے کړے ده . د آدم خان د شخصیت دشان او دبدبے نه هغه د خلقو په وینا اثر نهٔ اخلی ترڅو چه ئے په خپلو سترګو لیدلے نهٔ وی او ترکومے چه ئے په خپل ځان د هغهٔ د فن چاج اخستے نهٔ وی او چه دا مرحلهٔ هغه په خپله اوسئ اوګوری نو هله ئے پرے زړهٔ ورشی .

د مینے د جذباتو جوش اوګرمی هرڅه د ځان سره په مخه وړی خو درخانئ په دا سے موقعو هم اکثر د هوش لمنه دلاسو نه نهٔ اوباسی . په ډیرو ځایونو هغې د جذباتی عمل په وړاند ے د عقل او مصلحت بند وتړلی دی او دد ے یو ښکلے مثال په هغه موقع ورکوی څه وخت چه آدم خان د درخانئ د ګنړو نوکرانو په ولقه کښے راګیرشی - دا د هغې پوهه او تدبیر وی چه په عقلی دلیل باند ے خپل مئین د یو بے ځایه مرګ د خطرے نه وچار باسی .

پرے ئے ژغ کړ آدم خانـه

تـلف مهٔ شه رایـشکاسته

ستا د تورے شان څرګند د ے

د مړو دئ نـام د بلند د ے

چه د غلهٔ مرانه تیښت ده

ستا مړانه اوس د کینت ده

---

لهٔ مثنوی آدم درخانئ ص ۱۱۵

هغه ځائے چه تېښت لازم دے
چه مړانه کا نادم دے

د درخو سره د خپلو ماحولی بندېزونو او چاپېرچل د دود دستور احساس هم
شته. رښتیې مینه هغه د انسان پېدائشتی حق ګڼړی او د مینې صادقه جذبه
د هغې په خیال کښې بنده د علم او عرفان هغې مقام ته رسوی چرته چه د عقل وزرې
سوزی ځکه نو درخو د دغې روایتی بندېزونو خلاف بغاوت له غاړه خو ورکوی
ولې دا دے د ومره خطرناک قدم د پورته کولو نه اګاهو هغه په عقلی او ادراکی
توګه خپله مور په دے قائلول غواړی چه هغه هم د درخو د دغې ارادے مرسته
او تائید اوکړی - او چه مور هغې ته د پېغور په لهجه کښې وائی -

په واده کښې شوے سرتوره
ننګ د نه کړله پېغوره
بیا په دا همه د پاسه
مینه خیل د بے حواسه
له خپل ځانه په پانګ کړې
نه د شرم نه د ننګ کړې
بیا دوباره د په خله
را وست تر خپل محله
نه له پلاره تا پروا کړه
نه له ما د خه حیا کړه

---

[1] مثنوی آدم درخانئی ، ص ۱۲۰

ACKU

نهٔ له وړونږو ستا هراس وو

نهٔ له کلي ستا وسواس وو

داکوم شرم دے کوم ننګ دے

داکوم عقل کوم فرهنګ دے

داکوم دین کوم شریعت دے

داکوم ستر کوم عصمت دے[1]

نو ددغے داړو طعنو او پیغورونو احساس په چپله ددرخانئ سره هم وو ځکه خو هغه دځپلے بے وسه مور په وړاندے دخپل جرم اعتراف کوی۔

کاشکے زهٔ لیونئ وړاته

په وجود نهٔ وے لتاته

که تازه نهٔ وے زوو لے

ته به نهٔ وے پخښیدلے[2]

نو ددے باوجود هم درخو په دے خبره مطمئنه ده او دائے پوخ یقین دے چه دهغے مینه پاکه ده او دپاکے مینے په لمن که د دستورونو دنیا هر تور لګوی نو دا یوه معصومه ګناه ده۔ او په دغه داغ بنه په واز کومی او معصومے بے باکئ هغه دمور په وړاندے اقرار کوی۔

زما عشق نه دشهوت دے

دارښتینے محبت دے

---

[1] مثنوی آدم درخانئ، ص ۱۲۱

[2] ایضاً ص ۱۲۲

لکه مینه د پتنګ ده

په چراغ دامیے رنګ ده

لکه مینه د بلبلو

په جمال وینے د ګلو

په آدم دا رنګ عاشقه

مورے ما ګڼړه صادقه

اوهم ددغے تقریر اثر وو چه بے بسے مور د لاچارے لور دپیاکلی شوی منزل د لارے نه دګلو مجبوره و بندیزونه پورته کړل او په ناخوالئ ئے هغے له دآدم خان سره دتلو اجازه ورکړه ۔

د میرمانئ له کوره چه دهغه د بے ننګئ له کبله درخانئ د پایاوی کورته په زور اوجبر اولیږلے شوه نو دغه د دوؤ مینو ددے المناک اوښه‌خوا داستان معراج (کلائمکس) وو ۔ او ددے نه پس که درخو خپل زړه چاوړی آدم خان له د پایاوی د کورته د مینے ګلدستے لیږلے نو هغه هم په دے پوهه وه چه داهم ځان غلول دی اوهم آدم خان ..... خو بیاهم ددے ګلونو د څو ورځنی وږموسره د دواړو مینو د ساه رشته تړلے وه ۔ او چه څهٔ وخت درخانئ ته غم نتلی میرو دخپل یار د مرګ خبر راوړهٔ او د آدم خان پیغام ئے ورته واوړولو نو هغے بے د څه وقفے اوتحمل نه هغه څهٔ اوکړل څه چه آدم خان غوښتل ۔

دآدم خان اودرخانئ د مرکزی کرداروںو نه علاوه پاتے نور کردارونه څه خو ددے قیصے ضمنی اوڅهٔ مدد ګیر کردارونه دی چه په هغو کښے بسکئ میروګے ۔ بلو ۔ توتیا ۔ پایاوی ۔ پیرصالح ۔ د درخانئ مور۔ تورهٔ

استاذ او میر بابے تهول شامل دی .

نو په دے تهولو کښے د میر بابی کردار بحث طلب دے. چه هغه په چل کودکښے پناه اخستو میلمنو سره غداری اوکړه او په پیسو ئے هم چله پښتونرخه کړه او هم چل عزت - او هم د دغے ناولی حرکت له کبله دارو ماتی داستان خپلے المیه نتیجے ته اورسید .

که د هغهٔ په خیال کښے درخانئ د پایوخان چنغله وه او د هغهٔ په وړاندے آدم خان او درخانئ ته پناه ورکول د پښتو په دود غلطه خبره وه یا میر بابے د پایوخان له ویرے او د هغهٔ د رعب له وجے د درخانئ د ساتلو ځان جوګه نهٔ ګنړلو نو په هغه ځائے به ورته داول نه انکاری شوے وے .

خو داسے ښکاری چه د میر بابی په زړهٔ کښے د مخکښے نه غل ناست وو او هر کله چه هغهٔ یو ځل دوئ په چله پناه کښے واخستل نو بیا له هغے پس درخانئ پایاوی ته حواله کول ښکاره منافقت ، بے انصافی او بے پښتو خبره وه - اوکه د صدرخان د قصے د نورو وقوعو په ریښتینګئ زمونږ باور شته (کم ازکم د قصے په ادبی صداقت) نو بیا د دے نه د انکار څهٔ جواز دے .

میړهٔ بابی وے چه جهان دے

هم په دا زړو ودان دے

په دا زړو سربازهٔ شی

هم ذاو زاو په ذرشاندهٔ شی

معشوقه چه د مرحبا ده

په دنیا کښے دادنیا ده

---

له مثنوی آدم درخانئ ، صدرخان ص ۱۲۷

ACKU

خو بناغلی محمد نواز طائرؔ په خپل کتاب آدم خان درخانئ ربوه څیړنه)
کښے د میرمائی (میرباهی) په دفاع اومرسته کښے خپله رائے داشان څرګندوی.

" په میرمائی دا الزام عموماً لګوے کیږی چه هغه د
پایاوی نه د درخو په سر سل روپئ رشوت خوړلے وو. او درخانئ
ئے پایاوی ته بیرته حواله کړے وه. ځنو شاعرانو دے خبرے
له ډیره هوا ورکړے ده اونهٔ یواځے دا چه میرمائی ئے ددے
خبرے مجرم کړے دے بلکه د یوسفزو ټوله قبیله ئے په
دے کښے رالړلے ده ......... خو هغه د هوښیارانو متل دے

چه د وینځے ځیرے ګویان ته هر څوک ګوری
او د میرمن خوږ زړهٔ څوک نهٔ وینی.

که میرمائی داسے څهٔ کړی وی نو شاید چه دخپلے لور د
مستقبل د غم نه ئے کړی وی. ریښتیا خو دا ده چه په دے
وخت کښے دآدم خان نه په خپله خطائی شوے وه ځکه چه
هغه نو اتے وروستل بے وخته اوبے موقعے وو خو سره ددے
بیا هم دمیرمائی داحرکت دپښتو دپت او ننګ د دستور
نه خلاف وو."

د صدرخان په دے قصه کښے د توتیا (طوطیا) نوے
جینئ ذکر په یوه موقعه دآدم خان د منګوړے نجُے په دول ضرور راغلے

---

له آدم درخانئ یوه څیړنه محمد نواز طائرؔ ص۱۳

دے خودا ذکر چرته هم نشته چه کنی توتیا دمیرمانی لور وه . په ملی هنداره
کښے هم توتیا نوے جنئی اګرچه آدم خان ته ورپه غاړه شی خو هغه دمیر مانی
یا میربانی لور نهٔ وه او بیا دا خبره هم ډیر عجیبه ښکاری چه آدم خان دومره جرأت
دیاکم عقلتوب) څنګه کولو چه ټول وطن کښے هم دسخرکور دهغه په لور بانډے
دبن وروستو دپاره غوږ ه کړی . او بیا دمیرمانی غونډے بے ضمیره انسان رچه
په سلو روپو خپله پښتو خرڅولے شی) ددومره لوئے سینے څښتن څنګه شو.
چه دخپلے لورکور ورانوی او آدم خان او دهغه معشوقے ته زکم ازکم په شوره
کښے) پناه ورکولو ته غاړه ایږدی .

# دلے اوشهئ

دپښتو په ډېرو رومانی قصو کښې دتوردی اوشهئ قیصه هم ډېرشهرت لری - او لکه دنورو اولسی رومانونو ددے قصے هم ډېر داستونه دی او ډېر روایت دپلونه واضحه اختلافات لری -

دپښتو اکیډیمئ له خوا چه دصدرخان خټک لیکلے شوے ددلی اوشهئ په نامه دمثنوی په طرز کومه قصه چاپ شوے ده دهغې افسانوی حیثیت دنورو په نسبت عقل ته نزدے او زیات مستند معلومیږی . په دے موضوع د مختلفو قیصو دکتنے او پلټنے نه پس چه ښاغلی عظیم شاه خیال بخاری دصدرخان دمثنوی په مقدمه کښې دخپلے مطالعے کوم عرق وړاندے کړے دے . دهغې له رویه ددے قیصے دمقبول اولسی روایت خلاصه داده .

دلے[1] د پچ دعلاقے اوسیدونکے یو زوروَر غل یا ډاکه مار دے . دے دآباسین نه راپورے علاقه کښې په شهئ نومے یوے پېغلے مئینږی - شهئ په دوادهٔ په رومئ شپه یو ټهک شان کوی چه څه داکبر باچا دنورهار ډېرا له راوړے دے . چه دا سے په غرے پالنگ ته راخیژی . په دلی داخبره بده

---

[1] دلے اوشهئ ، مقدمه دخیال بخاری ص ۴۴

ګی - دے هم دغه وخت د اکبر باچا د لور د ملار راوړولو په غرض روانیږی.

دے چه ډیلی ته اورسی او په ځهٔ کمال هنر (یا کنسوړ کولو) د شهزادګئ کوټے ته اورسی نو هلار تړے راپیټ کړی خو په دغه اوان کښے هغه اوښوے شی او اکبر باچا د دے د وژلو حکم جاری کړی - خو په دغه اوان کښے شمشی ځان د باچا دربار ته رسولے وی او دمغه په وړاندے چل زاری فریاد اوکړی او باچا ته چه د دے دغلا اصل غرض معلوم شی نو هم ورته بخښنه ورکړی او هم ورته انعام .

بناغلی خیال بخاری چه د دے قیصے دتحقیقی کاوشونو په لړ کښے دچا دکتابونو ذکر کړے دے په هغو کښے د صدرخان نه علاوه د باقی . معظم او د محمدګل نوری (ملی هندارہ) شامل دی۔

دباقی د روایت لهٔ مخے .

دےؑ په بچ په هزاره کښے اوسیدلو

بهادر وو په چل وخت کښے پهلوان وو

کور ددهٔ وو په شینکی کلی کښے یاره

وړوکے نهٔ وو ډیر اوچت په خاندان وو

غلا د اکے به ئے کولے دا ئے کار وو

همیشه به دے ډیره په بیابان وو

په دغه رنګ د معظم د بیان نه دا ثابتیږی چه دے دوارهٔ په شپه د شهئ په پیغور باندے د اکبر باچا د لور د هار راوړلو دپاره روانیږی.

---

لهٔ مقدمه د دے اوشهئ ، صدرخان ، ص ۷۴

خهٔ ږدهار دشهزادګئ ماله داوړه سه

تهٔ چه دا سه زړهٔ وړ راغلې زما جانه

بناغلی محمدګل نوری په چنله قصه دځ او شهځ کښې هم ددغو قیصه ګوی

سره خلهٔ په خُلهٔ دے یو غل او ډاکه مار ښودلے دے.

"ته په دغه زمانه کښې په دغه وطن کښې یو خو داناستی غل

دے - چه دے مؤمین ی - دغه دے فکر وکی چه دادونه عمر

دے غلا اوکړه ته ته خدائے دکور کړے او نهٔ دځائے - یه راسه

دباچا دلور وکلا ته به په یوه چم ورولوبږم یا مر یا موږ - "

دبناغلی نوری نوره قیصه دبرنو دواړو روایاتو په نسبت

نوره هم دداستان دفن په لور ورکړه شوے ده ځکه چه دغه په قیصه

کښې شهځ دیو باچا لور وه چه داوو زامنو نه پس پیدا شوے وه او باچا

دزلیخه دسره سمه په یوه قلا کښې بندیوانه کړے وه چه دینا پرے خبر شی -

خو ددے ټولو روایتونو برخلاف دصدرخان واقعه دعام ژوند او حقیقت سره

ډیره نښته اونږدے ښکاری دغه په قیصه کښې دے یو غل یا ډاکه مار نه بلکه

یوشته من نومیالے او مشهور زلمے دے - ددے نه علاوه دصدرخان په قیصه

کښې په عموی ډول دغیرضروری او دعقل او فطرت خلاف واقعاتو او پیښونه

ډډه شوے ده -

---

۱ مقدمه دلے او شهځ صدرخان ۲۴

۲ سلی هنداره (دویم ټوک) ص ۱۰۳

دښاغلي خیال بخاري په خیال ـ

"[۱] دا قیصه په ډېر ښکلې طرز کښې لیکلې شوې ده او د پښتو په مغو
یو څو قیصو کښې ده چه مونږ ته د پښتو ادب په غوره کتابونو کښې
شمیرو ـ صدرخان دد ې قیصې بنیاد په اصلي معنې کښې د فارسۍ ژبې په
مثنوي کانو ایښې دے او تقریباً هغه ټولے خوبۍ او خصوصیات چه د
دا سے قسم په اوچتو قیصو کښې لیدے شي په دے کښې ئے راجمع کړي دي.
او حقه دا ده چه د شاعرۍ حق ئے ادا کړے دے ـ"

دد ې قیصې په مرکزي کردارونو کښې هم د آدم خان او درخانۍ
په شان د دے او شهۍ نومونه د ټولو په سر کښې برېښي ـ او د قیصې په ضمني
او ثانوي کردارونو کښې د شهۍ د پلار حیات خان د مغل تربور او بو ړۍ کردار ته
ترڅه حده په قیصه کښې څه انفرادیت او په مغ باندے څه اسـ
قائم لري ـ

**ددے کردار** د صدرخان دے لکه چه مخکښې ئے ذکر شوے دے
ددے قیصې د نورو روایتونو په عکس یو غل داکه مار نه
بلکه د معاشرے یو محترم او باعزته غړے دے ـ د صدرخان په خیال دے د د هٔ
لقب وو او اصل نوم صدرخان هم د ځلو لوستونکو نه په دے شعري معما کښې ساتلے دے.

د شهۍ د عاشق نوم که له ما غواړے[۲]
سروګل سنبل که ګوره او به ویا ړے

---

[۱] مقدمه دے او شهۍ پښتو اکېډیمی چاپ

[۲] دے او شهۍ صدرخان خټک ص ۱۷

اول سرو ور پسے لمن دگل کړه

بیا په میان کښے ئے ترکیب سروسنبل کړه

اسلام نوم له دے جوفونوکشیده کړه

اوس لقب ئے له ما واوړه شنیده کړه

په لقب دے باله شو دلا زاک وو

وغمونو ته ئے شاوه طربناک وو

او صدرخان دخټک دغه پیاوړی هیرو چه په عام اولس کښے ددے

یا تورے په نامه مشهور دے د پیښتنکلو او دغه دکردار دجوتو اړخونو او

خصوصیاتو تفصیلی ذکر په شوړو کښے په یو ځه په دے پستونو کښے کړے دے ۔

ډیر عیاش عالی همت په رنگ رنګین وو

ډیر قلاش را مې صفت پښنګ آئین وو

ډیر په توره مړے رستم صفت وو

ډیر په ورکړو ورکښده حاتم همت وو

ډیر مئین دعالمانو په صحبت وو

له تیمگرو ناشیخانو په نفرت وو

ډیر مئین دسرودیانو په سرود وو

ناست ولاړ ئے په بوستان وو یا په رود وو

ډیر خبر په قوانین دم اشعار وو

هم په علم دسرود استاد هوښیار وو

---

ئه دے وشهئ صدرخان خټک ص ۱۷

یا به ناست په بنه مجلس وو دیدارانو

یا ئې ښکار په غرو په سم وو له ښکاریانو

په همت لکه شاهین په زور عقاب وو

په ښائست لکه طاؤس طوطي خطاب وو

لوړ په لوړ ئې د خوبیو آوازه وه

ورځ په ورځ ئې آوازه تازه تازه وه

لنډه دا چه د صدرخان په ذهن کښې د خپل پیاوړي هیرو او مېړني انسان د تصور پوره کوټلو د پاره کوم آئیډیل د مجسم نه موجود وو - هغه ټولو خصوصیاتو او خوبو ته صدرخان دده په کردار کښې یو په یو اشاره کړې ده - خو دده باوجود هم صدرخان دده نه یو مثالي کردار نه دې جوړ کړې ( دا په وروستو دده کردار د تفصیلي مطالعې نه معلومه شي ) خو دده د دغه خوبو او صفتونو د قیصې په سر کښې په ذکرولو او زباتولو کښې د صدرخان د رسا او غرضي ذهن ایسکي یو غرض د قیصې د پلاټ اړخ ته خصوصي توجه کېدې شي ځکه چه د قیصې په پلاټ کښې دده رومان پېغله ( هیروئن ) شهمئې په نالیدلي دده بانده د هغې صفتونو له مخه مئینه شوې وه کوم ئې چه د خپلو همزولو د خُلې نه اورېدلي وو او د کومو صفتونو آوازه چه په ټوله علاقه کښې تر لرې لرې تللې وه -

ټوې جیني دده صفت آغاز کړ

یو حل په خوخو خُلې ئې بازبان کړ

---

له دده اوشهئې ص ۷ - ۲۷

هغه نور ے چونه ځم واړه يکباره
په صفت د دے سر شو ے بسياره
همره ډيرے ترے صفت په رنګ رنګ وکړ
چه زرغون ے د شهئ په خاطر زړه کړ

او کله چه شهئ د دے د خيالی مينے په رنځ کښے د ځان او جهان نه ورتيره شی او د هغے پلار حيات خان يوه بوډئ د دے په تپوس پوښتنه پسے اوليږی نو په اول ځل د هغے کلی ديوے ښځے د ځلے نه هم بوډئ ته او هم د قبيلے لوستونکو ته ښکاره شی چه د دے د ځلے علاقے او قبيلے يو نوموړے سردار د ے او دا دا زهم په ډاګه شی چه د دے په کور دوړاندے نه دوه ښائسته ارتينے ناستے دی. خو د هغے باوجود هم د شهئ په خيالونو کښے سرګردانه ګرځی -

او کله چه بوډئ د دے ته د حيات خان له غاړے د شهئ د واده پيغام ورکړی نو لکه په مړ د ے کښے چه نوے ساه د اچوکيد ے وی او هغه د بوډئ په وړاندے د شهئ د مينے اقرار کوی -

ځه ښه ئے نام د شهئ ماد ے اوريد ے
له هغې ورځې ے زړه د ے پسے ستلے
هسے رنګ ے شهئ ناسته ده په زړه کښے
که بل نوم اخلم شهئ راشی په خُله کښے

د حيات خان د پيغام په اوريدو د دے خوښونه لکه چه ښتيا شی او په د غه ځائے چه د دے د شهئ د واده په غوښتنه پسے روانيږی هغه د

---

ـله د ے او شهئ ، صدر خان خټک ص ۸۴

خپلې قبیلې د سردار او خان په حیث د خپل خپل د سردارانو جرګې ته داخېږو ورانه کوي ـ

دغه وو سردار بچه په دلاراک کېنې

خیلخانه اولس خپل خیل ئې وو په واک کېنې

هیڅ سرے ئې په خپل قام کېنې له فرمانه

بېرون نهٔ وو پوخ سردار وو زما جانه

سرداران ئې د خپل قام وارۀ طلب کړل

په جرګه په خاص مجلس ئې مرتب کړل

... ...

... ...

د دے ئې قامه څه معلوم کړئ له زبانه

زهٔ شهئ غوارام صباله حیات خانه

تاسے څه په د اباب وائ راته وائ

د اکار کړمه یا ئې نهٔ کړم څه ونمائی

وارۀ اووے چه زمونږ ه چارهم داده

په هر څه چه ستا رضا زمونږ رضا ده

دغے د دیرو صفتونو او خوبو سره یو توهم پرسته بنده هم وو.
د اتوهم پرستي کیدے شي چه دهغه زمانے دخلقو یوه اجتماعي اولسي شیوه ده ـ څکه خو چه صدرخان کله د دے په حقله وائ ـ

---

له د دے اوشهئ ، صدرخان خټک ص ۸۷

په شنبه په دوشنبه به ن مادردره[ل]

د مشرق په لوري هرګز نه ووت له کوره

چه به ورځ دا دینې یا به اتوار شهٔ

د مغرب په لوري به منع له رفتار شهٔ

سه شنبه یا چهارشنبه به ئې اے لاله

احتیاط کړهٔ له رفتن د شماله

... ...

... ...

پنجشنبه یا دوشنبه چه تل سنت دی

یا چه پس له جمعې یاد په روایت دی

په دا درے ورځې به ته د ځے له کوره

دا عمل ئې وو په هره چار کښې وروره

ښودا سے ښکاری چه صدر خان د خپلو معاشرتی توهماتو په رنړا کښې د دے د کودار د ځنو نوړو اړخونو په شان د دے اړخ رهنمائی هم کړے وی -

هرڅنګه چه وو ولے د حیات خان ته ځان اورسولو - د مغه زړهٔ ته پریوت اوشهئ ئې د دهٔ په نامه کړه - ولے په د غه منځ کښې د حیات خان ورو نړو عزیزانو د دے خپلوئ خلاف آواز پورته کړو - خو حیات خان بیا هم په خپله ژبه ټینګ ولاړ وو او نتیجه ئې دا شوه چه د مغهٔ تربورانو د دے

---

ل د دے اوشهئ ، صدر خان ختک ص ۸۸

خلاف د جنګرېز اعلان اوکړلو - او په دغه وخت کښې چه دلے شهئ ته د استاذی په خله کوم خبر وراولېږلو د مغې نه د دلے د غیرت ، اخلاص ، ذړورتيا او خود اعتمادئ اندازه ډېره ښه لګی -

په دے پيغام کښې ديو پياوړی دوما نی هيرو د جذباتو پرتيد لی رنګو نه ډېر په ښه شان برېښي -

ستا[1] په حسن ے سوګند په خپله مينه
چه بے تا په نظر هيڅوک نۀ را ځينه

د ميرځۍ چه تا وېلی دی دلبرے
ستن دوے ګل اندا ے قد عرعرے

خاطرجمع په دا کاړ لره له ما نه
زۀ صغه يم چه سرپاس يم له آسمانه

تيغ زما په خاصيت لکه سحاب دے
په غليم تنه د بريباسی ګهرآب دے

... ...

... ... ...

چه روان ے په ميدان ذغرپوش ځوانان شی
زمکه اوخوزی تورغر باندے روان شی

په دا کار که درست پښتون وماته يو شی
په ميدان به پړے ورتلل زما په دۇ شی

---

[1] دلے اوشهئ صدرخان خټک ص ۹۲

ACKU

نوددے قسمه جذباتي پېغام سره خوا په خوا دے دشیدا د بنائست دسمندر په وړاندے د موږد دتشدغوی په شان د دیدن د سوال کچکول هم وړاندے کوی او صدرخان په دے موقع دیو عاشق د انساني جذباتو دا اړخ په ډېر ساده او بے ساخته نفسیاتي انداز کښے په ډاګه کوی . دجنګ په نغاړه وکښے د یو عاشق دښکلے معشوقے په وړاندے د دیدن د سوال تېپه دده د روماني کردار سره یو ښکلے سمون او پیوستون خوری . په دے ساده غوندے سوال کښے دیو مئین د زړهٔ د مجبورئ بےساخته اعتراف هم برېښی او دیو تورزن او میړني کردار د انساني کمزورئ ګوښه هم .

باڅ او کړه ستا د مینے له اقباله[1]

غږ به هم سره پا شمال کړم بے اهماله

زړهٔ مے جمع له هر کاره دا زمان دے

مګر یوستا و دیدن ته ډېرخواهان دے

او چه دے په غلا د شیدا ملاقات له ورشی نو د آدم خان درخانۍ واقعه بیا تازه شی . خو فرق ئې دا دے چه دلته د دے د پاره یو اخلاقي جواز هم شته . او هغه دا چه شیدا اوس د هغه د ښځے حیثیت لری خو ځکه د آدم خان صدرخان دده په خلهٔ هم د ښځے معشوقے په صفت او ستائنه کښے د مبالغے ترحده[2] شاعرانه بیانونه داواخلی .

ستا په زلفو چه زنځیر د دوشن نمر دی

ستا په سترګو چه بے میو سرهٔ اخمر دی

---

[1] دے او شیدا ص ۹۵، ۹۶

[2] ایضاً ص ۹۹

ستا په وروځو چه قوسين افلاکی دی

ستا په تېنو باڼو چه غشي ناوکي دي

ستا په شونډو چه سرخي ده د شراب ده

ستا په خُلهٔ چه په خندا گل دگلاب ده

... ...

... ...

بې له تا دوئمه ښځه له مې قامه

ناروا په ما طلاقه شه حرامه

او خدای خبر چه د دوئمې ښځې نه ددې څه مراد دے ځکه چه د قيصې په شروع کښې دا خبره صدرخان په ډاګه کړې ده چه ددې د مخکښې نه دوه ښځې موجودې وې . کيدے شي چه ددې مراد دلته دشهوې نه پس د نورو ښځو د وجود نه انکار وي او که داسې نهٔ وي نو دا بيا ددې د موقع پرستۍ او رنگين مزاجۍ هغسې فطرت ته گوته نيسي کوم ته چه صدرخان د مغه په پېژندگلو کښې اشاره کړې ده .

ډير عياش عالی همت په رنگ رنگين وو

ډير قلاش رامی صفت پتنگ آئين وو

او د صدرخان ددې بيان په مرسته او تائيد کښې هم ددې اولنی ملاقات د منظر مغه برخه وړاندې کيدې شي چرته چه د وصال د پوره لذتونو او خوندونو د اخستو په غرض د دې شهوې ته د خپلې بې صبرۍ او بې شرمۍ ثبوت وړاندې کوي .

د زنا چه تاوشـل چه زنا بد دے[1]

هوګناه په ګناهونو کښې اشد دے

امانته پـدر راکړے ئے و ماتـه

تهٔ هم اووایـه و ماتـه له ژبـانـه

چه مانفس وتا درکړے زهٔ دتا یم

زهٔ به هم په خلهٔ قبول قبلت اووایم

او دے نه پس چه صدرخان کومه منظرکشی کړے ده هغه په یک کښې د راوستو جوګه نهٔ ده خو دغه نندارهٔ هم د چړګو په آواز په هغه دوړ پائے ته رسی ځکه چه د آدم خان او درخانئ د وصال شپه -

دے اووے شهئ دا ندا قیامت ده[2]

چه له چړګو نن پیدا په دا ساعت ده

سر د پرمیوزه اے خروسه بے هنګامه

په بے وخته بانګ د زه کرم بے آرامه

هم په دغه شان حالاتو کښې د آدم خان او درخانئ د وصال د شپے د خاتمے اعلان د چرګانو د بانګونو سره کیږی او صدرخان دلے چه دلته دکوم رد عمل ښرګند ونه کوی هم دغه رد عمل په دے موقع د هغهٔ د آدم خان هم وو .........

---

[1] مثنوی دلے شهئ ص ۹۹

[2] ایضاً ص ۱۰۰

آدمؒ خان وے چه هر چرګ د

هم په دا طور خراب شه

چه مېن وینا روینه

حقه کل واړه کباب شه

دآدم خان او دکے دکردارونو په مشابهت کښے د دواړو دموسیقۍ (رباب) دفن سره آشنائۍ هم شامله ده - دآدم خان په شان دکے هم دمینے سوز او درد درباب په دردیدلو نغمو کښے دورکولو کوشش کوی ـ

نهٔ یواځے دا بلکه صدرخان دے هم لکه دآدم خان دخپل فن ماهر او منلے شوے استاد ښئلے دے ـ

دکے جوړ په هر حسن په اتفاق وو

وے لا په غین ول دسرود طاق وو

چه به دے په چار پرده ناصری ساز شهٔ

سنګین زړهٔ به لکه موم حسے ګداز شهٔ

چه به دهٔ په عشاقۍ پرده نغمه کړه

د پارسا د زړهٔ پرده به ئے پاره کړه

چه سرود به ددکے دچا په ګوش شهٔ

که زاهد وے هم به مست بیخود بیهوش شهٔ

---

[1] مثنوی آدم خان درخانۍ ، صدرخان خټک ص ۹۸

[2] دے او شهتی ، صدرخان خټک ، ص ۱۱۸

دے ګټے په پرده د خپل رباب کړے

په آواز ئې د عالم سینے کباب کړے

ددے د خواشردئ حوصلے او ترتوب جوش هغه وخت ښکاره شو کله چه د یوسفزو ښکر په هغهٔ پسے هزارے ته پورے وت او سره ددے چه دے د مغوئ مقابلے ته د آمادګۍ نه په ذهنی توګه تیار وو خو د یوسفزو ښکر دومره زیات وو. چه ددے په ملګرو او ملاتړو باندے ویره او ورهم راغے. او چه دے اوویل چه د مغوئ پښے په خوځیدو دی نو په دے موقع هغهٔ خپلو ملګرو ته یو داسے جواب ورکړے دے چه په هغې کښے هم ننګ بریښی، هم تدبیر، هم پکښے جذبه شته هم دلیل، هم داد او هم تدبر.

کهٔ[1] موږ لږ یو یوسفزے په ښکر ډیر دے

په یوا ځ ځان ے نیت تر واړو تیر دے

دا مثل دے مرد پرده په خپل همت دے

نهٔ پرده د مست هاتی په زور قوت دے

دویمٔ دا چه موږ په حق دوئ په ستم دی

موږ نا ګرم یو دوئ تر خدایه پورے ګرم دی

موږ به ښهٔ مرو دوئ به بدمری دا خبر دے

چه ظالم په ظلم مری ځائے ئې سقر دے

په دے جواب دغه نهٔ یواځې خپلو ملګرو ته غیرت او درولو او د مغوئ حوصلے ئې هسکے کړے بلکه په داسے انداز کښے ئې خبره اوکړه لکه چه دا جنګ د هغهٔ

---

[1] ددے اوشهئ صدرخان خټک ص ۱۰۱ - ۱۰۲

ACKU

د ذاتي جنګ نه زیاته د یو مذهبي جهاد (غزا) درجه لري . او د دغې نه پس

ئې د خپلې قبیلې مشران او هوښیاران راوبلل - د هغوئ سره ئې د جنګ په مختلفو

اړخونو باندې صلاح مصلحت اوکړو او د هغوئ ټولو جذبې ئې راوپاروې.

په دې موقع دے د خپلې پرې د هوښیارانو دا رائې خوښه کړه چه په دې جنګ

کښې به دننګ او مړانې نه زیات چل او د زور نه زیات ذرکار کوی ځکه چه

دښمن په ټولو باندې زورور دے - او هم له دغې جنګي پالیسۍ له مخه هغوئ د

یوسفزویو مخورین سردار دیارخان په پیسو واخست - او ځان ته ئې راوارړو.

او په دغه شان صدرخان د آدم خان درخانۍ د قیصې هغه اهم پړاؤ چه

دے قیصه کښې هم سر دوباره مخ ته راوست کوم چه هلته د پیسو په لالچ

کښې د میرماتۍ او دلته د یارخان په شکل کښې تر سره شو .

خو په آدم خان درخانۍ کښې دغه پړاؤ په منفي اړخ کښې د داستان په

المیه منزل تمام شوے وو او دلته ئې په مثبت اړخ کښې د قیصې د طربیه انجام

په لوری مخه اونیوه - بیا د ټول جنګ مختلف ننداره صدرخان په ډیر تفصیل

سره په داسې ښکلي انداز کښې وړاندې کوی لکه چه بنده ئې په خپلو

سترګو وینی - او د خپل میرتی (دلے) کردار د جنګ په ټولو ښخړو او

هنګامو کښې هم د صدرخان له سترګو څرګنده عورزیدلے نۀ دے - او کوم وخت

چه جنګ نژدې نژدې په ختمیدو وو نو دے خپل مد مقابل او اصل دښمن

(دشهئ تربور) په داسې شان کښې را وګماری -

اوس به زۀ اول تنها او خپم میدان ته

دشهئ تربور به بولم په جنګ ځان ته

---

۱ دلے اوشهئ ص ۱۰۷

كه را اوزي ګندے ځان مكان ئے خاك كرم

خپل خاطر ورباندے ټول جهان قربه پاك كرم

. . .　　　　. . .

. . .　　　　. . .

غږ ئے اوكړ يوسفزيو ناحق جينو

په آزاده په مجران ددوه مينو

په ناحق دا نور عالم سره بے ځايه

سره وژنئ ويره نه كا نړئ له خدايه

د شهئ تربون دكوښے جنګ ته راشى

يا به دے يوسى شهئ يا به زما شى

په دے بيتونو كښے صدرخان ددے په كردار كښے د مړانے او ځوانمردئ دخويونو سره خوا په خوا دهغهٔ د حق پرستئ اوانسان دوستئ حواله هم وركړے ده ـ د دے په خيال داجنګ ټول محض ديو بنده خود غرضئ ترود كړے دے او ديو ګنهګار د ګنا هونو سزا هم هغهٔ له خوړل پكار دى ـ او دهغهٔ په خيال داجنګ دهغهٔ ددښمنانو دپاره يو بے فائدے او بے مقصده جنګ دے ـ

صدرخان ددے د كردار شان ، لوړتيا او عظمت په داسے شوخو رنګونو كښے وړاندے كوى چه دښلے مثنوى درجه ئے د انګرېزى ادب اوچت معيار (ايپك) ته رسولے ده ـ

د اردو ژبے يو محقق او نقاد ډاكټر سلام سنديلوى د مثنوى ، مرثيے او ايپك په لړ كښے د بحث په دوران كښے ليكى ـ

ACKU

مثنوی میں کردار نگاری کی بھی بہت اہمیت ہے - لہذا مثنوی نگار کے لئے ضروری ہے کہ وہ مختلف افراد کی نمایان خصوصیات کو منظر عام پر لائے - اس کے علاوہ رزمیہ اور بزمیہ مثنویوں میں فوق الفطرت عناصر بھی شامل رہتے ہیں جو حقیقت سے معرا ہوئے ہیں تاہم موضوع کی دلچسپی کو قائم رکھتے ہیں -"[1]

خو د صدرخان په مثنویانو کښے دا وچتے پاتے دکردار نګارئ سره خوا په خوا دا التزام هم ساتلے شوے دے چه په وس سره ئې کښے دفوق الفطرت عناصرو نه ډډه شوے ده او په واقعاتو کښے ئے دحقیقت او واقعیت لمن ټینګه ساتلے ده -

بے ځایه به نهٔ وی چه د صدرخان خټک ددے او شهنۍ جاج د صفت تعریف په دنیا کښے واخلو کوم چه بنا غلی سلام سندیلوی دانګریزی ادب یو لرغونی او نوموړی صنف ایپک ( EPIC ) ته منسوب کړے دے -

"دراصل اردو ادب میں ایپک کا وجود ہی نہیں ہے - انگریزی میں ایپک اس شاعری کو کہتے ہیں جسکا موضوع بہت اعلیٰ اور ارفع ہو - اس لحاظ سے جو واقعات مذہب کی حفاظت یا حق وصداقت کی بقا کے لئے نظم کئے جاتے ہیں - وہ براہ راست ایپک کے دائرے میں آجاتے ہیں - اس کے علاوہ ایپک کے لئے یہ بھی ضروری ہے کہ اس کے انداز بیان میں متانت ، سنجیدگی ، شوکت اور زور پایا جاتاہے - ایپک میں کسی بلند مرتبہ شخص کو بحیثیت ھیرو منتخب کیا جاتا ہے - پھراس کے زرین کارناموں کو جوش و ولولہ کے ساتھ بیان کیا جاتا ہے - یہ ھیرو حق کی حمایت میں علم بلند کرتا ہے اور باطل کا سر کچل دیتا ہے - آخر میں اس ھیرو کی فتح ہوتی ہے -"[1]

---

[1] ادب کا تنقیدی مطالعہ ص ۶۰ - ۶۱

د صدرخان دَلته هم د غښتلي کردار دے چه د چا د ذات سره یکونکی د اول نه څۀ داسے خوبیانے او خصوصیات تړلی دی چه هغه هر څوک انسانی دی ولے بیا هم دیو مثالی انسان د بے چه لوړ شخصیت احاطه کوی . د دلے په وړاندے چه کوم مسے کشاله پرته ده هغه هم اګر که ذاتی او انفرادی ده خو د ننګ او پښتو په وګرباندے عمرله هم دا قسم کشالے او قضیئے اجتماعی رنګ اخلی - دیوے داسے جینۍ چه د مورپلار او هم د جینۍ په رضا هغه ته ورکړے شوے ده دحاصلولو په لاړ کښے چه کوم قوتونه بندیزونه اچوی هغه هم په اولسی او هم په مذهبی او اخلاقی توګه باطل قوتونه دی . او دلے د دغو قوتونو په مقابله کښے بنۀ په زړه جنګیږی - او د حق او د باطل په دغه معرکه کښے دلے بریالے شی - صدرخان لکه چه د اول نه خپل فنی سرام او د خپل میړنی مقام په خیال کښے ساتلے وی ځکه هغه په ډیره هوښیارتیا د دے قبیلے له هغو ټولو روایتونو نه خبره کړے ده . دکوموله رویه چه دلے یوغل یا داکه مار یاد شوے وو هغه خپل میړو له په معاشره کښے یو لوړ او معتبرمقام ورکړے دے . او دلے ته د خپلے قبیلے یو عزتمند ، غورنړ او نومیالے سردار بښلے دے . تر کومے چه په بیان کښے د سنجیدګۍ درناوی او شان او شوکت تعلق دے . د هغے خیال به د صدرخان نه سیوا څوک او ساتی او خصوصًا د جنګ په معرکه کښے خو به دے غاړه هغه خپل فن کمال ته رسولے دے . د دے مثنوی په نوړو برخو کښے هم صدرخان ځائے په ځائے د بیان بنائست او عظمت په ځائے ساتلے دے . خو په جنګی مناظرو کښے ورله د دے د اظهار او منظرکشۍ ډیره بنه موقع په لاس ورغلے ده او هغه ترے پوره پوره فائده اوچته کړے ده .

لوړ په لوړ يوه غوغا د نغارو شوه

هم د ډيلو شور غوغا هم د سورو شوه

نقارو د سربازانو په وين وروره

لاس په سرو هلنارې کړې په زوره

په ماتم د مرڼيو سرود وو نو

د فراق آوازې کړې په فرياد وو نو

مرګ داغ په کمين د بنو ځوانانو

ځکه ئې اوښوډ په ګوشکينې د کمانو

دا آواز په هر ګوشه د هر کمان شهٔ

چه اسې مرګه پاڅه وار د په ځوانان شهٔ

چه آواز د مرڼيو د بنږ د شهٔ

آسمان اولړزيدهٔ مخ د سپوږمئ زرد شهٔ

په ډير ګرد د آسمان مخ لکه زمين شهٔ

په لړزه د مزکې شان چرخ برين شهٔ

ګرد په مزکه د وريځ غوندې پيدا شهٔ

د ټوپکو پکښې دعد شان صدا شهٔ

تيغ د برق په شان برېښنا پکښې هران کړه

تير بازان پکښې شيبه لکه باران کړه

او د جنګي نندارې د دې منظر کشئ سره خټک په ځنګ هغه دخپل ميړ تي د

---

له د دې اوشهئ ، ص ۱۰۲

سروپا ، نورتیا شان او عظمت مصوری په څومره ښکلی پیرایه کښے کوی ۔۔۔۔۔۔۔

گڼډاروته ئے کول ذاتی پیله وو
په قوت لکه مزرے پلنګ حمله
په هر ځائے چه به ئے سر د تیغ ګڼډ ارشهٔ
یو به دوه شه دوه به درے درے په څلور شهٔ
په میدان د جنګ نهنګ یا اژدها وو
په غصه لکه آتش په موج دریا وو
په ثبات لکه دوئے غر ثابت قدم وو
په تمکین لکه زمین ولاړ محکم وو

او هغه وخت چه د درے مړانے او بهادرئ د ښودلو نه پس د دے ملګری هغه قتلا روی او ورله د مره ورکول غواړی نو د لے د دے په جواب کښے وائی چه لښکر صله مړانه یناړ چه سرداره ترے مخکښے روان وی ۔ او د دے د بهادرئ اعتراف خود هغه د ښمنانو هم عن په میدان جنګ کښے کوی ۔[۲]

د دے د کردار اوچتوالے هغه وخت ځان ښهٔ برخیره کړی ۔ کله چه هغوئ میدان اووهی ۔ برے پیاموی او د انسانی همدردئ جذبه د هغهٔ په وجود کښے عورزنګ اووهی ۔ د لے په چیله ګټه بانده فخر اوویاړ نه کوی ۔ بلکه د عاجزئ او انکسار رویه څرګند وی ۔

---

[۱] د ے اوشهئ ص ۱۰۵ – ۱۰۶

[۲] د ے اوشهئ ص ۱۰۸

ډیرې اووسې له ما واورئ داخبره

یوسفزي عالم خورمه وژلئ ښکره
هر چه اوشول هغه اوشول له دې پسه
زیات قدم مه ږدئ په هورته له جوسه
ستا څه زور چه پنځه اچوې له ښکره
اې په ځان خوتي له چله عمره سېره

. . .　. . .

. . .　. . .

په هر کار کښې ځان عاجز ګڼړئ یاراتو
تل یاري غواړئ له خدایه عزیز انو
هغه هسې تنګ ساعت ئې ناګهانه
په چل فضل په موني خړنګ کړ آسانه
یوسفزي غونډې اولس ئې په شکست کړ
ذموني کار ئې په آسمان ددوئ ئې پست کړ

## دشهئ کردار :-

شهئ دیوسفزو دسردار حیات خان لور وه او صدرخان دحیات خان رسمي پیشنګلو په دادودکوی۔

هغه وخت په یوسفزو کښې یو ځوان وو[۲]
په نامه حیات خان نام ووښه افغان وو

---

[۱] دې اوشهئ ص ۱۰۶ - ۱۱۰

[۲] دې اوشهئ ص ۷ ۲

لوئے سردار د ملیزیو بونیر ے وو

میشت په مینه دتوپئ مینئ دے وو

زوئے ئے نۀ وو بوۀ لور ئے وه نیکخو یه

په نامه مسمی وه شهئ گل رو یه

او د شهئ په صفت کښے هم لکه د درخانئ زاو د داستان د عمومی روایت په دود ) صدرخان دچلے نازک خیالئ اورنگین بیانئ نه پوره پوره کار اخستے دے - چه دنمونے په ډول دایو څو بیتونه وړاندے کول به بے ځایه نه وی -

له بنا ئسته ئے وکړی له زبانه

وصل کړل به همیشه په څو څو شانه

چا به داوے شهئ باغ دنو بهار دہ

په بنۀ مخ کښے بنفشه هم سمن زار ده

اشکی ئے یا سمن یا گلاب گل دی

بنفشه ئے تورے زلفے یا سنبل دی

سینه پوزه ئے کلئ د نسترن ده

دواړه سترگے ئے نرگس غنچه دهن ده

پا بسته ئے ترقامت سرو آزاد ده

ترسینۀ قد ئے ناچیزونه دشمشاد ده

چا یه داوے شهئ باغ دزمستان ده

په وجود کښے ئے میوه الوان الوان ده

---

له دلے او شهئ ص ۲۸

لشوه داچه ډیرے خلق او رنگ رنگ صفتونه . لکه د درخانئ به دشهئ سره هم رنګارنګ خوش آوازے او طربنا کے همزولے ملګرے وے . دغه ملګرے به د هغې سره د ګلونو او بوستانونو سیل ته وتے او هم د دغو جینکو له خولے شهئ د دلے (یا تور دلے) د ومره صفتونه واوریدل چه هغه ئے د زړهٔ په رنځ اخته کړه - او په دغه صفتي مینه کښے شهئ په نالیدلی د ومره ژوره لاړه شی چه د مستئ او هوس دنیا ترے پاتے شی او د دنیا د زیست روزګار نهٔ اوځی .

پهٔ سینه کښے ئے لمبے وے بلیدے[1]

د مے د او بیو او به پاس پرے تویوے

چه د اور لمبے یو ځله په طغیان شی

څو اوبهٔ ورباندے توئے لاچندان شی

د مور پلار د ا ینازبینه نازنینه لور په دغه خیالی مینه کښے دا سے حال له راشی چه د هغې پلار حیات خان مجبور شی چه ننګ او ناموس شاته او غورزوی او دیوے تجربه کارے بوډئ په زیان او مرسته د دلے دے ته جوړ کړی چه هغه د شهئ د رشته غوښتونکی شی - او ځهٔ وخت چه شهئ د دلے له خوا د بوډئ په خُله د غه زیرے بیاموی نو د دے بشګوے او احسان منته هغه دا سے ورانسے کوی .

شهئ او دے بوډئ وا وره څو ژوندئ یم

ستا په دا احسان ترے به ژندئ یم[2]

---

[1] دلے او شهئ ص ۷۳

[2] ایضاً ۸۶

ACKU

ستا له حکمه ستاله رایه له فرمانه

او به نهٔ وځم که یم له حیات خانه

اوس بالفعل داروېڅي چه دی تیار سے

واخله کو چه ستالا نُقے نه دی بیارے

د بوړئ په حقله دشهنځ دا قسم له رویه هغه زموږ په ورانسے دیوے ساده، نیک زړے او وفا دارے پښتنے سپغلے په شکل اودروی اوداد شهنځ دښائسته ځوانئ سره د هغې د لوړو اخلاقو صفتونه دی چه تر لرے هزارے (ج) پورے د دے غوندے صفتی زلمے پرے په نالیده لے مئین شی ۔

خو کوم وخت چه حیات خان دے ته دخپلے لور د ورکولو اراده ښکاره کړی نو دهغهٔ ټول عزیزان تربوران په یوه خُلهٔ ددے خبرے مخالفت کوی چه دشهنځ غوندے بے بها لعل دمغوئ دخلیخانے نه بهر ته په وتو دے ۔

داکوم حرف دے چه شهنځ به موږ بے ځایه

په بل ځاے یے زو کړو خامخه حیات خانه

او چه هم دغه رنګ جذبات د جرګے غوندے مشران ښکاره کړی نو حیات خان په یوه لوبه دوچاله کښے اوغورزیږی - خو هغهٔ ته دخپلے کورنئ مجبورئ معلومے وی چه دشهنځ درنځ علاج یے ددے نه دچا سره هم نشته ۔

بل خوا هغهٔ ته داهم یے پښتو ښکاری چه کورته راغلے میلمه بے نوا ستون کړی - ځکه هغه دمرے نتیجے نه بے پروا په خپل لوظ او قول ټینګ او دریږی دخپل پلار په خبر شهنځ هم دیوے ننګیالے پښتنے په دود په دے ننګ اوخوری اود استازی په خله هغهٔ ته داجواب واستوی چه

---

له دے او شهنځ ص ۸۹

هیڅ غم مهٔ کړه بے پروا ګوزه اے یاره[1]

ستا د دربه زهٔ وینځه پرستاره

بے له تا د بل تش نوم په ما حرام دے

که بل شاه دے ما ته کم ستا تر غلام دے

کمترین چاکر به ستا د درګاه یاره

زهٔ سم نهٔ کړم په هیڅ شان له شهی یاره

هیڅ غم مهٔ کړه هم آخر به تر تا درشم

په مزدوری به داخله ستا د درشم

او کله چه دلے دشهی ملاقات له په غلا راشی نو په دغه موقع

دهغے دکودار صفه ټولے ګوښے موږ ته ښکاره ے شی کوم چه دیوے حیاداره

او غیرتی پیغلے په اخلاقی اولسی ، فکری او نفسیاتی شعور باندے اره لری. دلے

چه په دغه ملاقات کښے په شاعرانه انداز کښے دشهی صفتونه تمام کړی نو

شهی ورته په جواب کښے وائی۔

چارے واره په نیب دی له ازله[2]

دازل چارے به نهٔ شی مید له

زما خه وو چه به ما دا هسے چار کړو

چه په غلا به ے له تا سره ګفتار کړو

---

[1] دلے او شهی ص ۹۱

[2] ایضاً ص ۹۵

اما شوی په ازل وو نه بدلیږی

چه زما او ستا خبرے په غلا کیږی

دا چه اوس مے الوده پاکه لمن شوه

په دا کار ماته شیطانه یوه جن شوه

هغې اوکړه څوځو رنګ ماته ستائینه

په هغې صفت په تا شومه مئینه

هسے نه چه شهوتی مینه زما ده

زما مینه شهوتی نهٔ ده رښتیا ده

زهٔ که هرڅو په تا ډیره یم مئینه

هسے نه چه په زنا یم راضی مینه

یو زنا له میانه اوباسه نور واړه

هرچه تهٔ وائے قبول لرم په غاړه

دویم دا وایم سوګند راسره اوکړه

چه په ما بانړے دوئمه کوژده مهٔ کړه

او دد ے نه پس چه شهئ دخپل مئین په وړاندے دمینے محبت کومه

فلسفه بیانوی هغه دصدرخان خټک فلسفه ده کومه چه هغه دآدم خان او

درخانئ ترمینځه په مناظره کښے هم د درخو په ژبه بیان کړے ده۔

محبّت دیری دوه طوره اوشماره

یو ذاتی بل صفاتی دلیه یاره

---

ؔ دے اوشهئ ص ۹۶

صفاتي محبت دادے زړ به رنګ شي
چه ميئن څوک په منر شي يا په رنګ شي

دشهتي روماني او تصوراتي خيالات که هر څومره د معمول نه اوچت ښکاري خو په بنيادي توګه هغه يوه ښځه ده او د ښځې فطرت داوي چه هغه دخپلو خيالاتو ټول سفر ديو مرکز نه چاپيره ګرځوي - دغه مرکز د ښځې کور وي او صدرخان هم ددے طويل راز ونياز اواوږدے مباحثې په خاتمه دشهتۍ په ذات کښې د ښځې دغه فطرت ګرښره کړے دے او څهٔ وخت چه دلے بيه ناخوالئ دشهتۍ خوا پريږدي او دهغه نه په ارمان ځ نه لهجه کښې دخصت اخلي نو شهتۍ ورته په ډيره سادګۍ او بے ساختګۍ دا نصيحت کوي -

نهتر دادي چه روان په دا ساعت شے
کورته دږو ے کوړ داخل په خيريت شے
دوادهٔ په کاروبار کښے په سامان شے
چه ما دروړے نور بيغمه له هجران شے

خو ديوے ښځے د فطرت داعمومي برخه دشهتۍ په روماني تصوريت او ايډيلزم هيڅ اثر نهٔ عورزوي - دهغې دتصور شهزاده دے که نهٔ وي نو ددنيا هرکور بيا دهغې دپاره ګور دے که داسے نهٔ وے نو دهغې تربور هم په هغې ميئن اوپښتون خانزاده ذلے دے اوتړے پرے لادا چه دهغهٔ په مرسته کښې دشهتۍ ټول قام ددے سره جنګ ته اوځي - بے شميره سرونه توټے شي او بے حسابه ويني اوبهيږي نو دهغې نه پس او ددے هر څهٔ باوجود هم دشهتۍ روماني خيالات دخپله

---

له دے اوشهتۍ ص ۱۰۰

ځایه نه خوزي.

کوم وخت چه د مغلو تربور صفه په زور زیاتي چیل کور ته یوځي - او دے سره ځان ځنتوي نوشهمئ پرے لکه د بسے ازموئي را اوغورمبیږي.

لاس[1] میځ مه راوړه زما په لور گستاخه

دامیوه ده امانته بلند ښاخه

صفه ځوان چه باوفا او با صبر دے

د صفهٔ په نام ما ایښے داشمر دے

... ...

... ...

مرد صفه دے چه په شرم ننگیالے وی

د میدان په ورځ سرشړے جنگیالے وی

... ...

... ...

په صفه م دقسم وی چه یکتا دے

بے دلیه په مابل څوک ناروا دے

د بے غرضئ، قربانئ او ثابت قدمئ دا دے نه زیات ښکلے مثال نورځهٔ کیدے شي او د دے آخري بیتونو نه خو د شهو د وفا پرستئ سو چه پښتنی جذبات راځاځي -

---

[1] د دلے اوشهمئ حصه د ۲۰۵۲ خټک ص ۱۱۲

که څوک لاس راوړی سوګند مے په احد دے

یا زما یا د مغهٔ ځائے ګور لحد دے

په جهان کښے یوه ښځه دوه مړونه

چا لیدلے دے یو تیکے دوه تیغونه

---

# فتح خان رابیا

د پښتو په هغو اولسی رومانونو کښې کوم چه په عوامو او خواصو کښې په یو شان مقبول راروان دی د فتح خان او رابیا قیصه هم یو جوت مقام لري. په طبعزادو روماني قیصو کښې اګرچه د دې پلاټ په هغه قسم واقعاتو باندې اړه لري کوم چه د داستاني طرز خصوصیت بللې شي - او د دې مرکزي کردارونه د اوچتې خصوصي طبقې سره تعلق لري - خو دغه کردارونه که هرڅو بادشاهان، شهزادګان یا وزیران دي په بنیادي توګه د هغوئ عملونه او نفسیات خالص په انساني او فطري رنګ کښې پیش کړې شوي دي - او د عقل نه بعید خبرې پکښې ډیرې کمې موندې شي - د قیصې پلاټ او کردارونه ټول په څنګ ماحول چوکاټ کښې ډیر پیوست او موزون ښکاري.

د آدم خان او درخانئ یا د پښتنو د نورو مشهورو قصو په شان د فتح خان رابیا قیصه هم ترنن ورځې پورې زمونږ په حجرو کښې د رباب او منګی ســـره ډیر په خوند اومینه اوروِلے او اوریدے شي - لکه د نورو روماني قیصو په شان په دې قیصه کښې هم د زمانې او عــلاقې په سمې اد لون بدلون راغلی دی - ولے

بیاهم دقیصې مرکزي ادارې په ځائې پاتې ده .

دیو نو نه په پیچلي شکل او منظم انداز کښې چه د اقیصه تراوسه پورې ترلاسه شوې ده هغه دملا نعمت الله قیصه ده چه په ۱۳۰۰[۱] کښې ئې دیدنې چه طرز لیکلې ده . ددې نه علاوه د اقیصه دستایئلي ملا صاحب په وینا په نوښار کښې د هغه دیو دوو پیش ندکلو کسانو سره د نثر په جامه کښې پرته وه . دغه کسان د بناغلي نعمت الله بیلدیان وو او هم دغه قیصه نعمت الله د مغوئي نه ترلاسه کړه او په بناسته نظم کښې ئې دیدنې په شکل بیا دسره اولیکله . او قیصه د فتح خان قندهاري په نامه ئې دینا ته وراندې کړه . په نثري شکل کښې د کابل

---

[۱] پښتو افسانه تحقیق او تنقید ص ۲۷

[۲] په نوښار کښې یو دوه تنه پراچکان وو
خوئي خصلت کښې یو تربله شهزادګان وو
دیو نوم عبدالطیف د بل مغل د ے
چه پیشانه د مانکي دصاحب خوښ د ے
حالا د وارړه په مانکي کښې دوکاندار دی
په خاصانو د مانکي صاحب کښې شمار دی
دا قیصه وه د مغو سره په نثر
ویکن چه پکښې وو پیشانه کسر
ما ملا نعمت الله دیره په خوند
کړه د نظم په اشعارو یند په بند
(په حواله د قصه د فتح خان قندهاري ص ۵۲)

د محمد گل نوري په ملي هنداره ( دويم ټوک ) کښې هم دا قيصه د فتح خان او بريخي د سوناے لاشے دکتاب په سرکښے چاپ ده .

. د نعمت الله په روايت کښې هم ځو که څنو واقعاتو مبالغو ته ښکاره کوته نيولے شي . ولے بيا هم د قيصے پيلاټ ډير ترے کوټلے او اثرناک دے او خصوصاً د کردارونو په جوړښت اوډغونه کښے ئے پوره منطقي او عقلي تنظيم ساتلے دے .

د نعمت الله د قيصے لنډيز دا سے دے چه :-

فتح خان د قندهار د اسلم خان باچا ايکي يو زوئے وی چه د ډيرو منتونو او دعاګانو نه پس زيږيدلے وی . يو نيازبين شهزاده چه په ډيرونازونو نعمتونو کښے لوئے شوے وی او د دغے ماحول بے ضرورته نياز بينتوب هغه بے ځيه ضدی او خود سره کړی ..... پيلار په ورکوالی کښے د هغهٔ د خوشحالئ او منګرتيا په غرض د هغهٔ د پاره د شپيتو منزلو يو ټوبګے هم تيار کړے وی چه هغه په يو شکل د فتح خان حفاظتي دسته ( باډي ګارډ ) وی او د شهزاده نه مخکښے وروستــو روان وی .

" کرے " د دغے دستے سالار وی او د فتح خان زړهٔ ته ډيرنز دے وی . د کړی په لمسه د فتح خان دلاسه د ښار سېلے جونه په اوږ کښے ولاړے وی ..... په قسما قسم چلونو ترکيبونو ئے تنګوی کله ئے په منګو د مچوغنو ګنډ اروسته کوی او کله ئے مشکونه په غشو سوری کوی . د دغوئ مشران شوشو وړے باچا ته ژړا فرياد اوکړی خو فتح خان او د هغهٔ بريخي له چيلو چاړونهٔ آوړی .

د فتح خان او کړی دلاسه د حکومت په خزانه هم تالان ګډ شوے وی او چه د اسلم خان باچا سره د چل نيازبين شهزاده په لاس دراوستلو هيڅ لار پاتے نهٔ شی نو د چل وزير دليل خان په صلاح هغهٔ له ديوے بنګلے جينئ رابيا

سره واده اوکړی خو د فتح خان زیلی او ناقلاره طبیعت یا هم تیکاوے نۀ شی اوکړی په لمسه د هندوستان په لوری مخه اوکړی - دموږ اوپلاړ ژړونه د فتح خان په تګ بانسے تهق چوی خو مغه چل هند پوړه کوی او په هندوستان کښے د مغلو غوښے دستر طاقت د دیو صوبیدار یا حاکم (شمس الدین) سره تیکره ومی - تر دے چه مغه د چل هند او ذیل په توړه تیکیے تیکرے شی -

د نعمت الله په قیصه کښے کوے د بلوچو له خوا یو دم وی چه نیستئ په مخه کړے دی او د فتح خان سره نوکر شی - چه په ملیٰ هندارہ کښے کوے د فتح خانؔ میرسے ورور بشیلے شوے دے -

د نعمت الله په روایت شمس الدین د اکبر باچا وزیر دے او مغه دے یو چالاک او بد مرغے بنده بشیلے دے - خو د ملی هندارے شمس الدین په خپله دیو کو چنی سلطنت باچا وی چه د ذاتی کردار له مخه یو اشراف اونیک زړے السان وی -

د نعمت الله د قیصے راپیا د اجمیر د حاکم پوردل خان نازولے خور وی خو د ملی هندارے راپیا او پوردل خان دواړه د اسلم خان د وزیر بچی وی - نوره قیصه تقریباً یو شان ده -

## د فتح خان کردار

فتح خان د اسلم خان باچا زوے او د پلار د باچائی واحد وارث وی - چه د ډیرو دعاګانو

---

لـه کرے د فتح خان یادشوے میری زرے ورور دے چه کوم خان نومیږی د فتح خان د نازه اوډیر استعمال څخه کرے شوے دے - "

(ملی هنداره دویم ټوک) ص ۷

نه پس پیدا شوے وی - ځکه په پلار ډیرګران او نیازبین وی - دفتح خان سره چه پلار د شپیتو همزولو کومه وله ملګرے کړے وی دغه دفتح خان د بریخو په نامه یادیږی - دحد نه زیات نیازبینتوب فتح خان په ملکوانه کښے دومره وران او خودسره کړی چه هیڅوک ئے مخې له نهٔ شی راتلے - د پلار د بےلحه مینے او شپیتو بریخو دخوشامتو وانګ یو خواته او دکوی غونډے د وران کاری او شیطان فطرتی ملګرتیا بل خواتـه - دا مرڅه چه یو ځلځے شی نو د فتح خان په شخصیت کښے څه داسے نفسیاتی کږلیچونه او ناهموارئی راپیدا کړی چه دهغې علاج بیا دچا سره نهٔ وی - کوے په اول ځل فتح خان دهغه ځائے وینی کله چه شهزاده میرے ته دښکار په غرض وتے وی -

فتح خان وے ځوانه راغلے دکوم ځایـــه

کوم طرف ته دِنیت کیږی راته وایه

کړی وے ما دے ستا نوم اوریـــدلے

ستا په نوم باندے ے پریښو کوړوکلے

فتح خان ورته ویئل چه څهٔ دے نوم دے

له کوم لوری نه راغلے کوم دے یوم دے

دهٔ ویئل ملک ے بلوچ نوم ے کوم دے

د ښتئ راباندے پروت هسے لوئے غم دے

فتح خان وے مهٔ کړه غم دلته شه پاتے

پکار نه دی هیڅ خبرے کم وزیاتے

---

له قصّه دفتح خان قندهاری ص ۸

کړے د فتح خان سره نوکر شه

بخت ئے وینښ شو مهربان پرے پاک اکبر شهٔ

دکوی بخت وینښ شو خو د اسلم خان باچا بخت اودهٔ شو۔ دغه چالاک خَله ور او بد مرغے انسان چه کله د فتح خان ملګرے شو نو په مغهٔ ئے داسے دم پوک وصلوچه ددهٔ د وینا نه بغیر به ئے یو کار هم نهٔ کولو۔ او څهٔ وخت چه اسلم خان دکرم سره د فتح خان بے ځچه مینه اولیدهٔ نو مغه هم په کرم باندے هرکرم او مهربانئ ته جوړ شو۔

دکرم ته ئے دیٖل بادشاهی ستا ده

فتح ستا د منګل باز پتا تاوان شو

تاچه سر د فتح خان دسره زار کړهٔ

د بادشاه مال و دولت لتا قربان شو

اوکرم چه د باچا نه دومره لویه درجه تر لاسه کړه نو د مغهٔ لاسونه د حکومت خزانے ته وراوږدهٔ شول او په دواړه لاسه ئے د فتح خان سره د شاهی خزانے په پنګه الوزولو شورو اوکړه ۔ واقٔ چه هوسئ له ځایه هم ګړندئ وه او لا چه په پښتو کښے ئے ورله ګنګرو هم واچول نو راشه که ئے ګورے۔ د فتح خان مستی دکومی په موجودګئ کښے خو مستئ ته اورسیده او چه اوبهٔ د سره داوړیدے نو یوه ورځ خزانچی د بادشاه په وړاندے شکایت اوکړلو۔

---

۱ قصّه د فتح خان قندهاری ص ۹

یولهٔ ځایه فتح خان بے شانه مست وو

په داشان دویم کوم ورسره مل شهٔ

خزانه ئے همګی تالا والا کــــړه

خرهٔ تحوے دکومئی دلاسه دل شهٔ

اوباچا چه دچل خزانچی دخپلے نه دابیان واوریده نو دلیل خان وزیرے رااوغوښت او هغهٔ ورله دامشوره ورکړه چه دفتح خان دسمیدو یو علاج دارهٔ دے اوهغه شان په دے صلاح اوشوه چه داجمیر دحاکم پوردل خان خور رابیا فتح خان له اوغواړی حلته دفتح خان اورابیا ملاقات هم اوشی اوفتح خان ددلیل خان په کومک کنے په اجمیر کنے دخپلے سخرانے کره اووهٔ ورځے واړوی - اوحره ورځ درابیا دیدن کوی - اودهغے نه پس.

په اوومه ورځ تر شو رخصت په بیس ته[1]

فتح خان په خفګان راغے قند هار ته

درابیا بشرے وو په زړهٔ تصــــویر

همیشه به وو له دے غمه زهــیر

دنعمت الله ددے بیان نه په ظاهره خو داڅرګندیږی چه فتح خان هم لکه دنورو رومانی قیصو اوداستانونو دمیړنو په شان دخپلے محبوبے د مینے غشے په زړهٔ خوړلے وو او دهغے نه په ناخوالئ راستون شو - خو د فتح خان د روے نه ورو ستو بیا دا معلومه شی چه یا خو ملا نعمت الله د

---

[1] قصه دفتح خان قندهاری ص ۹

[2] قصه دفتح خان ص ۱۲

داستانی روایت په دود دچل هیرو په حقله محض دشاعرانه تکلف نه کار اخستے وو او یا فتح خان په خپله دغسې خټو نه جوړ وو- او څه وخت چه هغه د دابیا دوطن نه چل قند هار ته راستون شو نو په ځائے دد ے چه دمور پلار سره ئے د واده په حقله څهٔ صلاح مشوره کړے وے هغه نیغ د خپلو ملګرو سره دبنګار په نیت ګودر ته روان شی - او د اواره دهغهٔ د مستانه ، بے پروا او سیلانی طبیعت برخے او نښانے بنکاری -

دفتح خان آواره او مستانه مزاج چه دګودر په غاړه دجونو سیل سیمی کړی نو هغه بیا په مرچل او هنر دمغوئ له مخه حجاب لرےکول غواړی او دغه چل هنر ورته کړے ښائی .

فتح خان وئیل کړمه داد وار د ے

بے حجابه کړه داچل په څهٔ بهانه

حجابونه ئے له مخ نه راښکته کړه

درته وایم ته ٔ په موږ کښے ئے دانا

کړی وئیل د وارو منګی مات کړه

په سرتورے په هم ویرکا هم وینا

فتح خان منګی د وارو جونو مات کړل

د اوبو لښتی روان شو له پښو یا

اے ملا نعمت الله فتح ورانے کړی

خلق وائے وکرم ته کړی ګمنا

---

له قصه دفتح خان ، نعمت الله ص ۱۵

په وروستي بیت کښې نعمت الله په خپله دخپل هیرو په کردار باندې تنقید کوي او په دا سې کونو کښې د هغهٔ سره هغه اولسي اوسماجي شعور مل ښکاري دکوم له خوا چه دا قسمه حرکتونه په پښتنه معاشره کښې ناخوښې او معیوب ګڼړلے شي۔

نعمت الله ددے منظر په تفصیل کښې وړاندے هم ځي او په شعوري توګه د فتح خان ددا سے قسم چارو نتیجے په ګوته کوي او د هغې غندنه کوي۔

چه منګی له کاڼړے وربه وړو کس

دخوبرو د مخ په لرے شوه خا مه

نوراني مخ ئے بیرون شه له نقابه

حیرے شونړے ئے سرے په دنااسه

جینکئ ئے تمامې لوڼدے خوشے کړے

په ډیر شرم کښې کښېنه کله پا شه

اوکله چه ددے خبرے شکایت اسلم خان پاچا ته ورسي نو د هغهٔ د وزیر دلیل خان په وینا دښار جینکو له په بدل کښې د تانبے منګی جوړ او ورکړے شي۔ خو فتح خان دکوي په ستړ پیں په دے منګو باندے دغشو باران جوړ کړي او چه د هغې نه پس ورله د خرمنے مشکونه جوړ کړے شي نو هغه هم د فتح دغشو ښکار شي۔

دفتح خان ددے حرکت دپاره د هغهٔ د فطري مستئ نه علاوه نعمت الله یو جواز دا هم کتلے دے چه په دغو جونو کښې دیوے په ځهره کښې فتح خان ته دخپلے دا بیا عکس ښکاریدهٔ۔

فتح[۱] خان ویښل کرمه ته ړ وار دے

که حلال ګنړے په ځان زما انعام

ددے جل نه چه مينګے اول سوړے شی

چه پښتان ئے دراېيا دے حرام

نو شاید چه داجواز نعمت الله دچل مرکزی کردار دشخصيت دلوړتيا د

بچاوی په غرض لټوی ...... خو په دریم ځل چه دباچا درعيت پيين روبی

مشران د احتجاج په توګه دمغهٔ په وړاندے او دريدل نو بيا داسلم خان سره

دچل نازولی شهزاده دبچاوی هيڅ جواز پاتے نهٔ شو سیوا ددے نه چه مغه

دفتح خان غصه په کرم اوباسی.

بادشاه[۲] اووے داعلت ټول دکرم دے

په نفس کرم داوستے ټول عالم دے

کوے ړ په حيا له فتح دړوی

اوکنه سزا به ډيره لهٔ ما موی

او دا مغه فيصله وه چه ددے داستان دواړو کردارونو دپاره ئے يو المناک

انجام په ګوته کړو.

دکړی په شړلو اسلم خان دهمبرو (هندوانو) سوړے ته لاس واچولو اوپه

دے چل ئے دکړی دناړامه فطرت ټول زهر را وپاړول.

کرم چه د فتح نه جدا شو نو مغه ورپسے کرم شو اوځهٔ وخت چه د دليل خان

---

[۱] قصه دفتح خان، نعمت الله ص ۱۷

[۲] قصّه دفتح خان، نعمت الله ص ۱۹

په مشوره کړے دوباره دا اوبللے شو نو هله د فتح خان زړهٔ قرار شو. په دے اوان کښے فتح خان ته درېیا په رنګ رنګ او شاهانه شان کښے واده شوه - او دا هم څهٔ لږے خبره نهٔ وه چه د وادهٔ نه پس د دریا په مجلس کښے د فتح طور طریقے بدلے شوے وے نو د کړې دوباره راتګ د اسلم خان د ټولے ځیلخانے د پاره د یو تباه کونکی طوفان راتګ وو .

فتح خان ته دا حُل کړې دا سے ښهٔ باغونه اوښودل چه په هغهٔ ئے ځپل کورکلے د پلار باچائي د مور خوا او د ښځے مینه هر څه پریښودل او په پوخوشحاله او ودا نه ځیلخانه ئے هاغه سوران ګڼه کړهٔ .

که مور پلار ورته هر څومره زارئ کولے خو فتح د هندوستان په لور د ځپل مهماتی سفر نه په شاکیدهٔ نه - دا سے ښکاري چه د فتح خان هر و ځپله څه د فیصلے قوت پاتے نهٔ وو او هغه هر څه د کړې خوښے ته سپارلی وو - او د کړې چالاکیا هغې حد ته رسیدلے وه چه د هغې په وړاندے د فتح خان په ځینے فطرت (او تر څه حده ساده والے) سر نه شو پورته کولے .

کړے یو خوا ته هغه ته د هندوستان د باچائي لالچ ورکوی او بل خوا د دلیل خان خلاف د هغهٔ غوږونه ډکوی او د دلیل خان وجود د پرے دا سے تکړے موجب شی چه په هغې کښے پلار د زوئ په مقابله اودرېږي - اسلم خان د زوئے هره ناروامه یوسی خود ځپل پیټلی او وفادار وزیر دلیل خان د قتل ګواښ هغه جرم وی چه هغه پرے ځپل زوئے را اونیسی .

سرداران ته ئے وے فتح رخصت دے[1]

که څهٔ پس له دے نه پاتے بدم نیت دے

---

[1] قصه د فتح خان، نعمت الله ص ۲۲

ACKU

کړے فتح به دواړه کرم په داں
په یو ځل به توے خالی کرم قندهار

اسلم خان چه فیصله له دیره تاوه اوسوخته کړے وه ـ پکار وه چه دا حقیقت په فتح خان هم ښرګند وے خو دهغهٔ بے مهاره مزاج دده قسم خبرو ته بلد نهٔ وو ـ دپاچا دے فیصلے دهغه له ضرورته سیو څه اعتمادئ او هسکے اَنا له یو داسے چابک ورکړے وو چه هغهٔ د نا قلاره پارے په شان په ټوپونو کړو او د اسلم خان تشو لفظونو ته فتح خان رشتونے معنے ورکړے او دنعمت الله په الفاظو کښے ـ

فتح خان چه له دے حاله خبردار شهٔ
کړی لره په هسے رنګ ګفتار شهٔ
ورته ئے وے کومه توں برځ خبر کا
دسفر اسباب سنبال وسراسر کا
بس له دے به قندهار کښے نهٔ شم پاتے
که هر څو راباندے اوکړے نتو استے
کرمیه دغه دے زما ذلت
چه به کرم د دلیل خان وزیرخدمت

اوفتح خان چه یو ځل دکوچ اراده اوکړه نو بیا نهٔ د مور زارئ راسم کړو نهٔ دپلار منت ـ نهٔ دورابیا د زلفو پیکرو راایسار کړے شو اونهٔ دپوردل خان ( دورابیا ورور ) دهمدردئ نه دکو نصیحتونو ـ دصفهٔ

ـــــــــــــــــــــــــــــــ

له قصه دفتح خان نعمت الله ص ۲۵

ضدی طبیعت چه د خان دپاره کوم منزل ټاکلې وو دهغې منزل پهلاس د دنیا یو طاقت هم بند نهٔ شو اچولے۔

د قندهار د دشتونو او علفزارونو نه الوتے دا مرغه (فتح خان) چه د هند په میدانونو ورسیدو نو د هغهٔ د برترئ احساس لا په هوا شو۔ او د ازبیشتونو او مېیستونو مخ له چه راغه نو د فتح حوصلے نورے هم ځوانے شوے او سره د دے چه هغهٔ ته د حقیقت د ترخو اندازه ډیره ژر لګیدلے وه۔ خو د هغهٔ پښتون فطرت د تیښتے نه وو۔ دومره وه چه په اول ځل هغهٔ ژوند او د ژوند مسئلے د نزدے نه اولیدے او د دے قسم تجربے او مشاهدے د هغهٔ کوداس دانسانی بصیرت د هغه عنصر سره هم آشنا کړلو څه ته چه حقیقت پسندی او ژور بینی ویلے شی۔ او چه دکوره په صحرا شو او د صحرا د کړاښتونو او تکلیفونو اندازه ورته اوشوه نو هله ئے د کورې اصلی څهره هم اولیده او په ژوند کښے په ورومبی ځل فتح خان کورې ته په دا سے ترخه لهجه کښے خبرے اوکړے د کم از کم لوستونکو ته دا خبره واضح شی چه د کور د چارو په حقله د فتح خان د وراندے نه اندازه څه ډیره ښه نهٔ وه خو او شوه مروت رانیولے وو او چه حالات بدل شو نو د هغه په رویه کښے هم شدت راغے)

مابه وے کرمه مهٔ کړه وران کاروونه

تا به ناؤ دیدهٔ زما نصحتونه

دا څه کوره اوس فوځونه د مغل

چه هر کړ به ترے خلاص نهٔ شی په کابل

---

له قصه د فتح خان ص ۳۲

خو په دے برخه او ناموافقو حالاتو کښے هم هغه حوصله نهٔ بائیلی او په شا تینبسته اوس هغهٔ ته دهوړ او پښتونه خلاف او د بد ناموسئ کار ښکاری ـ

زما خاوره د ه کرمه د دے ځائے

اوس داخی یم پکاره و نو زهٔ د خدائے

څهٔ چه کینل وی په تقدیر هغه به اوشی

بے تقدیره که څوک واڅ څه به او شی

او څهٔ وخت چه شمس الدین مغلی په هغهٔ پسے فوځونه اولیږی او د ا ناوړے شرط هم ورالیږی چه د ابیا ماته حواله کړه نو د هغهٔ د سرنه د اوبه لبه پورته شی او د چلو پښتنی احساساتو څرګندونه په دے دول کوی ـ

چهٔ قاصد ته رخصت ورکړو فتح خان

بیائے حکم کړی ته کړهٔ د اشان

چه کرمه تول بریخی کړه تیار

چه صبا سحر به کړو د جنګ اختیار

په کاغذ کښے کښلی داوو شمس الدینه

حرائی ئے څکه کړے کلام کمینه

ځان بیدار کړه در به شمه ترمیدانه

شمس الدینه چه ښکاره د شی مړانه

او هم هغه فتح خان کوم چه په خپل وطن کښے یو بے پروا، بے احساسه، بے وسوا[له]

اوپه جر مست شهزاده بنڅلے شی ـ په بدلو حالاتو کښے د هغهٔ په کردار کښے څنے

---

له قصه د فتح خان، نعمت الله ص ۳۵

دا مے تبدیلئ هم راشي کو ے چه د خټک د کردار نه غیر متوقع نه دی خو بیا هم

موږ ته عجیبه ښکاری -

نمونځ ئے اوکړه د سحر په امامت

بیائے کړو د خدائے په در کښے لاس اوچت

خدایه اوساتے ناموس دکل پښتون

ته په چل قدرت قادر ئے بے چګون

دجنګ په میدان کښے چه د فتح خان بریخي د مغلی ښکر سره په کومه ځيګورتيا

او مړانه اوجنګیدل دخټک نه دعوئ دفتح خان سره دپت اودخټک په مشریئ او

دوستئ د اعتماد اود خټک د ذات سره دتړلے مینے جذبه په ښه شان برخیسره

کیږی -

په تیره تیره دکوم اوچودل خان مړانه دکتوره -دکوم دپاره چه فتح خان

خومره قربانئ کړے وے دخټک جواب کړی هم په خټک دود ورکړلو اودخټک قربانو

رنګ په خټو وشو کښے ځلیده کوے چه کړی دچل یار په پت کښے پنے په ترتوب

سره توئے کړے - اودکوی دکردار دے ارخ ته په کتو دفتح خان په حقله

دیره دغه رائے تر ډیره حده بدله شی چه ګنی خټک مردم شناس نهٔ وو

اویا خټک په دوستانه کښے په پټو سترګو په کوته اوچوته کسانو ملا تړلے وه -

حقیقت داوو چه فتح خان دلیوتتوب تر حده یارباش اودوست پرور

ذلے وو اود خټک برخو هم تر آخره وخته دخټک سره اوبالله -دا بیله

خبره ده چه دغلط تربیت له وجے ددوئ تولو نه ځینے غلط اوناخوښی کارونه

---

۱ قصه د فتح خان ، نعمت الله ص ۳۵

هیم او شول - دغلط تربیت، بے خوته مینے او بیانزبین توب بے ځایه خوشامند واو دوستانو غلطو مشورو دے رومانی قیصے له یه شریکه یو المیه انجام وکتلو.

دفتح خان دنا قصه تربیت ارخ ته دکتاب په آخر کښے بناغلی نعمت الله هم گوته نیولے ده او خپله رائے دا سے څرگنده کرے ده.

هر پښتون لره چه گورم دا نقشه ده

په هر کور کښے دغه رنگه تماشه ده

چه زوئے اوشی وزے ورزی خوشحالی وی

بیا چه لوئے شی نوی دعقل نه خالی وی

---

## درابیا کردار :-

دفتح خان او رابیا په رومان کښے عشقیه رومانوی ارخ ثانوی حیثیت لری اوکه دپښتو دیا فارسئ او نورو ژبو د نورو رومانی قصو او داستانونو په دے قصه کښے دحسن اوجنئ دحسن وعشق روایتی منظر کشئ اوسته ارے ډیرے کمے ښودلے شوے دے. ولے بیا هم د رابیا په حقله چه نعمت الله ځائے په ځائے کوم اشارے ورکړی دی دهغے له مخه رابیا دخوستونکو او اورید ونکو په ذهنونو دیوے پرے جمالے او وفادارے شهزادگئ په رنگ کښے خپل نه وړانیدونکی خاپے شاته پریږدی.

دقیصے په شورو کښے چه کله داسلم خان باچا استازے آدم خان داجمیر حاکم پوردل خان ته په دے غرض حاضر شی چه دفتح خان دپاره درابیا

---

ل قصه دفتح خان قندهاری، نعمت الله، ص ۷۶ - ۷۴

دښته اوغواړي - نو درابیا اولنۍ پېژندګلو د دوستونکو سره هم دپوردل خان په وسیله کیږي -

پوردل خان وېل بي بي رابیا ے خوږ ده[1]

چه دحسن ښهره ئے تلے لوړ په لور ده

ورته لاښ ے ده په حسن ګل اسنه امه

په پرده کښے ناسته ده هغه نیکنامه

او دوے نه پس چه رابیا څه وخت ناوے کیږي نو قصه ګوئی علت له ځلے غاړے د هغې په صفت کښے یو څو بیتونه وېلي دي -

په ګلګون ئے ورله کړے ښونږ ے نبات

زوږ دحسن ئے شه خور په سمه سوات

هم لاسونه ئے ورله سره کړه په مسکرېزو

درست عالم ئے په دیدن پسے مریضو

... ...

... ... ...

یو په سل ئے ښائست زیات له هره کله[2]

که څوک واخلی دانصاف ورپسے تله

خو دے نه پس د رابیا په وراښے د جانان په کوږ کښے ددوي ان د غمونو دلئ بوږے شي - او هغه مونږ ته په ټوله قصه کښے د یو ے رومانی

---

[1] قصه دفتح خان قندهاری نعمت الله ص ۱۱

[2] ایضاً ص ۲۲

محبوبې نه زيانه ديوې داسې وفادارې، حيادارې او ذمه وارې ميرمن په څيښنکاره کيږي چه عن په ناوې توب کښې پرې دخپل څښتن دلاسه د ژوند درانه پيټي اېښاد شي.

داسلم خان او فتح خان ترمينځه چه خبره ترخه شي او بابا دخپل کور چلنه اوبې سره زوئ دپوميو نو په خيال دمغهٔ اوښې پوردل خان را اوغوارى نو دا بيا دناوې توب دجامې نه سروابهر کړي او دخپل وړور په ورانى ديوې پوهه او رسيدلې ميرمن په انداز کښې اودريږي.

دا بيا کسئ وې ښه دا وکړهٔ چه تهٔ راغ[1]

فتح تل کړئ فتنه کښې د پيدرسته

دبادشاه دفتح خان سره فتنه ده

خدائې د داورځ پسې نهٔ کړى خپل بشرسته

پلار رخصت بخوا ورکړې فتح خان سته

پوردل خانه خوايسار وه ستا خبر سته.

پوردل خان ته دخپلې ناوې خپل دمجبورۍ پوره احساس وى. مغه د فتح خان سره په دې لړ کښې بښهٔ سرخوږ کړى څو فتح دخپل ذيل نه په شاکيږى نه او توې دشتې او خپلوئ شا ته او غورزوى. او چه څهٔ وخت دهندوستان په لورى کوچ کوى نو پوردل خان هم ورسره تللو ته تيار شي. ظاهره ده چه په دغه وخت به ديوې تازه وادهٔ شوې ناوې ذهني کيفيت څهٔ وى کله چه دمغې خاوند په يوې مقصد او خطرناک سفر بل وطن ته روانيږى. او خپلې ناوې ته په

---

[1] قصهٔ دفتح خان قندهارى، نعمت الله ص ۲۷

دے انداز کښے مخاطبه کوی -

راښیا ګئی که پاتے کیږی واک ئے چپل دے

پور دل خان څان سره بیایم زما مسل دے

نو په ځائے د دے چه رابیا هم دخاوند د دے ناپسندے روئے په ځواب کښے برنده شوے وے۔ هغې یوه داسے فیصله اوکړه کوم چه په داسے موقعو او حالاتو کښے درنے او غیرتی پیښانے کوی -

بیا رابیا بی بی ویل چه زهٔ هم خم

چه ے څهٔ په تقدیر دی هغه به مومم

د فتح خان د کوچ د ښندارے تاثر په هغې غیرونو اونارو کښے دیر سیوا ښکاری کوم چه په اولسی روایتونو کښے د دے قیصے سره تړلی دی -

فتح خان د تلو په وخت په رابیا داسے ناره کوی -

که پوښتی د رابیا خونګئ ے پوښتی

فتح ځی د هند ولور ته

د غه ګل رابیا ے ځی که د ے اوسی

رابیا چه دا ناره واوریده نو ده ے په فتح خان ناره اوکړه -

که ځوراند ے د کوټک ورځئ ځوراند ی

فتح چه ځی د هند ولور ته

د غه ګل رابیا ے ځی تر تا دوراند ے

---

[1] قصه د فتح خان قند هاری نعمت الله ص ۳۰

[2] ملی هندارہ د دیم تهوک ، محمد ګل نوری ص ۱۱

ACKU

او ښاغلی محمدګل نوری په دې لړ کښې داهم لیکی چه څهٔ وخت د فتح خان مور په ژړا واویلا راغله نو

" دآبیا ورحمله کړه د فتح خان داسی جلوبې په دواړو لاسو ټینګ اونیوچه مهٔ ځه - د فتح خان لږ څه زړهٔ نرم شو - خوخوښت ئې چه کښته شی او پاته سی د مینې ناز دې اغیزه ئې پرې اوکړه - کړی چه فتح خان اولیـد چه پاڼی کیږی نوی ناره ئې پر اوکړه -

که تاک دې د هندوستان په سر کښې تاک دې
فتح ځی نهٔ داستونیږی - اجولی ئې دږی دابیا طلاق دې)

دد واړو راویانو له رویه رابیا د فتح خان سره په هغې سفر کښې ملګرې شوه چه د منزل ئې هېرو څه درک معلوم نهٔ وو.

د فتح خان په زړهٔ کښې چه د رابیا د پاره څه ځائے وو د هغې د ځرګندولو د پاره نو فتح خان ته چرته فرصت په ګوتو نهٔ وو ورغلے او د رابیا په زړهٔ کښې چه د فتح خان د پاره د مینې کومه لافانی جذبه پرته وه هغه په مختلفو موقعو هغې ښکاره کړه.

څهٔ وخت چه د مغلو فوځونه راشی او فتح خان او د هغهٔ ملګروسره د دے نه سیوا بله چاره پاتې نهٔ شی چه باوجود د ډېرو محدودو وسائلو او کم شمیر د هغوئ مقابلے ته ورا وځی - او رابیا ته چه د حالاتو د نزاکت اندازه اوشی نو هغه د یو بریتی منتونه شروع کړی.

رابیا کئ وکړه کرم ته منتونه[۲] — پریوته د مربریخ په قدمونه

---

[۱] ملی هنداره دویم ټوک محمدګل نوری ص ۱۱ - ۱۲

[۲] قصه د فتح خان قندهاری ملا نعمت الله ص ۳۶

بیا ئے وے کوته دوره خته معطل شـه

دپوردل فتح چه اوکړم دید نوـنه

بیا ئے وے چه فتح پرے نهٔ دے پواځے

که هرڅو دمغل وی راشی فتوځوـنه

دجنګ په دوران کښے به چه کوم ډوبل یا مرګونی کسان داوړے شول نو رابیا به ئے لکه دیوے نرس په خدمت کښے لګیا وه ۔

اس وسله ئے دهر یو برېخ نیوله

لکه وینځه ئے خدمت کښے ګرځیـد لـه

په پانګ ئے واچوهٔ هغه مجـروح

متصل په اچول ترے لاړ شهٔ روح

د ملا نعمت الله د فن کمال داد ے چه هغه دخپلو کردارو تو انسانی اړخونه دهرے زاوے نه په نظر کښے ساتلی وی ۔ دخپلو کردارو نو په لوری دهغهٔ کتنه او څارنه هیڅ کله یو مخیزے نهٔ وی ۔ دغه وجه دهٔ چه په دے تو دجنګ به هم زموږ نوږو داستان کو یو څپله ټوله توجه دمینو او هیروئن دروما نی رشتے اړخ ته ټینګه ساتلے وے خو نعمت الله په دے حال کښے هم درابیا خیال ( دخپل خاوند سره دبے ټچه مینے باوجود ) دهغے دموږ په خوا بیانی ۔ څُکه چه دهغے دسترګو په وړاندے دمرګ په خُله کښے دهغے ورور هم ولاړ دے اوداد یوے ښځے د نفسیا تو معموری ده ۔

کله چه نور برېخی ختم شی او پوردل خان اوکړے بس دفتح خان سره

---

له قصه دفتح خان قندهاری ملا نعمت الله ص ۳۷

پاتےشی نو رابیا ته په دغه وخت دخاوند سره سمه دځیل پلار خپلخانه هم رایاده شی او دا یو فطری عمل دے ۔

په[1] اسونو چه دوګه شو سواره درے واړه

رابیا را غله ورله بیا په مسکه غا ړه

په ژړا ژړا ئے وے پوردله وروره

راشه ورشه یوځل ته ترخپلے موره

په ژړا به ئے دی پسے ستر ګے څلور وی

بے له تا نه به ئے بل څرته غمخور وی

تاج وتخت به د بل په حواله وی

ته چه نه ئے مال دولت به د تاله وی

داسے بنکاری چه ددے المیه داستان د ټول غم او دالمئے دواړه شدت د تعلق د پاره قدرت هم رابیا بوره کړے وه - ځکه چه د مغه دستر ګو په وړاندے د فتح خان شپیته ځ بریخی یو په یو قتل شی - د مغه ایکی یو سر وروړ پوردل خان ټوټے ټوټے شی او د مغه ځښتن فتح خان هم په ویښو سوړ د مغه په وړاندے ساه ورکړی او رابیا په پردی وطن کښے بے اسرے بے وسیلے یوا ځے پاتے شی ۔

په[2] پاڼنګ ئے واچول دواړه کلوسنه

څه به وایم د مغه سختے اخوسنه

---

[1] قصّه د فتح خان قندهاری نعمت الله، ص ۳۸

[2] ایضاً ص ۳۹

نهٔ ئے ورور نهٔ ئے پدر نهٔ ئے مادر وهٔ

غم یوا ځے د رآبیا په پسر وهٔ

نو د نعمت الله په خیال کښے د رابیا کردار د دے غم لړلی داستان د انجام په سلو خالی د ساندو کوټو او اوښکو تویولو نه دیرهسک او اوچت وو۔ هغهٔ ته د رابیا په ذات کښے یوٚ داسے ښښته پیغله ځلیدله چه هغې ته خو په الا اسانه ځان د فتح خان غونډے دبے ارزښ مړکی ته حواله کولے شو او نهٔ ئے د فتح د مرګ نه پس د شمس الدین مغلی د شیطانی ارادو غیبرے ته او په داسے حالاتو کښے هغې د خلاصی ایکی یو ه لار لیدله ۔ چه په چل ول او چالاکئ شمس الدین ځان ته راوبلی ۔ او بیا ورسره هغه عمل اوکړی کوم چه دیو ښښتنی انتقام د شان جوګه وی۔

شمس[1] الدین چه شو راګوز داس د شانه

رابیا ګئ ورته ولاړه وه حسرانه

رابیا وه چا ړهٔ یوله ترخ کښے پټه

چه به پرېکړم د وزیر د عمر سټه

چه حرم ته سره نتوتل دواړه

رابیا ګئ شوه ورسره غاړه په غاړه

په وزیر ئے وکړه هسے رنګ ګذار

متصل ئے دګذاره کړو مردار

او دغه شان رابیا په هسکو سترګو د مرګ سره مخامخ شوه۔

په دے قصه کښے ملا نعمت الله که هر څو د واقعاتو په ترون کښے د

---

[1] قصه د فتح خان قندهاری ، نعمت الله ص ۳۹

استهاق ربط اوتنظيم خيال ساتلے دے اوكردارونو له ئے هم ترخپله وسه دحقيقت
رنګ ورکړے دے ولے بيا هم دهغو تاريخي حوالو او غلطو نه ئے ځان نۀ دے
ژغورلے کوم چه زمونږ داکثرو اولسى قصو شريکے اوروايتى غلطئ ګڼلے شى.

لکه دنورو قصو دفتح خان دربيا واقعه هم داکبر دزمانے سره تړلے ده. او
شمس الدين ئے داکبر دوزير په نامه يادکړے دے رچه دهغه فتح تاريخي صحت
نشته ) او دصدرخان دشهئ په شان دنعمت الله رابيا هم په خاتمه کښے داکبرباچا
په وړاندے حاضرېږى اوهغه پرے دخپلو مهربانو اوښيګړو کلونه شندى۔

شمسُ الدين ئے په قلا کښے مردار پرېښو
دربيا زړۀ دبادشاه مخکښے قدم کيښو
شوه په مخکښے داکبربادشاه حاضره
حقيقت دفتح خان ئے کړه ظاهره
بادشاه ډير وکړه فتح پسے ارمان
چه ناګاه راغے قاصد داسلم خان

اوبيا ډيره دحيرانتيا خبره خو داده چه دنعمت الله غوندے عالم او فاضل ليکونکے
داکبر دزمانے په واقعه کښے دشاه جهان ذکرځنګه راوړى - بى بى رابيا چه د
فتح دمرګ نه پس شمس الدين وزيرته خط ليکى نو په هغے کښے دشاه جهان دمذکور
نه بل دکوم شاه جهان مراد اخستے شى رسيوا ددے نه چه هغه داکبر نمسے اود
جهانګير زوئے شاه جهان يادوى۔)

---

[1] تقصه دفتح خان قندهارى

نعمت الله ص ۳۴

پهٔ دبدبې دسکندر دور زمان شے

پهٔ کرم دهمایون دشاه جهان شے

بناغلی خیال بخاری د پښتو ژبې د داستان ګویو دغې روېئے ته داسې اشاره کړې ده۔

"دا ډرامانو نه په پښتو کښې دېر پخوا راسې رارواں دی او سکه د تاریخی قصو بالکل دبنیا ګڼړلے شی ۔ ولے په دے کښې ځنے واقعات یا نومونه داسې هم دی چه تاریخ سره څه سمون نهٔ خوری ۔ لکه سعدالله خان د اکبر باچا وزیر وو یا بیربل باچا په چل لاس مړ کړو ۔ وغیره ۔ د دے عمومی غلطو نه علاوه ځنے واقعات داسې دی چه د هغوئ څهٔ تاریخی ثبوت زمونږ لاس ته نهٔ دے راغلے ۔ خو د تاریخ وارهٔ وارهٔ اختلافات عمومًا نظر انداز کولے شی ۔ او تقریبًا د هر ملک او قوم په قصو او رومانونو کښې عمومًا داسې واقعات موجود وی چه تاریخ سره سمون نهٔ خوری ) او شاید چه زمونږ قصه ګویو دا عمل هم د خپل فن د تقاضو او غوښتنو یوه لازمی برخه ګڼړلې ده چه د خپلو واقعاتو د واقعیت په ثبوت کښې د خپله قصه د چا مشهور بادشاه د دور سره منسوب کړی ۔ او د دغه غرض د پاره اکثرو پښتو لیکونکو د اکبر باچا په ذات تکیا کړې ده ۔ شاید چه د اکبری دور سره د ترون نه بغیر د قصې جلالی شان ته د کمی ویرو خطره پیښه وه ۔

**د کړمی کردار :۔** دفتح خان او رابیا د قصې په کاهمو کردارونو کښې کوم د تولو نه دلچسپ او موږ کردار د ے او په تکنیکی توګه د دے قصې د مرکزی کردارونو

---

۱ قصه دفتح خان قندهاری نعمت الله ص ۴۴

۲ د دے اوشهٔ صدر خان مقدمه ص ۳۲

ACKU

نه هم دکړي د درجه اوچته بشکاري او په عوامي پيمانه هم دکړي نوم د پښتنو په مجلسونو کښې تر نن ورځې د ضرب المثل په دود استعماليږي.

د فتح خان دکردار په شان دا کردار هم يو ځکه اړکردار دے. او د مختلفو حالاتو او چاپيرچلونو سره ئے په رويو کښې ادبي بدلے راځي. خو د فتح خان ته هم ورتيس دکړي په فطرت کښې ديو خاص قسم جذباتيت اغيزے کوي کوم چه په ښو اوبدو دوارو غاړو په انتهائي (Extreme) شکلونو کښې ځان ښائي.

د جذباتي عنصر دا بوتے دکړي په تنه کښې په مغه ليواله مينه سيرا بيږي کومه چه مغه او فتح خان ديو بل سره لري. او دکوم احساس چه په حقيقت کښې مغه له هم فتح خان ورکړے دے.

په کومو حالاتو کښې چه زموږ سره دکړي اولنۍ پيژندګلو کيږي نو مغه د معاشرے يو زبون حاله او بيخي يو بے قيمته اوبے وجے غړے ښکاري. په کومه جامه او کومه ځهره کښې چه مغه فتح خان ته مخامخ کيږي په مغې پورے ټيکوال هم پخپله پيرايه کښې خندا کړے ده.

دکرم جامے وے مسے رنګ شليدلے

تورے ښنے تهکرے جامو ته وے ګنډلے

پرے ګمان چرے اونۀ کړي د دروغو

هم ځادرۀ داويا ټهکرو نه روغ وو

خو په دغه شليدلو جامو کښې يو چالاک او تيرۀ ژبے انسان پټ وي چا چه

---

ل کرميه چه غم نۀ وي غم به راوړے (متل)

ٓ قصه د فتح خان قندهاري ملا نعمت الله ص ۸

د مخکښې نه د فتح خان د شاهانه او مستانه مزاج په حقله خبرنه کړي وي - او په
دړو مېنې عشقي باندې چېله ننجښه رسا کړي -

کوټي وې مادې ستا نوم اوریدلې[1]

ستا په نوم باندې ې پرېښو کوړي او کلې

فتح خان ورته ویل چه څه دې نوم دې

له کوم لوري نه راغلې کوم د بوم دې

دۀ ویل ملک ې بلوچ نومې کرم دې

د ښتنو را باندې پروت مې لوئې غم دې

او ددغې وینا اثر وی چه کرم د فتح خان زړۀ ته پرېوتی - هغه دځان سره[2]
نوکري او پاکې جامې ورواغوندوي او دغه خېرن څېرن کرمی مخ په پاکو ښا ئسته جامو
کښې لکه د نمر او ځلیږي -

کوم په ډېره لږه موده کښې د فتح خان په اعصابو داسې سور شي چه هغه ورته

---

[1] قصه د فتح خان قندهاري ملا نعمت الله ص ۸

[2] په ملي هنداره کښې کرم خان د فتح خان میرزې ورور ښودلی شوې دې. کوم
چه د باچا د ونیځ نه زبرېدلې وی . خو صم ددغې قیصې په یوه ناره کښې
کرم د فتح خان له خلې نوکر بللې کیږي.

آفرین کې په دا سې نوکر باندې
خان ئې وا چوۀ دې بادار دو ړاندې

ملي هنداره (دویم ټوک) فتح خان او بریخې

محمد گل نوري

په خپلو شپېتو داړو برخو کښې د پښتو نه لوی مقام ورکړی - خو د فتح خان بے انداز ے
مینې او بے لجه مهربانئ کوے د خپلې جاے نه اوباسی او هغه د زور کړی نه دومره
لوے لاړ شي چه د دواړو ترمینځه د عمرونو فاصله پاتے شي او هم د غه فاصله د
کوږي په سیرت کښې یوه داسے خلا جوړه کړی چه د هغې نه رنګ رنګ کږلیچونه
پیدا شي - په کوم چاپېرچل کښې چه هغه زېږېدلے نستلے کوځېدلے وو په هغې باندے
د برې او برلاسی خیال د کوږي په لاشعور کښې د یو داسے نفسیاتی رد عمل بناکیښوه
چه د هغې په ولقه کښې نهٔ یواځے د دغه چاپېرچل او سیدونکی راغلل بلکه په
ځان فتح خان هم ترے خلاص نهٔ شو - او بیا که د کوږي دلاسه د رعیت پېغلے آزارېدے
او که د باچا خزانه تالاکیږه نو هغه کرم نهٔ وو -

د کوږي په شخصیت کښې څهٔ داسے مقناطیسی اثر هم وو چه په مرچابه ئے
ملګرو چف کولو په شور و کښې خو د فتح خان نه علاوه د هغهٔ پلار اسلم خان باچا
هم د هغهٔ په وړاندے توره داله او غورزول .

د کرم ته دے دیل باچاهي ستا وه[1]
فتح ستا د منګل باز په تاتاوان شهٔ
تا چه سر د فتح خان د سره زار کړه
د بادشاه مال و دولت له تاقربان شه

د کرم د شخصیت د تولو نه جوته خوبي د هغه مردم شناسی او مزاج شناسی
وه - د هغهٔ د کامرانئ کنجی فتح خان وو او دا کنجی کوږي په خپله هوښیارتیا تر لاسه
کړے وه - هغه په هر هغه عمل کښې د فتح خان لاس تړلے ملګرے وو - کوم چه به

---

[1] قصه د فتح خان قند هاری، نعمت الله ص ۹

ACKU

دهغهٔ هواگیس او مستانه مزاج ته اسوده واے رسولو - او هغه لارے گودی ے به ے ورته بښودے په کوم چه به دهغه د بادارزړهٔ تسله بیا مونده - دغه وجه ده چه څهٔ وخت دګودی په غاړه د فتح خان د ورانه ے یوه بناشته پیغله په مجاب کښے تیره شوه نو دهغه د محز ترگند ولو په غرض هغهٔ دګړی نه مشوره اوغوښتله -

مجابوسه ے له مخه راځرگنـد کړه

درته وایم تهٔ په مونږ کښے ے دانا

کړی ویسل دواړو منگی مات کړه

په سرتورے به هم ویرلا هم وینا

او هم په دغه چلوټو هنرونو هغه دشهزاده خوښی خپلوی او دهغهٔ دغرو اونا کړدو په نتیجه کښے د قندهار پښتون روی او شریف خلق اول خپل باچا ته فریاد اوکړی او په آخر کښے ورته برند شی - او چه اوبهٔ د سرهٔ واوړی نو د اسلم خان سره هم داحل پاتے شی چه دګړی د شرلو فیصله اوکړی - خو دا فیصله یودا سے اوی ثابت شی چه دهغه لپے د اسلم خان دسکون د ماڼړی تر آخره سره پورے اوری - د دغے اور د تاؤ سرولو په خاطر اسلم خان فتح خان له وادهٔ اوکړی - او دڅهٔ وخت دپاره داوی لپے سرښکته کړی - خو دګړی په وجود کښے چه د دغه واقعے کوم خو دلن پاتے وی دهغے پټ بخری دهغهٔ په شکست خورده ذهنیت کښے یوځل بیا سر راپورته کړی او هغه فتح خان په یوه داسے لاس روان کړی چه هغه د سروتهکو لاره وی - د تباهئ سفر - د هندوستان په لور دکوچ مشوره هم دګړی د تاؤ خوړلی او

---

له قصّه د فتح خان قندهاری نعمت الله ص ۲۳

پاریدلی ذهن پیداوار وی - په کومو جاذبو رنگو نو کښے چه هغه چېل بادارته د هندوستان نقشه وړاندے کړی. دفتح خان صواکبر نظر د هغے په سحرکارو کښے داسے او نښلی چه نوره توله دنیائے دسترګو وړاندے تیاره شی.

په ډیلی کښے بادشاهی ده د اکبر

چه هیڅ ذور قوت ئے نشته دبنکر

که شپیته تنه په دوئی پسے روان شو

ذر تر ذره به حاکم د هندوستان شو

...         ...

...         ...

بادشاهی به داکبر کرمه ویجاړه

په ډیلی کښے حکم کړه په هسکه غاړه

او چه فتح خان دکوم په وینا دهندوستان د سفر بنا اوتړی او پلار پرے درآبیا وروړ پوردل خان جرګه کړی نو دکړی دشخصیت نبه په هغهٔ دومره سوئ وی چه عن دبحث په دوران کښے پرے ورشی او دخان سره فتح خان لاس نیولے روان کړی.

دوئ لادا خبرے کړے راغے کوم

فتح خان ته ئے ویل په هغه دم

شهزاده دکوچ اسباب واړه تیار دے

اس نیولے په انعام کښے هر یو یار دے

---

[1] قصه دفتح خان قندهاری، نعمت الله ص ۲۳

[2] ایضاً ص ۲۹

په یوشکل کړے دے قیصے وران کاړے ( villain ) دے خو په معنو معنو کښے نه په کومو کښے چه د قیصے د میرو (هیرو) په مقابله کښے راوځی - په حقیقت کښے خو هغه په هر کار کښے د فتح خان ملاتړ او مرسته کوی - او د هغهٔ د وجود سیورے ښکاری خو د کړی د شخصیت د بریښنا په وړاندے د فتح خان څهره داسے تته شی ....

چه وجود سیورے شی او سیورے وجود - ولے د واقعاتو د عمل او د هغے د نتیجو په حواله کړے د دے داستان ویلن دے او هغے ته مُلا نعمت الله هم ځائے په ځائے اشارے کړی دی -

کړے نعمت الله کاروونه سپک کسے ی[1]

زړتر زړ به فتح خان له ملکه ورک کړی

یا

بیا نا ک عالم تول ورک نعمت الله شو[2]

پاتے ستا د دزالو سره کندران شو

او څهٔ وخت چه د آباسین په مانړکانو بانډے کړے لاس پورته کړی نو فتح خان هم د هغهٔ په دے حرکت د ناخوښئ اظهار کوی -

کړی ترے کوورے کړے چاپیرے[3]

چاله ئے ورکړے په سیند کښے غوټے وړے

---

[1] قصه د فتح خان قندهاری ، نعمت الله ص ۳۳

[2] ایضاً ص ۹

[3] ایضاً ص ۱۱

فتح خان وئیل کرمه مه کړه وړانــے

ستالـه لاسـه چرے نهٔ کیـږی ودانـــے

د محمد گل نوری په قصّه کښے چه هم کله د گوار چیانو په مرسته کښے کرے د نتاڅو نه بے خبره د مغلو سپاهیان اووژنی نو فتح خان د هغهٔ په دے ورانه چاره له ډیره تاوه ناره اوکړی ۔

کرمیه[1] چه غم نهٔ وی تهٔ غم راوړے

که به زما ږ دعا کیږی

کرمیه ږ لـم غوټـه سوړو واوړی

خو د دے هر څهٔ باوجود د دے حقیقت نه انکار نهٔ شی کیدے چه دکړی په وران کارو کښے فتح خان هم هغه هومره لاس لری څومره چه هغه په څله ۔۔۔۔ ځکه چه کرے په اکثرو موقعو باندے ورانئ او زیاتئ محض د خپل یادار د مرضئ او خوشحالئ په خاطر کوی ۔ او د دے خبرے تائید نعمت الله هم کړے دے۔

اے ملا نعمت الله فتح ورانـے کړی

خلق وـلے وکرم تـه کړی گــناه[2]

خو د دغے یو اړخ سره د تصویر دویم اړخ هم د کتو دے ۔ دکړی د کردار د غه دویم اړخ هغه وخت څرګند شی کله چه دوئ په هندوستان کښے د یو طاقتور دښمن مقابلے ته راځوځی ۔

او " د غه[3] وران کارے بد ذړے او بد مرغی کرے د بیا ته د یو وفادار او توروزن

---

[1] ملی هنداره محمد گل نوری ص ۲۰

[2] قصّه د فتح خان نعمت الله ص ۱۵

[3] پښتو افسانه ، تحقیق و تنقید محمد اعظم اعظم ص ۶۱

دوست دکردار عملی نمونے وړاندے کړی ۔"

دجنګ په میدان کښے دمغلی لښکرو سره صفه دهرے خطرے اونتیجے نه بے پروا داسے په بهادرئ اوځیګورئ اوجنګید چه دصغه په کردار د ټولو نه لوئے اعتراض کوونکی ملا نعمت الله هم دصغه مرانے اووفا ته په زوښنه وړاندے کړے ۔

کړی دودسته توره چـــلوله

چه هر ګزرے وېره نۀ وه له مغله

چه په چاپه ئے د توري ساز شو وا

تره په ساز شو په ګدازپا نۀ چها ر

اود جنګ دغه خونړے میدان چه نور ټول برېښی اوخوری او د فتح خان نه عــلاوه یوائے پوردل خان اوکرے پاتے شی نو دغه وخت د رابیا سترګے هم بس کړی ته وی او د صغے زړه یو په صغه پانسے راټول وی ۔

کوم یاری سترګے سرے وے هم له نمــه

په فریاد فریاد به ئے وے وروه کرمه

فتح خان پوردل ے پرے نۀ دے یک لخته

که هر څی کرمه راشی په تا سختــه

اوپسا تے کوے که هرڅومره د پساتونو (قسادونو) ډک وو خوځان ئے

---

ا قصّه د فتح خان قندهاری ، نعمت الله ص ۳۶

۲ ایضاً ص ۳۲

دخپل یار او یادار فتح خان نه وړاندې هغه پسات (فساد) ته او سپارلو کوم چه دوی دخپله لاسه دخان دپاره خوښ کړے وو۔

کوټی خوړلے وو زخم مضبوط
چه ئې روح جدا کیدلو له کالبوت
فتح خان ددهٔ له غمه سرگردان وو
دود داوښکو ئې په مخ باندې روان وو

---

# موسیٰ خان ګل مکۍ

د پښتو د نورو اولسي قصو په شان د دے قصے هم مختلف روایتونه دي. چاپه یو طرز بیان کړے دے چا په بل رنګ لیکلے ده. د کابل چاپ ملی هنداره کښے خو د قصے عنوان هم د موسیٰ خان ګل مکۍ په ځائے موسیٰ جان او ولی جان دے او په نثر کښے د اوږدو پانړو په اووه ښپېتو مخونو خوره ده. بل خوا د ملا نعمت الله منظوم قصے هم د دغے کچ ټول ټیټ مخونه نیولی دي او دا فرق یو ائے د ضخامت او لنډوالی او اوږدوالي نه دے د واقعاتو تشکیل او ترتیب په دواړه ځایه بیخي بدل دے. او په کردارونو کښے ئے هم د مزکے آسمان فاصله ده.

د ملی هنداره د اکثرو قصو په شان د موسیٰ جان ولی جان په قصه کښے هم داستاني لوازم د اهتول دي. د واقعاتو بے هنګامه برپیل او په خپلو کښے ئے غیر منطقي تړون او د دغے ناشونکو واقعاتو په حواله د امکان له حدونو وړتیره هیرو پرستي، د بهادرۍ او توروزنۍ نامتونکے کارنامے او د عقل نه تیروبیر خبرے هغه توکي دي چه د بناغلی نوری د موسیٰ جان او ولی جان د عنوان سره تړلی کردارونه ئے د افسانوي او تکنیکي کردارنګارۍ د پوړے نه ډیر ښکته او ودرولی دي. او د استاني روایت سره ئے تړلی دي.

ولے هم د غه قصه چه نعمت الله په کوم ډول اوکومه توله لیکلے ده په صنع

---

[1] ملی هنداره د دویم ټوک، محمد ګل نوری ص ۹۲ – ۱۴۰

کښې ئې د داستان د عقل او فطرت خلاف د پېښو او عناصرو نه ډېره کړې ده او دغه
په کردارونو د ډونډو بنیاد موګمان کېږي . په دغو کردارونو کښې د نو لسمې صدۍ
د دروستۍ دورې د برصغیر د دغو انسانانو عکسونه ځلېږي کوم چه د دغه وخت د
ناول یا افسانو کردارونه وو .

د ملا نعمت الله د قصې پلاټ څه داسې دې .

عیسٰی خان د تورترین نومورې خان وو چه نارینه اولاد ئې نه وو . د
کاکا صاحب په دُعا د هغهٔ دوه زامن پیدا شو . عیسٰی خان څلور دوه زامن موسی خان
او ولی خان د پښین ترین د ملا سره په مکتب کښې داخل کړي او د غلته د پښین ترین د خان
ګل مست خان لور هم ګل مکۍ او تهانو هم سبق وائي . د دې دواړو غونډکو پېغلو د
ښائست سارې په ټوله علاقه کښې نهٔ وو . موسٰی خان او ګل مکۍ د لته په یو بل
مئینېږي او د ولی خان او تهانو زړونه هم سره یو تر بله اوګنړلې شي . یوه مکاره
بوډۍ په دې خبره د جینکو مور خبر وي او جینکۍ په مدرسه بندوي .

موسٰی خان او ولی خان (سره د ځپلو معشوقو) د جدائی په لمبو سوزي . ولی خان
د پیغامۍ په لاس د تهانو سره خط کتابت شروع کوي . یو خط پکښې د دوړي غریب
شیخ ګوتو له ورځي او هغه ئې ټېغ ګل مست خان ته رسوي . ګل مست خان د ځپلې
بدنامۍ د بدل اخستو په خیال په موسٰی خان او ولی خان دوئي چپاو کوي . په جنګ
کښې د موسٰی خان یو ناسکه ورور وژلې کېږي . په بله ورځ د اطرافو عالمان او مشران
د جوړې جاړې د پاره په جرګه راځي او په دې جوړه کښې د ولی خان او تهانو واده جوړېږي
موسٰی خان هم د ګل مکۍ غوښتنه کوي خو هغه ځپل تربور سهیل خان ته کوژدن
کېږي .

او څهٔ وخت چه د سهیل خان وادهٔ جوړشي نو موسٰی خان او ولی خان هم پکښې

راوغوښتے شي - گل مکئ چه خبر شي نو موسیٰ خان ته د کاغذ په ذریعه د اپیغور ورلیږي چه

هغه هم لا ځان ته پښتون وائی چه د خپلې ښځې په جنج کښے شو یکیږي - د اپیغور د

موسیٰ خان په زګونو کښے پښتنه وینه را اوخوټکوي او د گل مکئ سره عن د دواړه په شپه

د ملاقات بنا ږدي .....

هم په دغه شپه سهیلے[1] دواړو دوړو له په خوره کښے زهر ورکوي - ولي خان په

تکی مړشي خو موسیٰ خان په خټه چل بچ شي - بیا هغه گل مکئ د ځان سره په اس سوره

کړي او د تښتے لاره نیسي - سهیلے او دهغهٔ ملګری ور پسے کیږي - جنګ نښلي - سهیلے د

گل مکئ په توره غوڅ شي او موسیٰ خان او گل مکئ د عمر عمر د پاره یوځائے شي -

" هسے خو دلته هم د قیصے پلاټ ځائے په ځائے د یکے خوری اود

لیکونکي د قابو نه یو خوا بل خوا کیږي کوي نو د دے بنیادي حقیقت

نه مونږ سترګے نه شو اړولے چه دا د یوے اولسي قیصے پلاټ دے."

او په دے کښے هیڅ شک نشته چه د دے قصے د عامو اولسي روایتو نو

په نسبت د ملا نعمت الله په قصه کښے د واقعاتو د امکانی رښتیا والی په حقله ډیر خیال

ساتلے شوے دے - او د هغهٔ کردارونه د ډونو سره تړلے او ژوندي کردار ونه معلومیږي.

**موسیٰ خان**

د ملا نعمت الله موسیٰ خان یو داسے کردار دے چه هغه

د خپلے مینے نه زیات په خپله پښتو او اولسي روایاتو باندے

مئین دے - خو په یوځائے کښے لیکونکي د خپل مرکزي کردار سره ښکاره بے انصافي کړے

ده چرته چه موسیٰ خان محض د خپلو بریځو (ملګرو) په د غے پیغور د خپلے معشوقے نه

لاس واخلي چه دواړه نه پس به هغه تش د ښځے چاکري ته پاتے شي او موسیٰ خان

---

[1] پښتو افسانه تحقیق او تنقید محمد اعظم اعظم ص ۷۲

به پیا هغه موسٰی خان نهٔ وی کوم چه دے۔

پهٔ وادهٔ کښے خانه وی ډیر ډیر غمو سته
له ستا پاتے به شی واړه مجلسونه

نهٔ به تهٔ دوباره کښینے به مجلس
نهٔ به جمع شی په تا تمام اولس

- - -　　　- - -

- - -　　　- - -

زمونږ خانه که خبر په حقیقت شے
له کوژدے نه له وادهٔ به په نفرت شے

دوباره به ستا نه وی هسے لباس
چه بریښنا له ورایه کړی لکه الماس

دوباره به نهٔ وی ستا کلاه نا مداره
نهٔ به جوړه پرے شمله کړے مزیداره

او دغه شان موسٰی خان دچلو چاکرانو په ملسه دګل مکئ دوادهٔ خیال شاته اوغورزوی۔ کیدے شی چه په دے عمل کښے ملانعمت الله دچل کردار په آزاد فکرق اودحس نهٔ ورتیں انانیت یادے اره لری۔ خو دموسٰی خان غوندے دیو مخیزی صاذری او غیرتی پښتون ددے قسم حرکت نه خو د مینے په اصولو څه جوړ شته اونهٔ د پښتو ددوایاتو له اړخه داغه ذرهٔ ته راپورے عمل ګڼړلے شی۔ او هم ددغے حقیقت اظهار چه کله ګل مکئ موسٰی خان ته دسهیل خان سره دوادهٔ په موقع اوکړی

---

له قصه موسٰی خان ګل مکئ نعمت الله ص ۲۶ ـ ۲۷

بر صفحه په چله د موسیٰ خان د پاره یو داسې پېغور جوړشي چه د صفحه سترګې او غوږونه او د صفحه د پښتو تهکی له یوې معنۍ او ګوري.

خلق[له] وائي موسیٰ خان دې مردانه
ماته ښکاري په مثال د د ښاسته

خلق وائي موسیٰ خان دې با اقباله
ماته کم دې د روباه او د شغاله

خلق وائي موسیٰ خان مرد میدان دې
زۀ ګمان کړم چه نامرد د درست جهان دې

خلق وائي موسیٰ خان ځوان د غیرت دې
زۀ دا وایم چه لائق د بې همت دې

ګله تا چه په ما پورې کړو تهمت
بل به څوک دا سې اونۀ کړي تر قیامت

ګله تا چه په ما پورې کړه بدنامه
زۀ د اوویستم له ځله ننګ و نامه

او د دې بیان د تهکو نه د ګل مکۍ د خپل کردار نقشونه په داسې ډول دا برڅېره کېږي چه مونږ ته صفحه د یوې روایتي روماني معشوقې نه زیاته د یوې غیرتي او ننګیالۍ پښتنې پېغلې په څېر او درېږي - د یوې داسې پېغلې په دود د چا د پې لوڅې او بې غوضه سینې نه چه د چا او ننګ او ناموس د یوا لونه را تاو وي - چا چه یو ځل کوم زلمي له په خپل خیال کښې د خښتن مقام ورکړے وي.

---

له قصه موسیٰ خان ګل مکۍ نعمت الله ص ۳۵

د بل تصور هم مغه په ځان باندې حرام ګڼي - او د موسی خان غوښتنه زلمي ته په دې اندازې ګټې د خبرې کولو جرأت هم نه ورکوي داسې پېغله کوله شي چه د مغې کردار هم په خپل ځائې د غر غونډې مضبوط وي .

د ټولې زنانه د ځلې نه چه موسی خان د اقسم له پېغورونه واوري نو د مغه په وړاندې د ننګ او غیرت او پښتنې روایاتو نوي بابونه پرانستې شي - او د دې نه پس هغه د هرې خطرې مقابلې ته تیار شي- ځکه چه اوس د مغه په وړاندې یواځې خپله خوښي او ناخوښي نه وي بلکه د مغه په سترګو کښې د ټولې مجبورې پېغلې ننګ او پښتو هم غوړيږي.

ځوک به وائي کل مکئ وه بد لمنه[1]

موسی خان ئې ځکه اونکړه پښتنه

ځوک به وائي چه به داوه بد روزګاره

موسی خان ځکه له دې شو توبه ګاره

- --

--- ---

ځوک به کړي داسې خبرې په ویلو

موسی خان نه وو د ښځې د سا تللو

او دا آخري خبره خو داسې شي لکه چه د موسی خان د غوړ سره د ګولئ په شان تېره شوې وي .

---

[1] قصه موسی خان ګل مکئ نعمت الله ص ۳۵

"ستڼا په شان پښتون ماکله دے لیدلے
ته په جنګ د خپلے ښځے ئے داغلے"

د ملا نعمت الله په زړهٔ کښے که د خپل کردار د پاره هر څه وی وے دے واقع په غیر شعوری ډول د موسٰی خان په کردار کښے د یو خاص قسم لچک (Flexibility) پیدا کړے دے ۔ هغه یو ښځن وی خو د پښتو او خودئ ښکې احساس د هغهٔ د مینے په جذبه وقتی غلبه بیا موی ۔ خو څهٔ وخت چه ګل مکئ د هغهٔ په وړاندے د یوے معشوقے په ځائے د یوے چنغلے په شکل راشی نو هغه بیا خپل ځائے له راشی او موږ ته دا احساس اوشی چه د موسٰی خان کردار یو هوار (Flat) او جمودی (Still) کردار نه بلکه یو متحرک او (Round) کردار دے کوم چه د وخت او ماحول سره ځان بدلولے هم شی ۔

د سهیل خان کردار په دے قصه کښے د یو ویلن کردار دے ۔ د هغهٔ نه خپل څهٔ اصول شته او نهٔ د خپلو اولسی روایاتو څهٔ پروا لری ۔ سهیلے یو موقع پرست انسان دے چه په هره لاره خپل غرض تر سره کول غواړی ۔

ځکه خو هغه اول د ګل مکئ د حاصلولو د پاره تهوے جاړنے او نا جائزے وسیلے په کار راولی او بیا په چل او فریب موسٰی خان ته ځان نژدے کوی ۔ او په دے هم صرفه نهٔ کوی چه د خپل وادهٔ په موقع را بللو میلمنو (موسٰی خان او ولی خان) ته په خوړه کښے زهر ګډ کړی که د رقابت په جذبه کښے شی و ے بیا هم دا حرکت د پښتنی روایاتو په لمن یو تور داغ دے ۔ او ملا نعمت الله د دے نا خوښی کردار سره د قصے په انجام کښے د یو مره شاعرانه انصاف (Poetic Justice) ۱ نه کار اخستے دے ۔

---

۱ قصه موسٰی خان ګل مکئ ، نعمت الله ص ۳۵

د مرکزي کردارونو نه علاوه د دې قصې دوه ضمني کردارونه پېغامۍ او ډوډۍ غرپ شيخ هم ډېر دلچسپه کردارونه دي. د پېغامۍ او ډوډۍ غرپ شيخ د نامو او کارنامو دا تړون هم يو ې عجيبه او دلچسپې نکتې ته اشاره کوي. د پېغامۍ کار د ولي خان او ګلانو تر منځه پېغامونه رسول وو نو بناغلي ليکوال له دغه رعايته د ښځې نوم پېغامۍ کښېښود او ډوډۍ غرپ شيخ بلا خوراکي وو او څرنګه به ترې هم واده او خيرات سره پاتې کېده نو ځکه ئې نوم هم داشو.

د مثالي کردارونو (Type Characters) دا قسم له مخصوصې تاريخ د نوليسي صدۍ د وروستۍ برخې د اردو په اصلاحي قسم ناولونو افسانو کښې ډېر عام ليدے شي. چه د ښځې د ترلاسه د پښتو په څنو اصلاحي طرز قصو کښې هم د ارواج شروع شو. لکه د ډپټي نذير احمد د ناول مرآة العروس په پښتو ترجمې نقش نګين کښې د مزاجدارے او تميز دارے بي بي کردارونه. يا وروستو په شلمه صدۍ کښې د وسټوجام غونډې په مشهور ډرامه کښې د فساد مير خان، سېټھ قارون او آفت خان وغيره کردارونه او د هغوئ خصلتي قسم نومونه چه د خپلو خپلو نامو په رعايت سړکارونه او عملونه هم کوي.

د ملا نعمت الله په دې قصه کښې د شوخۍ او ظرافت توکي هم د ځنو کردارونو سره په دا سې بې ساخته انداز او حقيقي پيرايه کښې ګنډلي شوي دي چه هغه

"د ډيکوسکي او لوستونکي ډيک او لوست تر منځه فاصلې ډېرے لسږ وي."[1]

---

[1] پښتو افسانه محمد اعظم اعظم، ص ۶۶

د موسٰی خان ګل مکئ په قصّه کښې د صغه بوډئ (کومه چه دده قيصې د مينو په سر چغلي اوري راوړي ) د کردار کره ورهٔ دده بيان منه په څهٔ بنا شسته او خوند ورته پيرا يه کښې برخشيره کينږي ( دغه بوډئ چه اوس د پا کې او سپېځلې مينې په لمن تور وسته لګوی د ځپلې ځوانئ حال داوو )

وئے چرګې د عاشقانو په پرے پنهې
ډیرے نېځې وے دده د لاسه کتهې

چه به دے زلفې شانه کړے پیچ وتاب
محتسب به کړه توبه تر احتساب

موذن چه به نظر کړهٔ په ځان بنګلے
د آذان په ځائے به ذهٔ اووے بدلے

دوډی غرپ شیخ د موسٰی خان ګل مکئ د قیصے یو بل شا ملوی خواهم کردار دے - او مـلا نعمت الله چه دد غه کردار د رسمی پیشندګلو د پاره کوم ساده خو کره تهکی چانړ کړی دی دغه د ډیرے ستائنے وړ دی -

---

له قصّه موسٰی خان ګل مکئ نعمت الله ص ۱۲

دوډی غوړې نو ے دده کلی یو شیخ وو[1]

په واده خیرات به دے هر ځائے کښے پیښ وو

بے دروغو به ئے نه خوزیده ژبه

د راستئ په ځائے به راغله په ده تبه

پیاز مولئ به ئے د چا نه پرېښوے ارتې کښے

زرغونه همسایه لاس رومال په خټې کښے



[1] قصه موسی خان ګل مکئ نعمت الله ص ۲۰

# پښتو افسانه کښې کردارنګاري

## (۱) سید راحت زاخیلې

د پښتو افسانې شوروع چه په کومو حالاتو کښې کېږي ـ نو په دغه دوره کښې د اردو افسانې خپل ابتدائي منزل پوره کړے وو او په برصغیر کښې د افسانې په میدان کښې د ښاغلي پریم چند نوم ډېر چانه زیات بریښېدلو ـ د دغې وخت د افسانې په موضوعاتو کښې په عمومي ډول کلي وال او دیهاتي ماحول زیات بوخت وو ـ او د افسانې مقصد د اولسي اصلاحاتو په توره دخلقو پام او توجه راګرځول وو ـ د دغې دورې د افسانې موضوعات زیات تر د معاشرے د غلطو دودونو دستورونو نه چاپېره ږي ـ او کردارونه ئې هم عموماً د معاشرے ذیلي کوټلي وګړي دي ـ چه هغوئ ډېر قسمه معاشي او معاشرتي جبر او استحصال په پنجه کښې راګیر وي او د دغه ظلم او استحصال درانه پېتي په خپله خوله په سرګرځوي او انجام ئې مکمله تباهي او بربادي وي ـ

د پښتو افسانے امام ښاغلي راحت زاخیلي هم د پښتو اولنۍ افسانه کنړه جینۍ په دغه پس منظر کښې اولیکله ـ د ستائیلي ییکوال په وېناسے نه خو ربه خپل ادب کښې) د افسانے څهٔ پاخهٔ فني او تکنیکي دوایات وو او نهٔ څه واضحه تهاطے لار .... تر دغه وخته که د پښتو ادب په جولئ کښې د نوي دول د قصو څه پنګه وه نو هغه هم د نو لسمې صدئ د آخرنے برخے د اردو ژبے د

نوموړي ناول نګار مولوي نذير احمد د دوو ناولونو توبة النصوح او مراة العروس ترجمې وې.

دد غو ناولونو ځينې اورنګې ه نګې هم دا ولسي اصلاح د تحريک سره زيات علاقه لرله. کسنوه ځينې هم دد غه زنځير يوه کړۍ ده - چه په کال ۱۹۱۷ء[۱] کښې اوليکلې شوه - دد ې افسانې رنګ اصلاحي، ماحول ئې پښتني دے او کردار و نسو نومونه د پښتنو. خو دد ې هر څه باوجود هم دا د خپل وخت د مروجه اردو افسانې د مزاج سره نږدې تړون لري.

په کسوه ځينې کښې مرکزي کردار مرغۍ د پنځلسو کالو په عمر کښې د نهوکالو ماشوم هلک ته واده شوه - او د مرګ سپېرو څپېړو هغه په ځنکتوب کښې کنوه کړه - د خوانۍ سحر په نظر کښې هغه ازلي سپېره وه - او دغه نامه تر هغې ورپورې وه چه مرغۍ يوه ورځ په خپله د هغوۍ د زور زياتۍ په وړاندې توره را اوغورزوله او د درياب خوږو څپو ته ئې ځان اوسپارلو.

د مرغۍ د جامد کردار نه زيات په دې افسانه کښې د ظالمې خوانۍ مرجان کردار ترڅه حده متحرک او ژوندی کردار معلوميږي - او دد غې کردار د پاره چه بنا غلي راحت کومه ژبه استعمال کړې ده هغه د حقيقت او د کردار د فطرت سره ډيره نږدې ښکاري.

---

[۱] پروفيسر افضل رضا د "دراحت افسانې" په سريزه کښې په ص ۳۶ ليکي.

دراحت صاحب دا افسانه په کال ۱۹۱۷ء کښې په افغان اخبار کښې چاپ وه. بيا په ۱۹۳۰ء کښې په افغان کښې چاپ شوه.

"پښتنه جینۍ ګوره اوله خوا ښه نه دا پتوس ګوره چه ژړ ۍ
وے اووهلم ..... دې وغږنه کوتیږه ! ماسره اېږۍ وهي ایله غونډے
دګوتو سوکے ور اورسیدے نو بس بندږه به واۍ چه چا په تورو کړه.
ته چه دا سے دګل غوټې وے نو موږ پلار وراته کوے ځه دپاره."[1]

بناغلی راحت دخپلو افسانوی زیارونو سلسله تر آخره پورے جاری
اوساتله او د آزادۍ نه پس هم د هغه څنے افسانے د پښتو په مختلفو ادبی رسالو
کښے چاپ شوے. پروفیسر افضل رضا په کال ۱۹۷۷ء کښے د راحت افسانےپه خوم
دے نوموړی ادیب او شاعر څنے افسانے په کتابی شکل کښے راغونډے کړے
او د پښتو اکیډیمی پېښور پوهنتون له خوا چاپ شوے.

د بناغلی رضا په خیال.

"د راحت صاحب زیاتے افسانے کرداری دی او دا دے نه د هغه
مراد دا وو چه دخپلے پښتنے معاشرے د مظلومو کردارو تو داستانونه
د پښتو افسانے په شکل کښے پښتنو ته وړاندے کړی."[2]

او د بناغلی افضل رضا تجزیه د دے کردارونو په حقله دا سے ده چه.

د راحت صاحب د افسانو خاص کردارونه ډیر ساده او زړه راښکونکی
دی او دغوی لویه خوبی دا ده چه په روښ تنګدی د رسم ورواج
او د قسمت د مجبورۍ غشی برداشت کوی. کوشش ئے دا وی چه

---

[1] ګنهږه جینۍ قند مردان (افسانه نمبر) ص ۳۲

[2] د راحت افسانے سریزه افضل رضا ص ۳۲

[3] ایضاً

د حالاتو مقابله اوکړی خو بے وسه او مجبور او مظلوم انسان به
ترکومے د زمانے د حادثو او مشکلاتو مقابله کوی ۔ هم دغه وجه
ده چه په اکثرو افسانو کښے دغه هیرو او هیروئن په ډیر ټینګ د مرګ
جام اوڅښی ۔"

د فاضل پروفیسر رضا دغه تجزیه ترډیرے حده پورے خو زړه ته
پریوځی چه د بناغلی راحت د افسانو اکثر کردارونه د واقعاتو او حالاتو چپو
ته داسے ځانونه سپارلی ولاړ وی لکه چه دوئ بے ساه بے ژواکه او بے احساسه
ګټے وی ۔ او چه څوک ئے په کومه اړوی په هغے خه اړغړی .....

خو ترکومے چه په افسانوی ادب کښے د کردارنګارئ د فن تعلق دے ۔ په دغه
توګه د پښتو افسانے د امام بناغلی راحت زاخیلی په افسانو کښے کردارونه خولیدے
شی وے د کردارنګارئ درک پکښے ډیر کم لګی ۔ سیوا د "پټ پټو نے" نومے افسانے
نه کومه چه د بناغلی راحت د عمر د آخری دور افسانه ده ۔

د پټ پټو نے مظلومه جینئ خورشید په حقیقی ډول د خپل عهد د پښتنے
جینئ د ارمانی او غم ځپلی ژوند نقشه وړاندے کوی ۔ په داسے انداز کښے چه هم
پرے د حقیقت ګمان کیږی او هم ورسره د لوستونکو همدردئ پاتے شی ۔ او د
راحت صیب د افسانو د عمومی انجام په خلاف د اکردارونه خو د غم د شدت له کبله
خودکشئ له غاړه ورکوی او نۀ څه انتهائی قدم پورته کوی او څۀ وخت چه
خورشید ته پته اولګی چه قسمت د هغے د مینے په دنیا کښے د بربادئ نه بغیر هیڅ
نۀ دی پرے ایښی ۔ نو په داسے حالاتو کښے د هغے ردعمل ډیر فطری او د افسانے

---

۱ رهبر پېښور ستمبر ۱۹۵۶ ء

ACKU

انجام ډېر حقیقي او اثرناک ښکاري .

" ما هیڅ[1] اونه وې - چې خُله دا روانه شوم - په زړه کې درېدان راغلي وو - پښې مې اړوېړ کېدې - دا وچتې پونډو سړو سینو لونو پوچو ...... چغ چغ کاوه - ما وې دا دې پرېو تم . او دا دې پرېوتم - ما د حمید د میرولو وس کاوه خو ....... .

په دې اختتامي جملو او نیمګړي اختتام کښې که یو خوا د خورشید د بې لوثه معصومې او ګلکې مینې د استقلال او د هغې د ذهني کیفیت لړزونکې نندارې په فنکارانه انداز کښې راکښلې شوې ده نو بل خوا په علامتي رنګ کښې د دې کردار کړه وړه هم په داګه شوې دي - دا وچتو سینو لوعلامت دېوې بې وسه مینې جینۍ دارمانونو هغه ماڼۍ ته ګوته نیسي د کومې چې هډو حقیقت نه وو او د نوو حالاتو په رڼا کښې د دغو اوچتو پونډو په سینو لو کښې رچه هغه ورسره بلده نه وه ) د هغې د قدمونو په تېروېږ کېدو کښې هغه المیه انجام خوري د کوم چې هغې هډو تصور هم نه وو کړې .

خو د دې هر څه باوجود هم هغې د خپلې ښتنې مینې رسټۍ دلاسه اونه غورزوله ما د حمید د میرولو وس کاوه خو ........ او دغه بې جوابه خو د هغې د لوړې ارادې د بې لچه مینې د ګلکوالي او د ژوند سره د ابدي تړون په حقله د ټولو نه لوی جواب دې .

د ستر محقق او ادیب ښاغلي رضا همداني په الفاظو کښې .

د استاد[2] راحت دافسانو رجحان اصلاحي دې . په ټولو

---

[1] قند مردان - افسانه نمبر

ACKU

اصنافو کښې د دوولس دزړهٔ ترجماني ده - استاد راحت د پښتو ژبې راشد الخیری دے -

اودا وینا که د کردار نګارئ د ژورو تکنیکی باریکو له مخه د استاد راحت په اصنافو بانده پوره نهٔ راځي و لے بیا هم دا د ے حقیقت نه انکار نهٔ شي کیدے چه په اصلاحي زیاروښو او د معاشرے د غلطو رویو او دستورونو د غندنے او مخ نیوی په لاره کښې د بنا غلی راحت مقام هم هغه دے کوم چه په معاصر اردو ادب کښې د راشد الخیری مولوی نذیر احمد یا د دغې پائے د نورو اصلاحي لیکوالو کیدے شي -

## د نواب صیب آشنائي - او سربلند خان رئیس بدرشي

په بناغلی راحت ذاخیلی پسے چه د پښتو افسانے د ارتقاء په اولنۍ پوړئ کښې د کومو افسانو لیکونکو افسانے په چاپي شکل کښې مخے ته راغلی دی په هغو کښې په دغه دور کښې د میاں ازادګل (ابوالمعاني) په ادارت کښې د وتونکے میاشتنۍ رسالے افغان مردان برخه د یادولو جوګه ده -

د دغې رسالے په لسو پارینو ژونو کښې چه کوم د شمیر شو افسانے لیکلے شوی دی په هغو کښې یوه افسانه داسے هم شته چه د کردار نګارئ یوه ښائسته نمونه وړاندے کوی -

دا افسانه د نواب صیب آشنائي ده او د لیکونکی نوم ئے دے سربلند خان رئیس بدرشي - د دے مقصدي او کرداري افسانے چاپیدل بیخي لټتني سنهٔ

---

له افغان مردان دسمبر ۱۹۲۶ء

ښکاري او دا سې معلومیږي چه دا اردو د اثر د لاندې ښکلې شوې دے. خو ونے بیا هم د دلچسپۍ او افادیت سره خوا په خوا په دے افسانه کښے د کردار نګارۍ توکے هم ډیر جوت دے.

د دے افسانے مرکزي کردار منشي امیر علي یو غریب سړے وی. او د خوشحالۍ له مخه د نواب صیب سره بلد تیا اوشي او هغه ته ډیر نږدے شي. خوله بده مرغه غریب امیر علي د نواب صیب د دوستانے په سیالۍ کښے الټو غلطو ته لاس واچوی او دغبن په یوه مقدمه کښے راګیر شي. او د دے جرم د سزا نه ښخلس سوه روپۍ منشي امیر علي پرے کوے شي. خو په دغه زمانه کښے د دومره لوئے رقم فوري بندوبست د نواب صیب نه بغیر بل څوک نۀ شي کولے.

نو د ازمینښت په دغه سخته ګړۍ نواب صیب د خپل فطرت مطابق راو د امیر علي د توقع خلاف) د خپل غریب آشنا سره لاس اونۀ کړی. او دغه وخت د امیر علي د امیدونو ماڼۍ سر د لاندے راګوزار شي.

دا قصه د خپل وخت په سمی د مضبوط پلاټ او ربښتینی واقعه نګارۍ نه علاوه د ښځے اوموشرے کردارنګارۍ یوه ډولۍ نمونه ده.

## د قصه خانے ګپ، منشي احمد جان

ذمونږ په افسانه کښے د کردار نګارۍ په لړکښے د منشي احمد جان ربښتینے[1] مینه هم یو تاریخي حیثیت لري. دا افسانه د ستائیلی منشي دلاسه وتے دشمیں

---

[1] د قیصه خوانے ګپ، منشي احمد جان، ص ۳۹

د هغوی دوو افسانو نه یوه ده کومه چه د هغهٔ د نثری آثارو په مجموعه د قصه خانې
گپ کښې په کال ۱۹۳۰ء کښې چاپ شوې دی - په پښتنې سینه کښې چه د سیځلې
کردارنگارئ کوم زیار شوے دے هغه د دغه وخت د پښتو افسانې د خړپوسو د
عمر نه وړ سیوا ښکاری - فاضل بیکوسکي چه د تانړې د ملاکتی) دیو بې تعلیمه
او ساده زلمی شمروز د کردار نقشه په کومو واقعاتي رنگونو کښې راکښلې ده او په
کومه فطری او حقیقی پیرایه کښې چه دا کردار د ژوند د مختلفو وړکي وتو او بدلیدونکو
ماحولونو او د هغې د غوښتنو سره بدلیږي رابدلیږي او په کوم یقیني انداز او فطری
رنگ کښې هغه د ژوند د سیلاب د چپو سره لامبو ته ځان جوړوي هغه د فنکار
د سمندري فن د ژوروالي په صداقت گواهي کوي -

د حیرانتیا خبره ده چه نوموړي منشي د پښتو افسانې د ماشوم توب په
ورځو کښې د هغې مثالي کردارنگارئ خلاف بغاوت کړے دے چه د دغه دور د اردو
غوندې بالغه افسانه ترې لا خلاصه شوې نهٔ وه - د هوارو (Flat) او
اوبړه (Spot) قسم کردارونو په دغه غوبل کښې د شمروز غوندې ځلکندار
حقیقت پسند او ترقی پسند کردار د غوښته واقعي چه د منشي احمد جان د روښانه
فکر او رسیدلی فن ثبوت دے . شمروز یو داسې زلمے وي چه د غربت د لاسه
د خپل میړن زړهٔ په غوښتنو او ارمانونو باندې پښنه کیږدي. د ژوند
حقیقتونو ته ځان اوسپاری او د معاش لپاره تلاش ورباندې کړي - او بیا د دے
کردار نه تاؤ راتاؤ ټول واقعات په یوه نفسیاتي فضا ، منطقي تنظیم او فني
ترتیب کښې څه په وړاندې روان وي او د عروج نقطې ته چه اورسي نو په یوه
مؤثره نتیجه باندې د قصې خاتمه اوشي .

ACKU

دشمروز کردار د پښتو افسانو یو غیر معمولی کردار دے ۔ او ر پښتنې مینه[له] یوه دېښتنې افسانه هم دواقعاتو په توګه او هم دفن په ېتېره ۔ دا په ښتیا د پښتو افسانې دېکونکو دقافلې دپاره دجوس غږ وو ۔

دشمروز دکردار سره ترلې مسلاتړ کردارونه دمغه معشوقه ګل غوټۍ او مکاره بو ډۍ الیپوابۍ هم په خپل خپل ځائے ډیر دښتوني او دلچسپ کردارونه ښکاري خو دشمروز دسادګۍ او یو مخیزې فطرت په وړاندے دمغوئ شوخ دنګونه او بربنسيد ونکی نقشونه بيخي تت شي ۔

دا اولنۍ دوره دپښتو افسانې دپاره خصوصًا او دپښتو ادب دپاره عمومًا دنوی ژوند منځ ته کیدو دوره ګڼلے شی ۔ دشلمې صدۍ په وړومبۍ ځلو دمه برخه کښې دعلم ، سائنس ، صنعت او معاشرتي ژوند ژواک لسنوره دا چه په انساني ژوند کښې له هرے غاړے څه داسے په تېزۍ او بې مخ تبدیلۍ راوستے ۔ چه انساني فکر په یو ځائے او یو طرز دولاړے پوګه پاتے نه شو ۔ دتهذیبونو په وړاندو او جوړیدو کښې څه داسے العاق تلغاؤ او اړے ګړے راغے چه ددے زمانے په توے ذهره هغو داګمان نه شو کیدے چه دا هغه څو کاله مخکښنۍ زمانه وه ۔

او دبرصغیر شا ته پاتے اولس خو دترقۍ په دے زغل کښې په یو لوئے ذهنی انتشار کښې مبتلا شوے وو ۔ سائنسی ترقۍ که یو خوا هغه له دژوند د دوام او پوخوالي په حقله داوګیرنه وړکوله نو بلے غاړے ته هغه دومره دځلے بے وسۍ او بے حسۍ احساس هم ورکولو ۔ ولے چه په دغه ترقۍ کښې دهغه ځانی هیڅ لاس نه وو ۔ او زیاتی پړ ے لا دا چه دغه ترقۍ دهغه دزیلی کوټلی ژوند دکلونو

---

له پښتو افسانه محمد اعظم اعظم ص ۱۰۹

شمیں نورهم زیاتولو - هغه یو صیدوچه سائنس د سامراجی طاقت ښے نور هم مضبوط کړے او د غلامئ تیزندئ دهغه په غاړه کښے نورهم تاو اوخوړلو ..... او ددغے هر څه په رد عمل کښے د ناویشنی هند دګوټ ګوټ نه مختلفو سیاسی تحریکونو دانګریز سامراج اوپیسنکوالی خلاف سرونه راوښکل -

" دآزادئ په دے جنګ کښے پښتونخوا دهرچانه وړاندے وه او په دے سیاسی غوبل کښے که یوخوا تورے وپړقیدے نو بل خوا قلمونه هم اوجنګیدل - او په دے جنګ کښے د پښتو نوی ادب غزونے اوکړے ."[1]

دآزادی ددے تحریکونو انګازے د پښتو دنوی ادب په هره څانګه کښے محسوس شوے - او په دے لړ کښے په اول ځل د پښتو ځنے ادبی او سیاسی مجلے هم راوړاندے شوے - د پښتون - انګار - سیلاب غوندے رسالو اجراء د پښتو ژبے او ادب د ودونے اوپالنے دپاره یو بے بها زیرے وو - او په تیره تیره "پښتون" خو د خپلے سیاسی مقاصدو سره سره دادب دخدمت فریضه هم په باقاعدګئ سره ترسره کړه - دکال ۱۹۳۰ء او ۱۹۴۰ء د ترمنځه په پښتون کښے وخت په وخت افسانوی ادب کښے هم قیمتی زیاروته اړشول -

د پښتون ددوی په افسانه لیکونکو کښے د نورو نه علاوه د ماسټر عبدالکریم عبدالخالق خلیق او د عبدالکریم مظلوم نومونه دیادولو جوګه دی -

خو په باقاعده دول چه پښتون د پښتوافسانے د څنړے دسنګار دپاره کومه نامه دیناته وړاندے کړه هغه ایکی یواځے د ماسټر عبدالکریم نامه کیدے شی - بناغلی ماسټر دعالمی ادب دافسانے د مطالعے په رڼا کښے ځنے داسے افسانوی

---

[1] پښتو افسانه ، محمد اعظم اعظم ص ۱۰۲

زیاروته اوکړل چه دهغې افادیت د پښتو ادب دپاره منلی شوے دے .

# ماسټر عبدالکریم او خُولئ ګلونه

په بناغلی راحت زاخیلی پسے چه د پښتو افسانے دارتقاء په لار د تلونکو نه اول کوم لوئ نوم راځی نو هغه ماسټر عبدالکریم دے . په پښتو ادب کښے چه بناغلی راحت دکوم نوی صنف رده کیښوده په هغې باندے دهغهٔ او په هغه پسے درا تلونکی وخت د پښتو دنوے تعلیم یافته ډلے لیکونکو په خپل خپل انداز کښے د نوؤ تکنیکی اصولو په رڼا کښے ډیک ته ګوتے واچولے . او ماسټر عبدالکریم په دغو کسانو کښے اولنے لیکونکے دے چا چه د پښتو افسانے د مملکت ته یوه شعوری او انقلابی کوښښ راتاؤ کړه . دخدائی خدمتګار تحریک په نوموړی اخبار "پښتون" کښے د ماسټر کریم فکاهی کالم " ننئ دنیا " که یو خوا په پښتون صحافت کښے دیو نوی طرز ابتدا اوکړه نو بل خوا د پښتو افسانے د خړوسو په دغه دوره کښے د ماسټر کریم افسانوی زیاروتو هم خپل تاریخی کردار تر سره کړو .

په اولسی، معاشی او سیاسی ډګر د ماسټر عبدالکریم د پښتو افسانے دپاره نوی نوی انقلابی موضوعات غوره کړل او د ۱۹۳۰ء خواؤشا ئے پښتو افسانے ته هغه ترقی پسنده لهجه ورا وبخښله چه لا د اردو افسانے دنیا ترے هم پوره خبر نهٔ وه . خُولئ ګلونه د ماسټر صیب دهغو افسانو (او تکلونو) مجموعه ده چه د کال ۱۹۳۰ء او ۱۹۵۶ء تر مینځ مانه لیکلی شوی دی . د خُولئ ګلونو په ټولو افسانو کښے هغه موضوعات چیړلے شوی دی . دکوم چه د حقیقی اوروان ژوند سره بے دخهٔ واسطے نه تړون دے . او ددے افسانو کلهم کردارونه هغه خلق دی کوم چه

د پښتو نخوا لاړ، وکوښو زين ولې اولوئے کړی دی - څوک چه د بنا غلی ماستر د ژور نظر د مشاهدے نه وتی او دهغهٔ د تخليقی فکر د تجربو په دومه کښے راګير شوی دی د خپلو کردارونو او موضوعاتو په تشريح او تفصيل کښے د ماسټر صيب مشاهده دومره ژوره او دهغه بيان داسے پيچلے او ساموښکاری چه په شعری واقعيت باندے د تاريخی ريښتنګلئ باور کيږی -

د ماسټر عبدالکريم پيچلے اومهين نثر په پښتو ادب کښے تر اوسه پوره انفرادی او شالی څنه او درجه لری - ستر شاعر او اديب ښاغلی اجمل خټک د ماسټر کريم فن ته په دے رنګ د پيرزوينے ګلونه وراندے کړی دی -

" چهٔ دورايه ورته ګورے نو تهٔ به وائے چا د پښتو ژبے بنا ئست په ګوته راټول کړے دے او دفن په چوکاټ کښے ئے ترينه داداب د ښکلا نمونے سازے کړے -

دا چه په وروسی نظرئے اولوئے نو وائے به چه سوچه پښتو خوږ محاوره او روان ترکيبونه چا د تخيل په رنګينه مزو کښے داسے په حسن پيسلی دی لکه د پيغلے ښاپيسئ په اوږدو ريښمينو سنړو کښے چا په مکين مکين د رابيل چاسيل ګلونه ټو مبلی دی -

دا چه په لوستوئے شروع شے نو داسے به خوند درکوی لکه د رنګے ورے دنګے شوے په او چته څانګه کښے چا د ريښمو د پستو لړو تهال اچولے وی او تا ته ورے د سحر پستے ورنے په خوند خوند چوتے درکوی - ولے چه په زړه ورته اوګورے نو د ژبے دحسن او دفن د رنګينو لاندے به درته د خپل غريب او بے وزله قام ژوبل تن ے او زخمی زړهٔ داسے په وينو ککړ ښکاری لکه د ګلاب د خندا

---

له څولئ ګلونه مقدمه ماسټر عبدالکريم ص ۱۲ - ۱۳

لاندے دمغهٔ ځیرے ځیرے په وینو کښے ډوب ذړګے ۔ماسټرصیب دےته افسانے واقعٔ وے حقیقت دادے چه دا دپښتون د زړهٔ چاودی ډوندا او دماسټر صیب دډوبل احساس نه جوړشوی دوخت د حقیقتونو هغه ډوندی تصویرونه دی چه کوم پښتون ټےګوری نو واقعٔ چه زهٔ یم اوزما ماحول دے۔"

دبناغلی خټک داوینا په ډیر موثر انداز کښے دستاشیلی ماسټر دلوی سرای اولوی مقامی یک ادبی اوفنی مقام تهاکی ۔اوپه دے کښے هیڅ شک نشته چه د هشنغر دسیمے دا ساهو بیکوال دپښتوژبے د نثر په تاریخ کښے د یو جدا اومنفرد اسلوب څښتن دے ۔ددے نه هم انکار نهٔ شی کیدے چه ماسټر صیب دحقیقی ژوند په هغو پیښو اوکشالو باندے افسانے تړلے دی کومے چه دهغه وخت (اوددے وخت) داولس ذپلو طبقو ته عموماً اودکلی والے پښتنی معاشرے غریبے او لاندے طبقے ته خصوصاً ورپیښے وے .-اود یو ساهو اولسی سیاسی مجاهدپه ځیر چه ۓ په ځنل چاپیرچل اوخواوُشا کښے کومے ترخے تجربے په ځان تیرے شوے او لیدلے دی دهغو ټولو رووداد ئے په ځپلو قصو کښے راخوندی کړے دے۔

دهغهٔ دیک یوه کوښه هم داسے نشته چه هغه موږ په آسانه د مقصدی ادب دګرښتۍ نه بهرکولے شو - اوددے پس منظر ته په ځپله نوموړی ماسټر دځولۍ ګلونه په پیش لفظ کښے اشاره کړے ده ۔

" زهٔ هم استاد پاتے شوے یم اوهم سیاسی کارکن یم - نو په ځان م دیو اولسی سړی بدګمانی شان شوے ده ۔ او په دغه سبب ما په ډیره قصه کښے دقام اوداولس غم ژړلے دے ۔ په معاشره کښے چه نن صباکوم ګړبړ دے۔

---

لے ځولۍ ګلونه ماسټر عبدالکریم، ص ۱۹

په خپل خيال هم هغه پښتنو ته وړاندې کړې دي او رنځ ې سره د داړو ښودلې دي .

په دې کښې هيڅ شک نشته چه ماسټر عبدالکريم پښتو افسانه ليکونکو ته هغه منزل په ګوته کړې دې . کوم چه د ادب او ژوند رشتې د يو بل سره کلکې تړي او څه ته چه په ادبي اصطلاح کښې آزادي او مقصدي ادب ويلې شي .

بناغلی ماسټر د خپل فن په حقله بحث کښې د ګوليڅ ګلونه په پېش لفظ کښې وائي چه .

" زه رنګ شوے هم د ټالسټائي او منشي پريم چند په رنګ کښې يم . "

د بناغلي ماسټر دا دعوی تر دے حده خو ځائے نيسي چه د کلي وال ژوند په عکاسئ د خپل چاپېرچل د پېښو او مسئلو سره د نژدے تړون او د طبقاتي کشالو معاشي لړ يو او سياسي ناهوارو په خلاف جنګ کښې نو د هغوئ سره او ږد په اوږه جنګيدلے دے . ولے له بده مرغه د مقصدي ادب په تکل کښې کله کله په افسانه کښې د افسانويت د تکنيکي پولے نه ښوئيدلے هم دے .

په عموي دول د ماسټر عبدالکريم خان افسانے په پښتو ادب کښې د خپلو موضوعاتو د معنويت او نوي والي له رويه د خپل وخت په اندازه د ډيرے اوچتے پايۓ افسانے دي . د دے اضافو کردارونه د روان ژوند نه اخستې شوي ژوندي کردارونه دي او ماسټر صاحب د دغو کردارونو په عکاسئ او سيرت نګاری کښې ډير کم تيښ وتے دے . ځکه چه د دغه واړه کردارونه د هغه د کور کوڅے خلق نه بلکه ښځي د کور بنديان ښکاری .

" د ګوليڅ ګلونه " اکثرے افسانے د ماحول او تاثر افسانے دي خو په کسومو

افسانو کښې چه ماسټر له د کردارنګارئ موقع په لاس ورغلې ده ـ دغه کردارونه د خپلو انفرادي خصوصياتو او اجتماعي اثر له کبله لافاني کردارونه دي.

ډيټيم اختر ـ بېکار ـ بې بې بله څوک ـ بېکواله مړشو ـ اوړېدونکې باچائي ـ د تأثر او پلاټ له رويه داوچتې پايې معياري افسانې دي.

خو[1] د کردارنګارئ په توګه دوه خدائي خدمتګار او سور د ړيوټو دے دياد ولو جوګه قصې دي.

دوه خدائي خدمتګار په طنزيه انداز کښې يوه ډېره ښکلې او مقصدي افسانه ده چه په اول ځل په کال ۱۹۳۹ء کښې په پښتون اخبار کښې چاپ شوې وه ـ دا افسانه د ننه د پنځوسو شپېتو کالو وړاندې پښتني معاشرے د يو دوو پېښ روبو عمرخوړلو پښتنو د پخې يارانې قصّه وړاندے کوي ـ دا هغه زمانه وه چه د کلي يو سړ نه واخله تر د بله سره پورے به ز لمو ملکانو تر نيمے شپے پورے د شاخيلي کاکا په بېټ ناسته کوله ـ

" دلته[2] به يارانې جوړېدے او وړانېدے ـ دلته به د مرګونو صلاح ګانې

---

[1] د افسانو داويش د هغه تعريف له رويه دے کوم چه بناغلي هډسن دلنډے قصې د دريو قسمونو يعنې پلاټي، تأثراتي او کرداري افسانو په حقله د بناغلي سټيونسن په حواله کړے دے ـ دويم چاپ ص ۳۴۲

1 AN INTRODUCTION TO THE STUDY OF LITERATURE
*William Henry Hudson*

[2] سُولئ ګلونه ـ ماسټر عبدالکريم ص ۷۶

هم کېدے او چه چرته به مجلسیان (سندرغاړی) چا په بناد وکښے را اوبلل نو د
تماشے دپاره به د کلی زلمی هم په دے پسے غونډیدل - او ددے ځائے نه به په کمه د
ګډا ځائے ته تلل ."

دا دواړه یاران حسنالی او نورالی دا تماښو کلی اوسیدونکی او دلسو شلو
جریبو مځکے مالکان پښتانهٔ وو - د زلمو زامنو څښتن ئے هم لرلے او په غله دانه
ئے هم کور پوره وو او نغدیت هم ورسره دومره وو چه په بنهٔ بده کښے د دواړو
پکاریدے شو - حسنالی د خویه لږ تریخ خو یو توکلی او بولهوالی غوندے سړے
وو او نورالی یو ساده یاده مونځ ګذاره بنده وو - ددے دواړو یارانه د مکوانئی
نه راروانه وه او چه بدیرے ئے پیښے شوے نو هم ئے د دوستئی جوش همغه شان
وو لکه چه په ځوانئی کښے .

یوه ورځ دواړه یاران د حج کولو په اراده پیښور نه پیاده روان شول
چه کوجرو ته اورسیدل نو حسنالی کاکا یو کور ته د اوبو څښلو په غرض ستون شو
خو ملته ورته معلومه شوه چه د کور ټول خلق د نهرے ورځے نه بے هوشه نسکور
پراتهٔ دی - او حسنالی سره چه د حج د پاره کومه پنګه وه همغه ټوله ئے همغوئی ته
اوسپارله - په دغه اوان کښے نورالی د همغه نه خطا شو - دوئی دواړه یو بل
اونهٔ وینی او نورالی په زړهٔ کښے ټکه اوخوری چه حسنالی راسره دوکه اوکړه
او رانه لاړ پټ شو - هم په دغه سودا کښے ډوب نورالی حج له روان شی - خو
بودا نورالی چه انګوټ ته اوخیژی او څه ورځے پس یللم ته اورسی او احرام
تړی نو له ورایه ئے د حسنالی آواز تر غوږ وشی - اَللّٰهُمَّ لبیک لَاشَرِیْكَ
لكَ لَبَّیْكَ - خو چه نورالی په دے آواز پسے هسه کوی نو حسنالی بیا غائب شوے
وی - بیا د طواف کولو په موقع هم په پرګنو خلقو کښے نورالی حسنالی وینی

ACKU

چه حجراسود بشکلوی دغه وخت خو نورالی صفا په ذړهٔ اوخوړه چه حسنالی ترے قصداً ځان پټ کړے دے۔

دغه شان نورالی کاکا دحج فریضه اداکړی - خو په واپسئ کښے دبے پته یار دغم یو لوئے پیټے په ذړهٔ دپاسه راوړی - خو دپېښور سټیشن ته چه را اورسی نو څه گوری چه حسنالی ورله په خیره راغلے دے۔

ددے واقعے اشاره هغے حج اکبر ته ده کوم چه دخدائے دبندیانو سره په بنیگړه اودهغوئ په مینه اوخدمت کښے حاصلیږی - اود واقعے د شاعرانه صداقت یا دهغے دمنلو اونه منلو په حقله چه دڅا هرڅهٔ نظریه وی - وے ددے قصّے ددواړو کردارونو په چلو کښے درښتینے بیځُلے مینے داخلاص او سادگئ نه ډکے جذبے اودانسانیت دپاکے رشتے دعزت او احترام په حقله چه افسانه لیکونکی کوم زیارکاږلے دے هغه دستائنے وړ دے۔

دنورالی اوحسنالی په کردارونو کښے زمونږ دنن دے ماضی دسادهٔ بادهٔ اولسی معاشرے دهغو درنو اوعظیمو روایاتو بریښنا ښکاری په کومو چه اوس هم مونږ ویاړ کوؤ - په تیره تیره دحسنالی کردار خو ددے زمانے د هغو شته منو او مړو خلقو دپاره دیو ماډل (نمونے) په دود وړاندے کیدے شی څوک چه محض په روایتی توگه یا د فیشن او نمائش په غرض حجونه خو کوی وے په کورگونړو کښے ئے چه بے شمیره نهر او بربنړ گرځی نو په هغوئ ئے هړو خوانهٔ کرېږی - داسے ښکاری لکه چه دحسنالی دکردار په شا په چنله دماسټر کریم شخصیت ولاړ وی - او داولسی اوسماجی ژوند په حقله چه دښاغلی ماسټر کومه ذاتی نظریه او فلسفه ده هغه

عموماً دځپلو کردارونو له وینا او عمل ځنې څرګند وي .

ُسور دپرېوتو دے' یوه طویله استعاره ده په دے افسانه کښے د ماسټر جینئس ( Genius ) په څهٔ داسے لا فاني رنګونو کښے بریښي - چه د پښتو ادب په کلهمه تصمي پنګه کښے به ئے ډیر کم مثال موندے شي .

هسے خو دا افسانه هم دماسټر په مخصوصه سیاسي نظریه بانده اړه لري خو په حقیقت کښے دا زمونږ په ټول سیاسي ، معاشرتي او اولسي تاریخ بانده یو داسے طنز دے چه دهر دور دحساسه او باشعوره انسان پام لځانته راګرځوي - او دتوقلي کردار دے افسانے ته دآفاقیت او دوامیت رنګ ورکړے دے . دا افسانه افسانه کمه او شاعري زیاته ده - او ددے شاعري له وجوده چه کوم اثر زړونو لے دے هغه دحقیقت نه زیات تریخ او دشعر نه زیات بښائسته ښکاري - توقلي هغه بے وسلے بے وسیلے جرنیل دےکوم چه په ځپلو سرو جامو دننه دغیرت په وینو سُور زړګی بانده غاوره دقامیت او وطنیت په مینه مست سرے سترګے ګرځي - دقام او وطن دمیو دنشے په خمار کښے دهغهٔ هستي چورې چورې شي خو دغه خمار په ځپله دماتید وځیږ نهٔ دے .

دتوقلي جرنیل نه ځپله ځځه اوبچي او دمغوي نهره اوبے اسرے ورځ هیره وي - خوشحال خان او ایمان ئے دآزادئ دجنګ په لاره کښے ایښے وي - او د ماسټر صیب په ټکو کښے .

" د ۱۹۳۰ء[له] نه په دا ایسته یوه جلسه داسے نهٔ وه شوے . نهٔ

---

[له] ځولئ ګلونه - ماسټر عبدالکریم ص ۱۰۷

چرته یوجلوس دا سې وتې وو چه ګنی توقلی جرنیل د پېکنې نهٔ وي ـ که دجرنیل صاحب د سپاهیانو د سورلئ سرشته به اوشوه ـ نو دې به هم سورشو ـ تانګه خولو ته شي دې ربړه به ئې هم نهٔ کوله ـ خو یره چه جلسې له په وخت رسیدې شو. اوچه لارئ موټرې به ئې موسندهٔ کړل ـ ـ ـ ـ ـ ـ نو په ښځې ورځ به چه هر څوک د جرنیل صاحب مخې له ورغې نو مرګ به ئې توئې وو ـ په داسې ورځ به توقلی خامخا په پښت دب نیم هم چلولو ـ"

نو د آزادئ دجنګ ددې بې غرضه مجاهد اوبې داره سپاهي د بې لوثه جذبې شان داووچه ......

"ددوئ ددې وزارت به جوړ شو نو سنهٔ پکښتانو او د نغری دغاړې چلو به پکښې په سوونو ټوپکے تماچې ترلاسه کړے اودتیلو اوترو په ګهته به ئې خلے پنګے پوره کړے حٔو د توقلی غریب خانی اوجرنیلی به پکښې تشه داوه چه آوازیه ئې لږ نور هم اوچت شو او په لهجه کښې به ئې لږ نورهم زور پیدا شو هلکه ! ستا بردی (وردی) بنه نهٔ ده ـ ته خانه چتک نهٔ ځې ـ اوګوره ځوانه ته په پښت ته پوهیږې ـ"

اوچه ددهٔ د دې وزارت به مات شو نو وهل شرمول به ددهٔ په برخه وو او دجیل دروازې به دتولو نه اول هم دهٔ ته پرانستے

---

۱. خولئ ګلونه، ماسټر عبدالکریم ص ۱۰۷

وێلو - په کلی کښے به د توقـلی د ښځو د حاله یو خداځے خبر وو او په جیل دننه به د توقـلی په مشقت دلاسو پښو نه خورونه لاړل خوچه بیا به جنګ سوړ شو او روغه به اوشوه نو -

" خلق به د جیل د دروازے نه نیغ د وزارت کرسئ له اورسیده - چا له به موټر د جیل څخے له راغے څوک به په لارئ کښے کښیناست کورته به اورسیدو - د ګلونو د زوره به تلے نهٔ شو او چه کورته به نزدے شو نو د ډول سرنا سره به ئے زنده باد اووېلے شو - خو توقلی جرنیل به پیاده کلی ته د هر قسمه درناوی او هر کلی نه بے پروا رااورسیدو - او هلته به ئے د اوږدو تږو ،ښځو ژړا فریاد زنده باد اووے او په زړو چیرو کښے دده په پټ کښے ناستے د خورلنړے داونکو څاڅکی به ئے د غاړے هار شو ."

دِتوقلی د کودار په حواله ماسټر صیب د خپلے مخصوصے سیاسی نظریئے نه په پرته په صفه معاشی او طبقاتی نظام باندے طنز کړے دے د کوم له خوا چه دیو مقصد او مرام په جنګ کښے انتهتی خلق هم په بنیادی ډول د ژوند په بدلو پیمانو باندے تلے شی - دشته اونشت معیارونه دیوے پړے د بنیادمو دپاره هم جُدا جُدا تهاکلے شوی وی .......
خو ددے هرڅه باوجود هم دتوقـلی کودار یو روان او متحرک کودار دے .
سیاست دصفه دپاره د مادی او انفرادی سود او بسیګړے سودا نهٔ ده -

---

ے حُولئ ګلونه ، ماسټر عبدالکریم ص ۱۰۷

سیاست هغهٔ دیو مقدس جنګ په دود خپل کړے وی او دمعاش دکشالے حیثیت په ذاتی توګه د هغه دپاره ثانوی حیثیت لری ۔ او دمعاش دکشالے دحل کولو په غرض چه توقلی خومات ګډ لوښی راټول کړل او چایو دوکان ټے اوکړو نو زوئے ئے دکلی دخان سره د غزوئی په غلا کښے اونیوے شو او د هغې نه هم بے غمه شو۔

خو داقسم حادثے د توقلی په جرنیلی حوصله کښے هیڅ فرق نهٔ شی راوستے هغه تر آخره دخته په خپله پښتوځئے ګروړئ او خپل ترتوب باندے غاوره وی او دغزوی دغه لشه تر آخره دمه بېره ولاړه وی۔ توقلی ن وو ۔۔۔۔۔۔۔۔

"اوتر سرے دمړچا خوښ وی حوصله چه هغه خوار
وی ۔ روزی مخکښے اودے وړپے او چه لږ بوټه شی نو بیا
خو ټوک ډوډئ هم د غریب په لاس کښے دخلقو بدی شی ۔"[1]

خو دنهر نهوړ توقلی ملک چه آزاد شو نو بیا هم پکښے د هغه دچو خوارهٔ ورځ بدله نهٔ شوه ۔۔۔۔ دتوقلی مخالف دآزاد وطن واکداران شو او هغه کسان چه شل کاله ئے د جرنیل صاحب دی دچاپیتے سر راکښلے وو هغوئ هم پکښے لکه دسعر دبانګ نوے ټپه وا واخسته ۔ نو توقلی جرنیل بیا هم دوخت دآباسین په وړاند ے سینه ډال کړے ولاړ وو ۔ خو دا بوډا جرنیل د "اووهٔ ځلو سینتم دآباسین چپو داسے په مخه واخست چه تر ځلوړنحوسم ئے دمړ ژوندی پته اونهٔ لګیده ۔"

---

[1] له ځولئ ګلونه ماسټر عبدالکریم ص ۱۰۹

اوچه د وخت د آباسين غورزنګونه تم شول نو توقلي ئے په چپلو ګنګرو کښے غاړے ته را اووېشت خو روس چه دے د لادو بادو پريوتے جرنيل د اباسين د غاړے نه د چپل وطن ننداره اوکړه نو دنيا بدله وه . د خلقو د سوچونو سره د هغوئ ذهنونو هم اړخ بدل کړے وو د هغهٔ د پړے ډير نامتو جرنيلان د رقيب سره په ځنګ کښے ناست وو .

د ژوند د انوے نقشه که هر څومره بدله وه . خو د لادو بادو پريوتے دا بوډا جرنيل د سود او زيان د اند ازے نه بے خبره اوس هم د ژوند د خوشکلئ لارے په سر ولاړ دے سوچ اوړے دے .

" چه[1] يار به خاهخا په چپلو بدو يوه ورځ پښيمانه کيږي
دا لاس به اروموماتيږي او هم دے غاړے له به راځي ځکه چه
سود د پريوتو دے ."

حقيقت دا دے چه د توقلي کردار زمونږ د مقصدي افسانے په لړ کښے يودا سے لاثاني او اثرناک کردار دے چه زمونږ په افسانوي ادب کښے به تل تر تله ژوندے وی .

---

[1] خوګلئ ګلونه ، ماسټر عبدالکريم ص ۱۱۳

# نادرخان بزمي

## "پلوشې"

---

د پښتو افسانې په دغه عبوري دور کښې نادرخان بزمي هم دروان ژوند په مختلفو موضوعاتو باندې څُنې معياري افسانې ليکلي دي . په دې افسانو کښې کرداري افسانې هم شته . خو د دغې افسانو کردارونه د پلاټ د څُنو خاموله و جې د فن په آيئنه کښې نيمګړې ليدې شي . د بزمي د افسانو مجموعې "پلوشې" په حقله د ښاغلي اجمل خټک د پيش لفظ دا ټوټه د لوستو وړ او د توجه قابله ده .

"د دې افسانو په حقله د بزمي صاحب داوينا ډېره خوښه ده چه زهٔ دا دعوىٰ نهٔ کوم چه دا څهٔ معياري څيز دے ولې دومره په فخر سره وئيلے شم چه څومره دي نو په ساده او نوي رنګ کښې دي . د بې وسئ دنيا ده . د بې وسانو په درد لړلے کړيکے دي . يو څو تړے ترے اوښکے دي . ساړهٔ ساړهٔ اسويلي دي . کيدے شي چه څوک ورته د قدر په سترګه

---

لے پلوشې ، نادرخان بزمي ، يو څو خبرے (ص ۵۴ - ۱۰۷)

اوګوري اوګيدے شي چه په چا اثر اوکړي ."

او دا دښتيا ده چه دپلو شے افسانے دخپلو موضوعاتو مقصديت اود بيان دښائسته پيغلے ژبے له خوا د قدرورے افسانے دی . خصوصاً په "عارفه" "مغرور" "مهرباني" او "موږ قاتل" نوے افسانو کښے دکردارنګارۍ کوشش هم شوے دے . خو په دے غونډه مجموعه کښے مهرباني ، يو معياري اوکامياب ادبي زيارده . مهرباني دترقي پسندو د حقيقت نګارۍ او بےبيباکۍ يو ه ښائسته نمونه ده . دلته دکردارنګارۍ سره دمشاهدے دژورتيا ، د نظر د تيزۍ اوداقسانے د رموز اواشارے دفن نزاکت هم ځان ښيئلے دے .

خان د پوخ عمرنوکر دراني ته دصغهٔ دخدماتو په بدل کښے دښاپرسو کالو يوه تنکۍ ښائسته پيغله شيربانو واده کړی . وے ددغے مهربانۍ په تل کښے چه کوم راز پټ دے هغه بزی دعروج دنقطے (climax)پورے پټ ساتی . اولوستونکی ته دافسانے په خاتمه په ځله ښرګنده شيچه دخان مهربانۍ دصغه د نوکر دراني په بربنه بدن زروکے واچوی خو په دے عمل کښے ئے ځنل دعزت ګريوان ريښے ريښے شي .

په شيربانو او ر دصغ دعنه) په دوراني باندے دخان دمهربانو پيټے دومره درود ند شي چه دصغوۍ په غربت اوناداری کښے ئے داوچتولو توان سنهٔ وی . ددغے احسانونو دبوج داوچتولو دپاره دخپلے حيا او عزت د قربانۍ ضرورت وی . . . . اودغه قرباني د دوراني غوښتے د حالاتو په ژرنده کښے ددل شوو کسانو دفطرت برخه شي .

"د خان[1] مهربانئ ډېرې او د دورانۍ خوشحالئ وې. د دورانۍ د زړهٔ د غل ګټ نه به که چرې څه اشاره اوهم شوه نو د دیدار کاکا هغې نصیحت به ورباندې د دلاسې پتهٔ کېنبودې اوبله داچه د خان مهربانو ته تې هم مخ نهٔ شوېنولې. ځکه چه خان د مخلوېښتو کالو دورانۍ ته د شپاړسو کالو جینئ وادهٔ کړې وه."

[1] پلوشې، نادرخان نزهی ص ۵۷

# د پښتو افسانې شعوري دور

د وطن د آزادۍ نه پس چه د اولسي ژوند په ټوله تنه بوده کښې تبديلۍ راغلې او د نوؤ ارادو او ولولو سره د قامي ژوند سر دوباره بناء او شوه - او په دې دور کښې د زړو مسئلو سره بې شميره نوؤ اولسي مسئلو هم سر را اوکښلو - د ځنو کاميابو سره ځنې محرومۍ هم را مخکښې شوې - او د دې هر څه په ردِ عمل کښې د فکر ساڅې او د سوچ زاويې هم بدلې شوې -

د ادب په ميدان کښې هم د نوؤ حالاتو په عوبل او نوؤ مسئلو په ېرغل کښې ديدلو زاويو نه سوچونه شورو شول - خو د سياسي ، معاشي او معاشرتي حالاتو په دغه الغاؤ تـلغاؤ کښې ادبي تحريکونه په يو منظم او شعوري شکل کښې راوړانه شول -

د افسانې په ميدان کښې هم کال ۱۹۳۷ء د هغې بريد کار ورکوي د کوم نه پس چه زمونږ د افسانې يو باقاعده او شعوري دور شورو کيږي.

د آزادۍ نه پس په وړومبو لسو دولسو کالو کښې د زړو ليکوالو سره خوا په خوا د پښتو افسانې بې شميره داسې نوي ليکونکي هم مخې له را غلل چه هغوئ د افسانوي ادب پنګې ته د قدر وړ پيرزوينې اوکړې او -

"د دغې افسانه ليکونکو دګوتو نه وتې درځنو ســه
افسانې داسې هم شته چه دعالمي ادب په نمن کښې ديو دواې
مقام خپلولو جوګه دی"[1]

اوداهم دغه دوره ده چه دافسانې په ميدان کښې ځنې داسې
سترليکونکي راميداني کړل چه دهغوئ نامې اوکارنامې ترنن ورځې پورې
دمثال په توګه يادولې شي -

په دغو ليکونکو کښې دابتدائي اصلاحي رنګ افسانه ليکونکي هم
شته - نوې روماني اوتشاطي ډله هم - سياسي اونظرياتي افسانه هم شته.
دقام پرستئ دموضوعاتو سره تړلې افسانه هم شته - په مقامي اوقبائلي
چاپيرچل کښې زيږيدلې موضوعات هم - اوپه خالصو انساني اوآفاقي موضوعاتو
باندې ليکونکې دترقي پسندو مکتب هم -

خوپه عمومي ډول دآزادئ نه پس په پښتو افسانه دحقيقت پسندئ
رجحان او عوامي اولسي شعور رنګ غالب ښکاري - دادب دنورو اصنافو
حال که هرڅه وي - زموږ افسانه ليکونکو ژوند ته ډير د نزدې نه او
دحقيقت په سترګه کتنه کړې ده اوډير پوخ اولسي اوسماجي شعور هغوئ
دخپلې معاشرې اوچاپيرچل په سپورو سترغو حقائقو پورې کلک تړلې دے.
حقيقت دادے چه دپښتو دزوړ روماني رنګ اولسي قيصئ هم دفارسئ
او اردو د روايت نه خلاف دخپل چاپيرچل دحد بندو او برين وتو نه
ډيرې بهر نه وتلې دی - او د پښتو دابتدائي دورې افسانې هم په خپله

---

[1] پښتو افسانه تحقيق اوتنقيد ، محمد اعظم اعظم ص ۱۲۱

تترۍ ژبه کښې د اولسي اصلاحي او انقلابي رجحاناتو د عکاسۍ ګواهي کړے ده۔

خو د آزادۍ نه پس زمونږ د افسانے دغه بنيادي مزاج او رنګ په يو منظم او شعوري ډول کښې ځليدلے دے او دا هغه شے دے چه د پښتو افسانے د پاره يو جدا او منفرد مقام پيدا کړی۔

ښاغلی رضا همداني په خپله فاضلانه مقاله "د افسانے افسانه"[1] کښې د پښتو افسانے د آزادۍ نه پس) بيکوټکي په دوو واضحو ډلوکښے ويشلی دی۔ اوله ډله هغه چه د انګريزۍ افسانے او تنقيد د اثر لاندے ده۔ دا ډله د (ښاغلی رضا په خيال) د افسانے د پاره يو ادت بيرت او پراخه کينوس ګوري او کوشش کوي چه په افسانه کښې د اولس د ژوند حقيقي تصوير ونه محفوظ کړے شي۔ او هر څه چه وينی او محسوسوي هم هغه شان ئے اوديکی۔

او دويمه ډله د اردو افسانے نه متأثره ښکاري۔ د دغے ډلے قلم لا د انفعاليت په سياهۍ کښې ډوب دے او د قامي او نسلي برترۍ احساس پرے سور دے۔ خو د پښتو ژبے د ستر افسانه نګار او نقاد ښاغلی قلندر مومند په خيال د پښتو موجوده افسانے مزاجًا په غير شعوري ډول ځان د يو رنګ او تبلېغۍ افسانے سره تړلے دے....

دستانکي نقاد په الفاظو کښے

"د پښتو افسانے يو خصوصيت چه تر اوسه يو نقاد هم ورته توجه

---

[1] قند مردان، افسانه نمبر ص ۷ [2] قند مردان افسانه نمبر ص ۳۰

نۀ دۀ کړے - دا دے چه نادانسته اویا سکل غیر شعوری طور سره زمونږ د پښتنو لیکونکو اکثریت دا اردو د اثر نه ځان ژغورلے او یدرېځ افسانه سره ئے ځان تړلے دے -"

د دے د وارو سترو نقادانو د رائے د کتو نه پس دا خبره زړۀ ته پرېوځی چه زمونږ د افسانه لیکونکو اکثریت په شعوری طور یا نادانسته ډول دیوړی او تبلیغیزے غاره د ترقی یافته افسانے د مزاج سره ډیره نږدے علاقه لری - او زمونږ لیکونکی په بعضے ځیرونو کښے د معنوی نه متأثره هم دے -

ولے د دے حقیقت نه هم انکار نۀ شی کیدے چه د خارجی اثراتو په سنګار کښے هم د پښتو افسانے د ناوے خپله جثه هم امانی دۀ - او په دے کښے هم څه شک نشته چه پښتنو لیکونکو د خپل مزاج په سمی شعوری طور د افسانے آرټ د ژوندو حقیقتونو د څرګندونے او د تیوئنے او اجتماع د بشیګړے مقصد ته سپارلے دے - خود مقصدیت او حقیقت پسندی دا طرز عمل که یو خوا زمونږ دا ادب د پاره د نیک مرغئ نخښه دۀ - نو بل خوا په بعضے ځایونو کښے دا د شدید قسم جذباتیت پیکر خپل کړی ...... او دغه جذباتیت کله کله د داګیزے نعره بازئ شکل واخلی - خو دا دیب کار دا دے چه هغه د ژوند دیو باشعوره نقاد په څیر د معاشرے په مختلفو مسئلو او پیښو باندے تنقید خو کوی ولے په دے عمل کښے د ادب او فن اصولی بنیادونه له ځایه نه خوزی -

زمونږ د افسانے په نوموړو لیکونکو کښے اکثرو د دے خبرے خیال ساتلے دے خو په زړو لیکونکو کښے یو څو او په نوؤ لیکونکو کښے اکثریت

ACKU

په دې حقیقت سترګې پټوي .

له بده مرغه د کال ۱۹۶۰ ء نه راپه دېخوا په پښتو ادب عموماً او پښتو افسانه خصوصاً یو جمودي دوره راغلې ده - داسې ښکاري چه د زړو نومورو او مستندو افسانه لیکونکو په قلمونو کښې بیخي سیاهي اوچه شوې وي خو په دې او بدده ادبي قحط سالئ کښې هم ځنې داسې نوي افسانه لیکونکي پیدا شوي دي . چه هغوئ ذموږ په افسانوي پانګه کښې د قدر وړ اضافه کړې دي .

## میرمهدی شاه مهدی

د آزادئ نه پس چه کوم نوموړي افسانه لیکونکي راوړاندې شول په هغو کښې د میرمهدي شاه مهدي نامه د باقاعده افسانه نګارانو په سر کښې راځي - د بناغلي مهدي د چاپ شوې افسانو او افسانوي مجموعو شمیر په نورو ټولو ورتېر دې - د هغهٔ د افسانو اولنئ مجموعه "نشان" په کال ۱۹۵۶ ء کښې چاپ شوه - او ورپسې د "بوډئ متال" "پټ" او "لاله ګلونه" په لږ او لږ وقفو کښې راووتې -

بناغلي مهدي د ژوند او ادب په حقله یو مخصوص تړلې او پوخ اولسي او سیاسي شعور لري - د هغهٔ قلم په ادب کښې د سپېرو او ترخو حقیقتونو ترجمان دې او د یو نظریاتي انسان په نظر چه هغه په خپل

چاپیرچل او محیط کښے څه لیدلی او محسوس کړی دی - هم ځکه له ۓ د افسانے رنګ ورکړے دے - د ځه وجه ده چه د مهدی په اکثرو افسانو باندے د حقیقت ګمان کیږی - او د ځکه په افسانه کښے دادبی او تاریخی واقعیت ترمنځه بیلتون ګران شی -

هم له دے کبله د مهدی د افسانو کردارونه موږ ته د افسانوی مخلوق نه زیات د ځپل کور کلی لیدلی کتلی بندیان ښکاری - او د ځپلو کردارونو په حقله نهٔ مهدی په ځپله تیروتلے دے او نهٔ ۓ د ځپلو لوستونکو د تیرستلو کوشش کړے دے -

د مهدی د کردارونو په حقله د بناغلی قلندر مومند دارائے ده - چه د ځه کردارونه پراخه او یو مخیز (Flat) کردارونه وی او د بناغلی ای - ایم فارسټر په خیال کښے چه کومو کردارونو ته غونډ (Round) یا ګنجلک کردارونه وئیلے شی - د هغو سره د مهدی کردارونه هیڅ مشابهت نهٔ خوری - د پراخو واضحو یا یو مخیزو کردارونو خصوصیت داوی چه څنګه په شورو کښے لیدے شی تر آخره پورے هم په هغه نیب روان وی - دوئ داول نه ځرګند وی او د څهٔ قسمه ارتقاء نهٔ قبلوی -

د کردارونو د بشپړے ارتقاء د پاره هسے هم د افسانے په لنډه تنګه لمن کښے ګنجائش نهٔ وی - او بیا د مهدی په افسانو کښے خو اکثریت د پلاټی او ماحولی افسانو دے - او په د ځه قسم افسانو کښے د کردارونو دارتقاء خبره نوره هم ګرانه شی -

---

له پیش لفظ پټ مې ز - ح د میر مهدی شاه مهدی

د مهدي د افسانو کردار ونه عموماً په يوه ايسغه تيغه لاره باندې د يو تياکلې شوې منزل او ميرلې شوې مرام په لور روان وي . افسانه ليکونکي په شعوري کښې د خپلو لوستونکو سره د خپل کردار د ځينو خصوصياتو پيژندګلو اوکړي او دغه کردار هم د دغې پيژندګلو او مدارياتو په رڼا کښې مخکښې تګ کوي .

د ښاغلي مهدي د افسانو د اولنۍ مجموعې "نښان" په پيش لفظ کښې ستر شاعر او اديب ښاغلي امير حمزه خان شنواري د مهدي د فني او ادبي نظرئي په حقله د سرخپوش ادب په حواله داسې وضاحت کوي .

> "د پښتو ادب په خيره کښې سرخپوش ادب هم څه کم ښائست نۀ دے پيدا کړے . د پيرنګي د جابر حکومت په وجه چه د روه پښتون اولس کښې کوم ردعمل پيدا شوے وُو او هغه د باچاخان په قيادت کښې د هغۀ خلاف کوم جهاد کړے وۀ هغه د پښتو ادب په عمارت کښې ديوے اهم ردے حيثيت پيدا کړے دے . . . . . .
>
> د ښاغلي مهدي شاه د افسانے کرۀ ورۀ کټ مټ پښتني دي . تاسو به په دے افسانو کښے اوګورئ چه ښاغلي مهدي د پښتنو ملي جذبات حسيات او نفسيات څومره په ښکلي او ښه طريقه څرګند کړي دي ."[1]

ښاغلي حمزه چه د مهدي د افسانو په حواله د کومے ملي او نظرياتي ردے ذکر کړے دے دا هم هغه ردۀ وه کومه چه څۀ موده وړاندے ماسټر عبدالکريم ايښے وه او نوموړي ماسټر چه د پښتو د افسانوي ادب

---

[1] پيش لفظ نښان ص ۵ - ۶ د مير مهدي شاه

په بوټي کښې کوم قلم لګولے وو د هغې میوه په رسیدلې شکل کښې د مهدي په فن کښې څرګنده شوه -

"نشان" په افسانو کښې د مهدي د افسانوي اسلوب او مخصوص نظریاتي رنګ د ټولو نه غوره افسانه هم د دغې مجموعے اولنۍ افسانه نشان ده - د دے افسانے مرکزي کردار یو سپین سرے بڼځه ده د چا خاوند چه د انګریزانو خلاف د آزادۍ په جنګ کښې د خپلے د لے (خلافتیانو) نشانچي پاتے شوے وي - او د خپل وخت د ټولو، خانانو د لاسه په سنګینونو سورے سورے شي - خو د نشان ټکړه ئے په خپلو وینو جب جوب د خپلے سینے سره ټخته یوے وي - د پلار د مرګ نه پس د ابنۍ یتیم زوئے ته د دولسو کالو په عمر کښې د غه نشان او سپارلے شي - او چه د آزادۍ ناوے وطن ته راشي نو د پلار په شان د هغے نشانچي زوئے هم د خپلو ورونړو د لاسه د ګولو په ترقا کښې نشان په لاس د خپلو وینو قرباني ورکړي - او د دغے نشان د حفاظت ذمه واري اوس د هغے بوډۍ کونړے ته پاتے شي ځکه چه د وین اوډرا په ځائے په فخر او وبیاړ د غه نشان پورته کړي -

په دے ډول د نشان ټوله افسانه هم د دے بے نومه بوډۍ مجاهدے د کردار نه چاپیره چورلي - ځکه چه د دنیا د سود زیان او غم او خوشحالۍ د فکر نه بے نیازه د آزادۍ د جنګ په مړ ډګر بانـدے د مړچانه وړانـدے نشان په لاس روانه وي - د نشان د ټولو افسانو په رګ رګ کښې د مهدي سیاسي او قامي نظریه لکه د بجلۍ د کرنټ ګرځیدلے ده - دا نظریه کله په انفرادي ډول کښې ځان ښکاره کړي او کله اجتماعي رنګ واخلي - خو ولے بیا هم د مهدي بشپړ اولسي او عوامي شعور او د هغهٔ تیزے اوډورے مشاهدے د هغهٔ

ACKU

په نیکونکو کښے دومره جاذبیت ایښے دے ۔ چه د لوستونکو سترګے په ځان پورے جختے ساتی ۔

په "ارمان" کښے بوډا اکرم خان د ۱۹۳۰ء د وختو د برطانوی حکومت خلاف د بغاوت په جرم کښے په اوږده سیاسی سزا کښے بندی وی ۔ او د ازادئ نه پس چه د نورو قیدیانو سره د هغهٔ د رهائی حکم هم اوشی نو په دغه وخت د هغهٔ حالت ډیر خراب شوے وی او د درد بے واره چیچے ئې راځی ۔ او کوم اومه خلهٔ نابلده زلمے سیاسی قیدی چه د دهٔ سرته ناست وی د دهٔ نه دا پوښتنه کوی چه بابا زوئے دِ شته ۔

بوډا اکرم خان په ډیر افسانوی ماحول کښے د قیصے کلائمکس جوړ کړی

" زهٔ چه جیل ته تلم ۔ نو هغه د دوو کالو وو ۔ بیا تر سے خبر نهٔ یم چه اوس به وی او که نا ځکه چه فیرنګیانو زما قید د نورو کسانو نه په بل شان ساتلے وو او که چرے وی نو اوس به د اتلس کالو وی ۔"

او هم په دے ځائے د افسانے انجام په ډراماتی انداز کښے هغه وخت اوشی ۔ کله چه د جیل خانے منشی د دے زلمی ته غږ اوکړی ۔

" اسلم خان ولد اکرم خان موضع احمدآباد تحصیل پیښور "

او چه بوډا اکرم خان ته دا حقیقت ښکاره شی چه د هغهٔ سرته ناست زلمے سیاسی قیدی د هغهٔ خپل زوئے دے ۔ نو د خُلے نه ئے بے اختیاره اوځی اَلحَمدُ لِلّٰه هم په دے ډول د نشان د افسانو نور کردارونه دی ۔ دا کردارونه

---

[1] نشان سید مهدی شاه مهدی ص ۳۶

دهغو قامي غازيانو د سين تونو احاطه کوي څوک چه يو خوا ديرنګو الي د طاقت سره دغوره وهي او بل خوا د ملکي باداراتو او د سامراج د تالي څټو دلاسه د سروټکو په سمندر کښې لامبوزن وي ـ خو ددې ټولو ازميښتونو او کړاښتونو باوجود هم دهغوئ سرونه دپخلې حق پرستئ په تصوّر او قربانئ په جذبه مسک او اوچت وي.

"ژوبنانه"، "فروزه" او "ليونئ" نزدې نزدې هم په يو ماحول او يو قسمه حالاتو کښې ذهن پيدا لي کردارونه دي ـ ددغو افسانو را او افسانوي کردارونو په پس منظر کښې هم ديو مخصوص طرز سياسي او انقلابي فضا پرېښې ده ځکه ددغو وارو کردارونو په کړو وړو کښې ديو خاص قسم مماثلت او يو شان والے محسوسيږي او د کردارونو ارتقاء په دې ټولو افسانو کښې په يو ځائې ټپ ولاړه ښکاري ـ

د نشان په افسانو کښې دټولو نه وروستئ افسانه "سياست" د کردارنګارئ په توګه يوه غوره او موثره افسانه ده ـ په دې افسانه کښې د دوؤ متضادو سيرتونو بنده يان سيد رحمن خان او اصغرخان په مختلفو حالتونو کښې اول ديو بل سره يخي هم آهنګه او بيا په فکري او نظرياتي دبه ديو بل سره په تصادم کښې ښتلے شوي دي.

ددې افسانې اصغرخان د مهدي دنورو کردارونو په شان دآزادئ[1] په جدوجهد کښې چه داول نه په ځان مره سخته تيرې وي او تر آخره[2] پورې په دې لاره پخل مرخه قربان کړي خو دمغه لاربنودونکي ليډر

---

[1] نشان مير مهدي شاه مهدي ص ۱۸۲

ACKU

سید رحمن خان د بد لیدونکو وختونو سره په څله هم بدل شی اوځه وخت چه اصغر د جیل نه را اوځی او په چوک یادګار کښے په هغه جلسه ورشی په کومه کښے چه د هغهٔ د پارټئ اوجد وجهد زوړ قام پرست ملګرے د یو ستر لیډر په شکل کښے په هغه پارټئ پسے بدے ردے وائی د کوسے په زورچه هغهٔ د صوبائی اسمبلئ ممبری موندلے وی نو د اصغر د پاره دا یو بیخی نوے تماشا وی - خو د سید رحمن خان په خیال کښے دغه د وخت آوازن وی او هغه د ام دسیاست د لوبے یوه حصّه ګنړی -

دسید رحمن په کردار کښے مهدی زمونږ د روایتی لیډرانو د مخ نه دفریب او ریا پرده پورته کړے ده - داکردار په حقیقت کښے هم زمونږ د معاشرے په اولسی دویو یولوئے طنز دے اوهم زمونږ په رواجی سیاست -

دنشان نه پس د مهدی د نورو مجموعو ردبوړئ تا ل - پت اولالـه ګلونه) د افسانو عموی مزاج هم په هغو موضوعاتو اوکردارونو اړه لری کوم چه د مهدی د مخصوص سیاسی فکر او پښتنی اولسی شعور عکاسی کوی - ددغے افسانو کردار ونه هم هغه د آزادئ د تحریک په پچیو کښے لوغرید لی تږندلی بنیادم دی چاچه د ننګ اوپت په لار د حالاتو په شو اخون کښے دړوند خوارئ په ځان زهر کړی وی -

بنا علی مهدی د خپلو کردارونو په حقله ییکی -

° زما د پت په افسانو کښے هم اکثریت د هغو پښتنو کردارونو دے چه کومو د خپلے مقدسے آزادئ دپاره دړوندون خوړے

---

له خپلے خبرے - پت میر مهدی شاه مهدی ص ق ـ ر

لپاره د ژوند دانقلاباتو په ناقابل برداشت ترخو بدے کړے

دی.

زما د کردارونو اکثریت ځکه د دغه قسمه شاه زلمو او پېغلو وی چه زما په نزد د آزادئ نه مقدس او بے بها نعمت بل هیڅ نهٔ شی کیدے؟

د مهدی شاه صره افسانه عموماً په المیه ( Tragic )

انجام باندے پائے ته رسی او د هغهٔ اکثر کردارونه په آخر کښے د تباهئ سره مخامخ کیږی - خو د دغے تباهئ د پاره مهدی د خارجی او مافوق الفطرت عواملو او وجوهاتو په ځائے عقلی او منطقی سببونه لټوی - او دا د پلاټ او کردارونو د داخلی ربط او تړون فطری او امکانی نتیجه وی۔

د مهدی په فن کښے حقیقت نگاری د ټولو ټوکو نه جوت توکے دے - او د حقیقت نګارئ د دغه عنصر د موجودګئ نه زیات د هغهٔ د کردارونو په لړ کښے حاوی ښکاری - هغه چه د کوم چاپیرچل خبرے کوی د هغهٔ کردارونه د سرنه پښو پورے هم د هغه چاپیرچل او سیدونکی بنیادم ښکاری۔

او د بنا غلی قلندر مومند په الفاظو کښے

" د مهدی دکردارونو اکثریت د پښتنو دکلو او ځرو زلمی او بوډاګان دی چه لوستونکی ئے د مطالعے په وخت د ماورائی دنیا باشندګان نه بلکه د خپل ماحول افراد ګنړی۔ ځکه چه د پښتنو هر کور او کلی کښے هم جذبے لرونکی افراد

---

[1] پښتی لفظ پت مهدی ص و

اوسیږی ."

د"بوډۍ" تپال" اوپت" دمهدی صغه افسانے دی دکوموموضوعات
چه دمهدی د مخصوص رنګ نه لرې جدا او غیرسیاسی موضوعات دی .
دبوډۍ تپال کښے د زپلو دهقانانو د صغو ازلی محرومو تذکره شوے
ده . کوم چه وختونو دصغوئ په شیدلو څولوکښے اچولے دی . د
سیدا کاکا ټول امیدونه او دصغهٔ لونړو پریګنۍ اومیمونۍ وارہ خوشحالۍ
په پټی کښے د ولاړ شین فصل سره تړلے وی . خو په دغه فصل چه ناګهانی
ږلۍ اوشی نو دسیدا کاکا د امیدونو دنیا تالاوالا شی او دصغهٔ په وجود
کښے دصغو ټولو دهقانانو اومزدورکاں و محنتونه په سلګو شی .
"کوم چه د زمانو راسے په دے کوششونو کښے ن‍ګیا
دی چه دخپلو څولو نه دقسمت دغه ګردونه اوڅنډی
وے دحالاتو نامنونکے ږلۍ اوسیلۍ دصغوئ دامیدونو
اوتنکو ارمانونو کروند ے او فصلونه تباه اوبرباد کړی . او
د صغے ددوئ سره هیڅ بند نشته ."

خو بناغلی قلندر مومند ته دسیدا کاکا دکردار په غم لړلی
انجام باندے اعتراض دے . او وپت دافسانو په پیش لفظ کښے صغهٔ هم دے
افسانے ته ګوته ینولے ده . دبناغلی قلندرمومند په خیال مهدی د
سیدا کاکا کردار په دا سے حزنیه انداز کښے (او بلا ضرورت) د تباهئ سره
مخامخ کړے دے . چه دصغهٔ کردار سره انصاف نهٔ معلومیږی .

---

له پښتو افسانه ، محمد اعظم اعظم ص ۱۲۸

ACKU

" دبوډۍ د تپال دا رجحان نه د مهدی د ژوند په حقله
نظرئے سره سمون او مطابقت خوری - او نهٔ پسندیږه دے
که انسان دچل محنت په نتیجه کښے خوشحالی نهٔ شی موندے
نو د محنت څهٔ فائده شوه - سیدا کاکا د زبردست محنت
او مشقت نه پس د فطرت د قوتونو باد باران او ږلئ څخکښے
شکست اوخوری او مړشی -"

په پت کښے مهدی شعوری طور د یو کرداری افسانے دعولو
زیار کړے دے - په دے زیار کښے مهدی په چل مقصد کښے تر دے حده خو
کامیاب شی چه د صفدر د کردار نه د قیصے یو نهٔ هیریدونکے افسانوی کردار
جوړ کړی - خو په دے افسانه کښے د واقعاتو په زور او بریبل کښے دا هم
لکه د مهدی داکثرو افسانو یوه واقعاتی او ترخهٔ حده د ماحول افسانه
معلومیږی - د افسانے هیرو صفدر د بغاوت په دفعه کښے د پرنګی حکومت
نه مفرور وی - د غه مفرور د باجوړ د پینډی ملک د لاسه حکومت ته
حواله کړے شی -

دے دد غه نه څکښے د صفدر او پینډی ملک د لور د یو بل سره
مینه پیدا شوے وی - او دواړه د یو ځائے کیدو هیڅ لار نهٔ وینی - کله
چه صفدر جیل ته لاړ شی نو جینئ د غمهٔ په غم کښے لیونئ شی - او نیمه کاله
پس چه صفدر د جیل نه راشی نو د غهٔ مخ په چونه سوزیدلے وی او د
مخ کرهٔ د رهٔ ځے دیر بدرنګه شوی وی - خو په خلقو کښے دا مشهوره

۱ پت - مهدی پیش لفظ ص ن

ACKU

شي چه صفدر مړ شو ـ د صفدر غيرتي فطرت هم دا خوښه کړي چه بناد په خوا کښې په اديره کښې په ژوندوني ځان له قبر جوړ کړي او په خپله د خپل قبر مجاور شي ( خو دا مرګه مهدي په خپل پلاړ کښې د دوستونو نه پټ او په (Suspense) کښې ساتلي دي ) خو څه وخت چه صفدر د خپلې معشوقې د ليونتوب د حال نه خبر شي نو د هغه په خيال کښې د رسم ورواج بنديزونه ټول ختم شي ـ او هغه خپله ليونئ په دے بهانه د ځان سره رادوانه کړي چه

" راځه د صفدر قبر له ډبوځم ـ "

د رواجي دنيا د خوشحاله او ژوندۍ مخلوق نه لرے صفدر د خپلې ليونئ سره په اديره کښې په خپله جونګړه کښې د ژوند شپې ورځې اړوي ـ او د بناريئ په دکو بازارونو چه مړه ورځ دا بدرنګه فقير او بناسته فقيره د سوال ګرو په څير راتيريږي نو مرچا په سترګو کښې اختے وي ـ خو چا ته دا پته نۀ لګي چه د دے دواړو ترمنځه څۀ رشته ده او تر آخره وخته پورے صفدر هم دا فيصله او نۀ کړے شي چه د هغۀ او د بناسته ليونئ فقيرے ترمنځه څۀ رشته ده ـ

خو دانسانيت په کومه عظيمه رشته او بے لوثه جذبه چه صفدر د ليونئ خدمت ته خپل ځان او ژوند سپارلے وي ـ هم دغه د دے کردار نه بولافاني کردار جوړوي ـ

ACKU

# قلندر مومند او ګجرے

دپښتو افسانے دودے اوارتقاء په لړکښے دقلندرمومند ګجرے یو ډیر اهم اوجوت مقام لری - هغه کیف، هغه مورواله او دډوند اجتماعی رنګ چه دقبائیلے نړئ دترقی یافته ژبو یا په برصغیر کښے دنوی دور داردو په معیاری افسانو کښے لیدے اومحسوسیدے شی - دهغے ځنے روښانه نقشونه چه پښتو کښے دقلندر په افسانو کښے راجوتیږی او په ګجرے کښے پښتو قصّه په یو نوی افسانوی پیکر او فنی جامه کښے ځان ښائی خو سره دپیکر دنوی والی اولهجے دتازګئ ددے افسانو فضا هغه بلده فضا ده کومه چه مونږ ډیره دنزدے نه پیژنو - اوداځکه چه ددے افسانو پیښے او کردارونه واړه هم ددے چاپیرچل اود کورکوځے دعموی اوروان ژوند هغه نقشونه دی چه په عمومیت کښے ئے هم یو دوامیت پروت دے -

ددے افسانو موضوعات دهغے واقعاتو اوپیښو سره تعلق لری چه مونږ ئے په امروزه ژوند کښے وینوګورو - اوکردارونه ئے هم هغه دساښدیانن دی چه زمونږ دسترګو په وړاندے ګرځی راګرځی - خوددغے عموی کردارونو دژوند ځنے داسے مخصوص اوانفرادی اړخونه فاضل افسانه لیکونکی دخپل فکر په لومه کښے رانیولی وی چه هغے ته دعامو کتونکو نظر ــ ــه ګی نه رسی -

قلندر دافسانے دفن یو لوړ اوپوخ استکار دے - او مغه دخپل لوړ مقصدیت او انسان دوستۍ دبشپړے جذبه سره خوا په خوا دفن د حدودو او لوازمونه هم چرته څنګه نهٔ دهٔ کړے - اودمغه په افسانه کښے فن اومقصدیت سره لازم ملزوم څیزونه وی -

د قلندر په نزد په افسانه کښے د ټولونه لازمی څیز پلاټ دے او دمغه زیاته توجه دپلاټ په اُوودلو (Knitting of the Plot) باندے وی - دکوم په نتیجه کښے چه مغه بوص حاصلیږی څه ته چه دتأثر وحدت (Unity of Impression) وائی - له دغےکبله صغه په افسانه کښے دکودار دارتقاءګنجائش یو به ځایه تګل کیږی -

ددے ټول تمهید غرض دادےچه دګجرے داکثرو افسانوپه کودارونو باندے دارتقاء یافته یا یو مخیزو کردارونوګمان کیږی خودا کردارونه دخپل ماحول او پلاټ په چوکاټ کښے دا سے په ځائے ځائے اوپوست لګیدلی وی چه دصغ دمقصد او اثر شدت کښے داول نه تر آخره هیڅ کمے نهٔ محسوسیږی -

دافسانے دفن استاذان چه افسانه په کوموقسمونو کښے ویشی - د صغ له دویه ستر نقاد او محقق بناغلی دوست محمد خان کامل دګجرے افسانوته ماحولی افسانے وائی -

" دنوعیت یا قسم په لحاظ زما په خیال ددےمجموعے تقریباً ټولے افسانے ماحول سره تعلق لری - یا په نورو ټکو

---

ا پیش لفظ ګجرے - دقلندرمومند

کښې د ماحول عنصر پکښې زيات غالب او جوت دے ."

خو د دے باوجود هم د قلندر د افسانو اکثر کردارونه ډیر اثرناک او نهٔ هیریدونکی کردارونه دی . ترکومے پورے چه په افسانه کښې د کردارنګارئ تعلق دے . په دے کښې څه شک نشته چه په دے صنف کښې د ناول یا ډرامے غوندے په ارت مټ بشپړه کردارنګاری ناممکنه خبره ده . ځکه د ګجرے په اکثرو افسانو کښې هم کردارونو ته دیوے مخصوصے او غرضی زاویے له خوا کتلی شوی وی . او د کردارونو هغه ګوښے ے برخیرے کړے وی کوم چه د پلاټ مرام او مقصد ترسره کوی . د غـه کردارونه د یو مخصوص چاپیرچل او په هغې کښې د راګیر شوے ژوند طبقے نمائندګی کوی .

د قلندر د فن کمال دادے چه د هغه په افسانه کښې واقعه ماحول او کردار د یو بل سره داسے ګنډلی او تړلی راروان وی چه د حقیقت نه یوه ګوته هم بیرته نهٔ ځی او د ضرورت نه یوه شرشائ هم کم و زیات نهٔ وی . د دے افسانو کردارونه سره د خپل انفرادیته او شناخته د خپلے طبقے او ټولنے د نمائندګئ فریضه هم ترسره کوی .

د خپل ټولوړی هم عصر او ملګری بناغلی مهدی په شان قلندر هم د ژوند سپور حقیقتونه او د معاشرے زپلی وګړی د خپلو افسانو د مرام ستنے ګڼړی خو د مهدی پاریدلے جذباتیت د قلندر په پیرایه کښې د قلندر حقیقت په جامه کښې ځان ښائی او د مهدی د مقامیت معنے د قلندر په ژبه آفاقی رنګ واخلی .

د ګجرے د افسانو اکثر کردارونه د ظالمے معاشرے په ژرندهٔ کښې

ACKU

دل شوی هغه مظلوم انسانان دی چه دخپلې بدحالئ او بربادئ شعور نه لری ولې دخپل مړژوندی حالت دبدلولو په بند بنا نهٔ پوهیږی . غنم رنګ جیب ماما . سرورے . عزیز او بناتے ټول هم په مختلفو ماحولونو کښې داګیں دحالاتو ځپیږو دهغے مخلوق دے . . . . . . . . دغه واړه د ژوند دبنیادی حقونو په تکل کښې لاس پښې خو وهی . خو دغه لاسونه او پښې دظالمې معاشرے داستحصال په زنځیرونو بند په بند تړلی وی او ددے ټولو کردارونو المیه انجام خو په خپله د لوستونکی په زړهٔ کښې ددغو کردارونو په مرسته کښې یو خاموشه احتجاج راپورته کړی . او دا احتجاج دغه خاموشه پیرایه په ډیره سره او قلاره لهجه کښې قلندر مومند څرګانه خپله کړے ده .

" دنیمګړے نیمه خوا " سرورے دخپل ماحول د ناهموارو په چکر کښې راګیر یو داسے کردار دے چه دهغهٔ دمعاش ټول دارمدار په هغه اسپه باندے وی کومه چه دبنار په اسپتال کښې دمرګ په تبه پرته وی . په کور کښې ئے داوړو درک نهٔ لګی خو دخان جرے له چه راشی نو دهغهٔ ناظر ملنګ ئے په زور دخان بیګار له روان کړی او دسروری هر دلیل او هره زاری دملنګ په وړاندے بے سوده شی .

" دهغه زړهٔ غوښته چه یو ځل بیا کورته ورشی او
د جانی دحال احوال پښتنه اوکړی خو چه کورته ئے مخ کړو
نو داسے ئے محسوسه کړه لکه چه ملنګ ورته دماوت په شان

---

[1] نیمګړے نیمه خوا . ګجرے دقلندر مومند ص ۹۳

په څپې ناست وي . او مخ په درمن ته اروي . هغه زر مخه
بدله کړه او د درمن په لوري روان شو ."

زړه چاودے سرورے په ناخوالۍ د خان بوسارے ترې او دبیګار خوله لا اوچه نه وي چه د روزګار غمونه ورته بیا وړاندے اودریږي . او د ښځې دتاو سرولو او ناروغه ځانی ددارو درملو دپاره دوه پیسې وابسته اوکړي . د وښو یو پنډ په دولس انے خرڅ کړي او یو پنډ په سرکړي په ښار کښې د ډاکټر ددوکان مخ ته اودریږي او چه ډاکټر ترے په قارجن آواز کښې پوښتنه اوکړي . څه چل دے ؟ نو سرورے ډیر په عاجزۍ او سادګۍ جواب ورکړي .

" ډاکټر[1] صیب ! د زوے تبه ده ."

او سرورے لږ وروړاندے شي او د ډاکټر د ځواب اوروے دپاره ددے نه زیات حقیقي ماحول (Situation) او ددے نه زیات اثرناک الفاظ نور څه کیدے شي دکوم تصور چه د قلندر غونډے ستر فنکار کولے شي .

" وی به کته ! خو په ماو لے راځیږ ے . لږ ډډے
ته اودریږه ."

په دے دوو فقرو کښې دیوے معاشرے د دوو طبقو د نقطه نظر پوره تفسیر پروت دے . ددے دوو فقرو په کوزه کښې د جبر او صبر سمندرونه بند دی . او دا دوه فقرے د نړۍ دپسمانده اولسونو د تاتی

---

۱ نیمګرے نیمه خوا . ګجرے قلندرمومند ص ۹۷

۲ ایضاً ایضاً

تشخص یئمه خواکردارونه په هغو دوو واقعو برخو کښې ویشي چه یوے ته
شتهمن اوبلے ته حاجتمن ویلے شي - خو دشتهمندو ددینا حاجتمند په
انتهائي مایوسئ کښے هم دامیرلمن تینګه ساتي -

دسروري دمزدورئ وسیله اسپه خو لاشته -او سرورے چه دناروغه
زوئے دپاره دداړو پوړئ دځان سره واخلي اودښاروو په اسپتال راتیں
شي نو خبرشي چه اسپه مرداره شوه -اوپه دے حال کښے چه داسپتال بودا
څوکیدار دهمدردئ په خیال سروري ته اووائي -

"بچے ! دبچو دسر صدقه ږ شه -"

نو داکه یوخوا دبد نصیبه سروري په نصیب د طنز غشي وروي نو بل خوا
افسانه نګار په شعوري ډول ددے مات اوټوټے ټوټے کردار دژوند سره
دتړون دجواز دپاره یوه شاده اوآخري اسره هم په ګوته کوي - دجاني دسر
دصدقے په خیال لکه چه دهغه نه په رښتیا دژوند دلوټ شوے سرمائے
دزیان صدمه هیره شي خو اوس دهغه سره داسودا ملګرے شي چه -

" دورانئ ته به داخبره څنګه واوروے شم -دا به
ورته څنګه اووایم چه زهٔ نیمګرے شوم چه زهٔ به بیا
تانګه نهٔ شم چلولے - چه پرکټ شوم "[1]

نو دیو معمولي پنډه دارمانونو دا غیرمعمولي اوعظیمه
المیه هغه وخت سرته اورسي کله چه سرورے خپلے کوټے ته ننوځي او د
دورانئ دژړا آوازونه ترغوږ شي -

---

[1] ګجرے قلندرمومند ص ۹۹

ACKU

"زما جانیه ! - زما نیمه خوا جانیه".

د قلندر په افسانو کښے دورے نه وره واقعه هم د ډورے تجربے او ورکوزے مشاهدے غمازی کوی - دغه پیښے او واقعات په څهٔ داسے واقعاتی رنګ کښے کردارونه دځان سره په څنه بیانی چه واقعه - کردار او ماحول دیو بل نه جدا ځیږونه نهٔ ښکاری - د قلندر په وړاندے د ژوند هر حقیقت یوه افسانه وی او د هغهٔ په هره افسانه د حقیقت ګمان کیږی - دیوژوندی حقیقت - او د دے حقیقت د اظهار دپاره چه د طنز نه ډکه کومه پیرایه استعمال شوے وی هغه چرته هم د فن دګرفته وتلے نهٔ ښکاری - او د افسانے دتاثر په شدت کښے اضافه کوی - د اولس او معاشرے په حقله په اصلاحی زیارونو کښے هم دغه کردارونه په یو مخصوص علاماتی رنګ کښے نغښتلی ښکاری او ددغے علاماتو په شا یو طویل معاشی او معاشرتی پس منظر پروت وی -

"لرګے"[1] د یو داسے کردار په نفسیاتی مطالعه بانده بِنا شوے افسانه ده کوم چه د کسترئ په احساس کښے داګیر وی - غنم رنګ د معاشرے دهغه طبقے سره تعلق لری کوم چه د کلاس او درجے له رویه خو یو مقام لری خو د غنم رنګ د قسمت محرومو هغه دخپل میرنی ورور داوُد په ولقه کښے داسے ورګیرے وی چه یو خوا هغه په شتو کښے نشت شی او بل خوا د هغهٔ دجسمانی کمزورئ او بدرنګئ احساس هغه دخپلے معشوقے پریګئ په نظر کښے (او هم په خپل نظر کښے) را غورزولے وی - او د هغه په مقابله کښے د توګو نه لوئے رقیب دهغهٔ میرنے ورور داوُد شی دچا په لاس کښے چه پیسه وی او د

---

[1] لرګے ، قلندرمومند ص ۱۰۰

داؤد داقسم له پېژنو نه په غنم رنګ دګولئ دګڼ ار نه که نهٔ وی.

" نامرده ماسره سیالی کوے - تهٔ دے چېل شکل ته اوګوره

اوما ته هم - تهٔ دے خپلے پېژے ته اوګوره اوزما مټو ته هم - تهٔ

دے خپلے هستئ ته هم اوګوره اوزماسره دسیالئ خیال ته هم

نظر اوکړه - کم عقله !"

او ددے افسانے غمناک انجام د غنم رنګ دژوند المیه ډیره په

شدت سره برخیره کړی کله چه هغه پریګئ د داؤد په قبضه کښے اووینی

او دغه وخت (دهغه دوجود نه لکه چه ساوتے وی. هغه لړګے شو - اوچ

لړګے)

ستر نقاد بناغلے ایاز داؤدزے دګجرے په ذکر شوے افسانه کښے د

غنم رنګ دکردار په حقله لیکی -

" لړګے[2] د غنم رنګ د بے ننګئ قیصه ده - دهغه دبےخوندئ

او بے زړهٔ توب نه ټوله قیصه جوړیږی."

خو د غنم رنګ د بے زړهٔ توب او بے ننګئ په شا چه کوم اولسی، معاشی او

طبقاتی پس منظر کارکوی په حقیقت کښے هم هغه ددے کردار دټولو کمو او

ناهموارو ذمه وار دے - دپریګئ سره د ملاقات په دوران کښے د غنم رنګ

دهغے په سینه شلیدلے لوپټے ته اشاره -

---

[1] ګجرے، قلندر مومند ص ۱۳

[2] ماهنامه قند مردان جلد ۳ ګڼړه ۱-۲ ص ۱۸

" پرینګئ داوے شلیدے دہ - بله لوپټه

وے نه اخلے -"

او د پرینګئ داجواب -

"څوک راله واخلی -"[۱]

او بیا پرینګئ خبره په بله اړوی اومغه ته د قاضی ماما دورانے متهئ

په کنډر کښے د ملاقات طمع ورکوی - اودواړه پاڅی ....

خو غنم رنګ چه د داؤد د لالا نه لس روپئ غواړی اومغه ترے انکارکوی -

او مغه په خپلو سترګو وینی ګوری چه د پرینګئ په ښان پیغلے د داؤد غوندے

شته منو سره پیټ پیتونے کوی ........ تو مغه په دے وینا کښے حق بجانبه

وی او د مغه دا رویه نه څه عجیبه وی او نه غیر پسند انه چه -

" رښتیا نو من ! زما چا سره د مینے کولو څه حق دے.

مینه خو بس د داؤد او داسے نوړو شته منو ټیکه ده کنه من."[۲]

او د دے نه واضحه اشاره د دے کردار د معاشی او طبقاتی پس منظر

په حواله بیله څه کیدے شی - په حقیقت کښے د غنم رنګ د پاره خپل کور د

خپل میرنی ورور دلاسه په طبقاتی برخو کښے ویشلے شوے دے -

بنا غلی ایاز د "ګجرے" د افسانو ( په خپله تنقیدی تجزیه کښے ) د

څنوبے شمیرہ فنی خوبو او خصوصیاتو اعتراف کړے دے خو د کردار نګاری په

حقله د حیرانتیا او شبے اظهار هم کوی -

---

[۱] و [۲] و [۳] - لوګے - ګجرے - قلندر مومند ص ۱۲

"په ګجرے کښے چه د کوے معاشرے عکس بنو دے شوے دے هغه یاخو ښځې دښتونے دے یا دښتیاؤ ته دومره نژدے دے چه د دښتیاؤ نه هم دښتیا معلومیږی - خو په دغه معاشره کښے بنودلی شوی کردارونه داسے معلومیږی لکه چه په خپله کور کښے پرِ دی او په خپل هیواد کښے مسافر دی - اوږده اوږده - اوتر اوتر - واړخطا معلومیږی لکه چه د هغهٔ حالاتو سره هډو بلد نهٔ وی په کومو کښے چه داګیر شوی دی - لکه چه هغه معاشره ئے چرے په خوب کښے نهٔ وی لیدلی په کومه کښے چه په ژوند کولو مجبور دی - لکه چه هغه واقعات ئے په خوب خاطر کښے هم چرے نهٔ راتلل - کوم چه ورته دلته هره ورځ راپیښیږی - معاشره هم هغه وه کومه چه د دوئ د پلارانو نیکونو د ورځو راسے وه - خو داسے معلومیږی لکه چه په دغه کردارونو څه ناڅاپی شان انقلاب راغلے وی - د دوئ حیات یکسر بدل شوی وی او ځکه نو د معاشرے د مزاج سره، د معاشرے د طبیعت سره د خپل ماحول د آزمینښتونو او غوښتنو سره خپل ځان په نفسیاتی طور نهٔ شی سمولے - دغه وجه ده چه دے کردارونو ته په ژور نظر ګوره و - نو څهٔ بل بل رنګ راته ښکاری - او شاید د دوئ د ے بل رنګ توب ته چه ګوری نو معاشره هم ورته کله کله تش ے تریو کړی - ځان ورته بدل کړی او هغه څه ورسره اوکړی چه په "شرم"

---

ل قند مردان جلد ۳ ګنړه ۱ - ۲ ص ۱۷

او "میمونه شنه شوه په خندا شوه" کښے ئې کړی دی - کنی دغه معاشره چه موږ ئې پیژنو - دپیرو راسے ئې پیژنو - دمودو راسے ئې پیژنو - هم دغسے ده لکه چه وه - او موږ ورسره بنهٔ بلد شوی یو - دخان کاکا بوساړے موتل تړلی دی - اوس ئې هم تړو - دخان کاکا بیګار موږ په بیګار کښے نهٔ اچوؤ - خپل کارئې ګڼړو - په تسلی بخش کښے خان کاکا غنم یوړل نوڅه نوے کار خوئې اونهٔ کړو دغه کارونو سره خو موږ اموخته یو اوهن که چرته تنګ شوی یو نو بیا په جنګ شوی یو - دخان کاکا شال سره موتل خپله شرئ جنګوے ده خو کلے مو ورته نهٔ دے پریښودے -"

دنوموړی نقاد ددے فاضلانه او تفصیلی تجزئې لوستلو نه پس لوستونکے دے نتیجے ته رسی چه کنی دپیرو راسے چه په کومو روایاتو او روایتی چاپیرچل کښے کوم کردار روښه کښدان کوی - دهغوئ تیو لو دسوچ او فکر زاوئې او دعمل روئې هم په یو شان او یو طرز وی - دیو معمولی ذهن لرونکی په فهم او پوهه به هم داقسم له رویه دافرادو دانفرادی کردار او محسوساتو په لړ کښے ذیاتے وی - او بیا دمعاشرے او معاشرت د بدلیدونکو اقدارو او عواملو په سمی او دذاتی او انفرادی حالاتو په مناسبت دایکی یو چاپیرچل داوسیدونکو په سوچ او فکر کښے دادے بدلے عمل ته مخ نیوے کول هم فطرتاً یوه ناشونکے خبره ده -

په افسانوی ادب (Fiction) کښے خو دسیرتو نو انفرادیت نورهم ځان ته یو فنی بوازلری - البته په کوم ځائے چه دمعاشرے د ناهوارتیا او استحصالی عمل په ځائے کیے او کمزورے په خپله دکوم وګړی یا کردار ذاتی

انفرادي او انفعالي برخه شي - هلته د فاضل نقاد دغه قسمه رائے وزن او ځائے لري .

لکه "مبارکي" نوے افسانه کښے د تعليم يافته او زميات طلبي (Ambitious) زلمي عزيز دويه بيخي يوه جذباتي دويه ښکاري او په دے حقله د ښاغلي اياز دا تجزيه ډيره سپځلے او ساهو معلومين ي .

" خو د عزيز جذباتي ژوند د معاشرے سره ډغره او وهله او خپل سرے مات کړو - هغهٔ ارادے لوړے لرلے خو هغه هومره استقلال ئے نهٔ لرلو - هغه د ژوند مقصد هم ډيټي کيدل ګڼړل او چه دغه مقصد ترے نه لاړو نو زړهٔ ئے پرې او چاودو ."[1]

نو خبره چه د "نيمګړے يمه خو ا" سروري يا "د تسلي بخش" ښاتي ته را اورسي نو دلته نقشه بيخي بدله ده - د خانانو بيکار وړل د فقيرانو د مسابو دپاره اګر چه څه نوے خبره نهٔ ده - خو په کومو حالاتو کښے چه سرور ســـے راکړ وو - په هغو حالاتو کښے دغه باغي او انقـلابي سوچونه په هيڅ شـکل کښے د فطرت نه خلاف نهٔ ښکاري - هم دغه حال د تسلي بخش د ښاتي دے - د ښاتي د کورنه په داسے حالاتو کښے د خان کاکا سړي داسے وړي چه هغوئ نهر پاتے شي - ښاغلي اياز په خيال کښے .

" که خان کاکا غـم يوړل نو څه نوے کار خو ئے او نهٔ کړو دغه کارونو سره خو موږ اموخته يو ."

حقيقت خو دغه دے معمول دغه دے - ولے دا افسانے ديکونکي دپاره

---

[1] قند مردان جلد ۳ ګڼړه ۱ - ۲ ص ۱۵

دا یو ډیر غیر معمولي کیفیت دے ـ چه په کوم کلي کښې د چا زوئے د لوږے نه مړ شي ـ په هغه کلي کښې ورته داوسیدو څه حق پاتے دے ـ او هم له دغې کبله د جلاتي پلار د جلاتي مورِ بنارته د روزئ په تکل کښې روانه کړي خو د خدائے د نهرو د پاره د بنار کوڅے هم تنګے وي هم دغسے څنګه چه ړے د ژوند کوڅے تنګے وے ـ

هم دغه کانے " ماموني شنه شوه په خندا شوه ـ " کښې د ډیر ژوره سره کیږي ـ د ډیر ارے د بربادئ ټول قصور د خان خیل دے چه د یو سے ناپوهه مجبورے او بے وسه ښځې د بېغلتوب کلئ او شوکوي، او د خپل نام نهاده ناموس د بچاوي په خاطر د وه تنکئ سالکانے هم واخلي ........ خو د طاقت او دولت په زور او شور کښې د مجبورو بنیادمو ښځے او ساسته داسے ورکے شي لکه چه هډو چا اوریدلے نهٔ وي ـ

# اشراف حُسین اَحمَد

دآزادئ نه پس دافسانے په ډیرو اهمو نومونو کښے یوه نامه داشراف حسین احمد هم دہ - داشراف دافسانو دوه مجموعے "شندی ګل" او "مورے اوشښتے" چاپ شوی دی - په دے دواړو مجموعو کښے دموضوعاتو او کردارونو له خوا (او په بعضے ځایونو کښے د پلاټ تنګ له خوا هم) ځنے داسے افسانے شاملے دی چه هغے ته په پښتو ادب کښے تجرباتی افسانے هم ویلے شو- او دغه بحث ځنل ځائے لری چه دا تجربے تر کومه حده پورے کامیابے تجربے دی -

د شندی ګل په افسانو کښے بناغلی اشراف په اول ځل دځنل خواوُ شا نه هغه کردارونه راخستی دی چه تر اوسه پورے ورته دچا خیال نهٔ وو تلے په دے کردارونو کښے هغه بنائسته پیشه ورګړی یدونکی هلکان چه دمعاش مجبورو ورله دلختیٔ نامه ورکړے ده په ورومبی ځل په یوه عجیبه افسانوی فضا کښے زمونږ دسترګو په وړاندے راځی او بل خوا پکښے دهغے بدمعاشو شخص دکردار تحریږنه او تجزیه شوے ده کوم چه هغے نهٔ دی خو دشریفانو پیسل هم پرے بدی ښکاری -

خو بناغلی اشراف چه ددے قسم کردارونو دژوند اومعاش دقاعدو او طریقو دپاره دبے وسی او مجبورو کوم جوان په څو ته کړے دے دهغو سره په څو ځایونو کښے دبنده ذهن تائید کولو ته جوړ شی او په څنو موقعو دغه بیخی فیشن اوتکلف معلومیږی - د"شیندی ګل" په افسانو کښے هم

په دغه عنوان باندې پیکلې شوې افسانه هم دددې مجموعې نمائنده کرداري افسانه ده او هم د اشراف دخصوصي مکتب . دا افسانه هم دموضوع او هم دتکنیک له رویه یوخاص قسم جدت اوتنوع لري او یوه کامیابه اومعیاري افسانه ده .

شندی ګل د پنځلسو شپاړسو کالو یوه ښکلې وی اود افسانه لیکونکي په ټکو کښې ... .... ..

"په[1] هرمجلس په هره حجره کښې خلقو به دمغه د نرو نرو شونډو د مخمورو سترګو د سپینو ږمو په دود اود ګلاب د ګل په شان ښائسته او ځلنده څهرې اودتورو ریښمو په شان باریکو باریکو زلفو ستائینه کوله ."

او درحیم خان غونډې دبې لاسه خانانو په خیال شندی ګل دجنت نه راغلې یو غلمان وو .

خو شندی ګل فطرتاً په دې ماحول کښې دایسارېدو بنده نه وو بلکه په زور زیاتی په دې کسب مجبور کړې شوې وو او د "لېتو" غونډې بې ضمیره کسبي په پنجه کښې راګېر شوې وو خو شندی ګل د لېتو په معیار هم پوره نه ختو ځکه چه د لېتو په خیال .......

"یو[2] خو ورله سمه ګډا او مجلس هم نه ورځي او بله دپاسه د خنزیر بچې تند ې هم تریو کړي اوچه ورته او ویم نو بیا لکه د

---

[1] شندی ګل . اشراف حسین احمد ص ۲۰

[2] ایضاً ________ ص ۲۲ - ۲۳

۱

لیونی سپی چکونه نګڼی ـ خدائے ورته بے حسابه بنائست ورکړے دے ـ اوکه دا هم نهٔ وی نو بس خدائے مومل وو ـ بابو صیب خدائے دِ ایمان نصیب کړه ـ په دے خبره دشندی ګل نه په هر ځائے خلق خفه دی ـ اوکه دا خوئ هم پکښے نهٔ وی نو بیا خوصغه دګوډرونو روبو ملک دے ـ په ټول بازار کښے دا سے بنائسته لختئ بله نهٔ وه خوخه اوکړم چه حرامی دے نه دخپل ځان په تاوان پوهیږی او نهٔ زموږ. خو عقوبت یه ئے انجام خراب وی ـ"

دشندی ګل دکردار کومه نقشه چه لیکو راکیښلے ده دهغے په رڼا کښے دشندی ګل په حقله افسانه نګار دخوک چه ځان په خپله هم په بیانیه انداز کښے دعینی چشم دید کردار ثابتوی) خپله رائے داسے قائمه کړے ده چه دلیکو په خبرو باندے زما دشندی ګل سره دیو قسمه همدردی پیدا کیږی ځکه چه د فاضل افسانه لیکونکی په خیال ـ

" هغهٔ کښے دنورو بازاری لختو په شان خبرے نهٔ وے ـ هغه فنکار دے او دخپل فن دقدردان په لټون کښے ......

شندی ګل فن کار دے ـ پښتون فن کار ـ خوددار او غیرتی فن کار ـ"

اودشندی ګل دتربناک او خوددارہ فطرت دغه کوبنه هغه وخت نوره هم

---

لے شندی ګل ـ اشرف حسین احمد ، ص ۲۳

اوبرلينې کله چه هغه د بناد د دمانو اولختو استاد ميرا خان د فن په کوروتو او کوز اوپاس باندے پوهه کړی اوبنهٔ ئے ميقل کړی - وے بيا هم د شندى ګل په رويه کښے څه خاص فرق رانهٔ شى - ترڅو چه د ميرا خان غوندے کوږ و هم دهغه په ورانسے توره ډال اوغورزوی او دوباره ئے لمتو ته ورپه غاړه کړی -

د شندى ګل دخپل فن سره مينه وه خود هغهٔ نه راتلونکے خلق د فن قدردانان نه، دهغهٔ د بدن دغوښو اوبدی وی - او دغه احساس شندى ګل هم د فن څخه بيزاره کړی او هم له سوداګرو - په دے لړکښے د شندى ګل خپل خيالات داوی -

"په پير باباسے څوګند دے - په دے تهول بازار کښے زما څخکښے د ټوک پيشواز وراغوندی - وے دچا په څخکښے ګلدا روګرم - د دوئ په څخکښے چه زما دغوښے اوبدی تبدی دی ؟"

حقيقت دا دے چه د شندى ګل غوندے څو داره او غيرتی بنديان په هغه چاپيرچل کښے پاتے کيدے نهٔ شی دکوم نه چه د رحيمی غوندے ليوانتاوکوځی - او د رحيمی د لاسه د شندى ګل حسرتناک انجام يقينی چه بنده دخپلے معاشرے د نوے لرے او مخصوصے ګوښے ته هم په فکر کړی د کومے په لمن کښے چه د شندى ګل غوندے دبے شميره بے اسرے هدکانو تنکئ ځوانئ د خپل لوغرت احساس په انګارونو ورتيږی -

د اشراف شندى ګل په "مورے او ششتے" کښے د تاج ګل په جامه کښے لږ پسه

---

له شندى ګل - اشراف حسين احمد ص ۳۰

لے رحيمے دخپل هوس په خاطر په شندى ګل زور زياتے کوی او چه هغه ورته سرينکته نهٔ کړی نو په صباله يے خلق مربيا مومی -

بدلو رنګونو کښې راوړاندې شي ـ

په حقیقت کښې مورے او شششتے ( افسانه ) د لختئ سیریز ( سلسلے ) پر مخ تګ معلومیږي ـ د وا قعې فضا او چاپیرچل ، سره د ضمني کردارونو هم هغه د شنديګل ښکاري ـ خو تاج ګل د لته د شندي ګل د تصوير د دوېم اړخ په دود موږ ته ځان ښائي او د دغو دواړو کردارونو یا تصویر د دواړو مخونو د موازنے فریضه هم ښائسته اشراق په خپله ادا کوي ـ

" زما تاج ګل ډیر هوښیار او چالاک دے ـ خو ستاسو شنديګل ډیر ساده بوده وو ـ هغه مظلوم وو ـ ناتوان او لاچار وو ځکه سره د فن هغه به د خپل فنکارانه چور لکونو سره په خپله هم چورلیدو ـ زما تاج ګل مظلوم دے نه ناتوان ـ شنديګل .... ستاسو د شندي په زړه کښې د دنیا...

.... د دنیا د خلقو دپاره د نفرت او د کرکے سیند په چپو وو ـ هغه مایوس وو ـ د هرچانه .....

زما د تاج ګل په زړه کښې نفرت او کرکه څووه ـ ولے هغه د مایوسۍ او د نامرادۍ په ګرنګ کښې لکه د شنديګل اړتاؤ نه وو ـ ستاسو شنديګل د لته خبره چه ګډا له په تللو نو دا سے ښکاریدو لکه چه ستي کیدو له روان دے ـ په تندی به ئے دولس بجاؤ وے ـ ولے زما تاج ګل به دا سے تلو لکه زلمے ناوے راوستو دپاره روان وي ؐ "

او هم دغه د خپل چاپیرچل په حقله د دواړو کردارونو د دیو فرق وو چه یو د چاپیرچل کوے ته کوز شو او ځواني مرګ شو او بل خپلو مخالفو قوتونو له ماتے

---

له مورے او شششتے ـ قند مردان افسانه نمبر ص ۸۴

ودکړه - اوهغه پرازه ' چاچه په تاج ګل ته دا قسم له پیغور و نه ورکول چه "د تاجه هم شو - تاجه چواړه شو - تاجي پښتو پرېښوده" - په آخرکښې دے حال له راغے چه تاج ګل به کله دکلي په حجره کښې چور دکونه خوړل او "دهغه دتندي د بنګلي تندي نه کلونه تهي کېدل - د نرو نرو شوندو نه يې نرۍ نرۍ سره مسکا خوريده او شیرو استاد په دوپړۍ اخته وو - او پرازه چه د شیرو دادا په خوا کښې ګله د چیلمې ناسته وو خپلو شوندو باندے يې ګوتے را کښلے"[۱]

"شندي ګل" او "مورے او ښشتے" دا قسم له موضوع اګرچه د کلیم افساني ادب دپاره یوه بیخي نوے موضوع ده او دا کردارونه د افسانے په نړۍ کښې نوے او نا آشنا کردارونه دي او خپل انفرادیت لري ولے بیاهم د اشرف په فکر باندے د خپل وخت د اردو ادب د نومورو ترقي پسندو د ډله منټو، کرشن چندر او ممتاز مفتي دا وا قعه نګارۍ بربنډے حقیقت پسندۍ او بے باکۍ اثر غالب او جوت ښکاري ـ

خو دومره څه باوجود د اشرف انفرادیت د خپلو موضوعاتو په جدت او مخصوص چاپېرچل کښې ډېر ځلانده لیدے شي او د خپلو موضوعاتو د چاپېرچل او عمومي فضا په حقله د اشرف د ډورے علاقے او د مشاهدے په صداقت کښې څه شک نشته ـ خو داهم یو دا ګېز حقیقت دے چه د دے افسانو ټول اباد دے د جنس په ستنو ولاړ دے - د "شندي ګل" او "مورے او ښشتے" نه علاوه په نورو افسانو لکه "تور ګوټمال" او "شاګي" کښې اشرف په ډېره بے باکۍ سره د جنس موضوع چېړلے ده - او هم څو که افسانه لیکونکې په خپل نیت کښې په دے غاړه د قلم سوکه په معاشره باندے تنقید او طنز ته تیره کړي ده خو په دے عمل کښې د هغه رویه د خپلو کردارونو سره دومره اوږه

---

ـه قیس صدراف افسانه نمبر ص ۱۶۱

ACKU

اړح واخلي چه معصوم خپلو لوستونکو د هغې همدردۍ د حاصلولو په زیارکښې ناکامه شي کومه چه دخپلوکودارونو سره لیکونکے په خپله لري او دد ے واضحه ثبوت د شاګټۍ کردار دے ـ

شاګټۍ نه محض په دے وجه یوه اوچته بنځه ویېل (چه هغه دګل صنم غوندے بد طینته اوخودغرضه انسان سره په دے خبره یارانه پریږدي چه هغه دخپلے زخوږے چنغلے نه بےپروا اوبےخبره ګرځي ) د افسانے لیکونکي خپله ذاتي رائے اوعقیده خوکیدے شي ـ ولے د لوستونکو په وړاندے محض په دے بانده د شاګټۍ کردارهغه ناولي او ناخوښي اړخونه نهٔ شي و ینځلے دځانه پهٔ بدل چه هغه په جار د حرامو رزق خوري ـ

دیوے پیشه ورے او بد معاشے ښځے په کردارکښے ښاغلے اشراف دیوبلے مظلومے ښځے دپاره د همدردۍ یوه رو ښانه تحریکه خو په ګوته کړے ده ـ او په دے عمل کښے هغه دګل صنم ذهنیت هم بربنډ کړے دے ولے دشاګټۍ د بدکردارۍ د جارې ساتلو دپاره ورسره هیڅ منطق او اخلاقي جواز نشته ـ

او د افسانے په انجام د لیکونکي له خوا دا تبصره ښځې یوه فن کارانه مبالغه ښکاري ـ

"دا زخرګند شو ـ زما زړهٔ کښې دګل صنم دپاره نفرت اوکرکه پیدا شوهٔ ـ او شاګټۍ زما په خیال کښې لکه د سپین ګلاب په مسکا راغله ـ شاګټۍ واقعي ډیره اوچته ښځه ده ـ ډیره اوچته ـ"[1]

ستر شاعر نقاد او افسانه نګار ښاغلے قلندر مومند د مورے او شفقت په مقدمه کښے د شاګټۍ اوګل صنم د کرداری تجزیے په حواله خپله رائے دا سے څرګنده وي ـ

---

[1] قند مردان جلد ۲ ګنړه ۱ ـ ۲ ص ۷۲

" اخلاقي لحاظ سره موږ ته شاګړي او ګل منم یو شان ښکاري ـ لا بلکه د شاګړي کردار زیات تور ظاهر کړے شوے دے ـ نو د شاعرانه عدل تقاضا خو داده چه زیات بد اخلاق کردار زیات او رټولے شي او زیات ترنفرت پیدا کړے شي ـ که چرے شاګړي د کردارونو هغه سلسلے سره تعلق لري کوله چه فیلډنګ د تام جونز نه د منتهو تر ایشرستګه دا رسیدلے ده نو بیا خو موږ په دے پړه یو چه هغے سره مینه اوکړو ـ خوحال داسے دے ـ دد ے په مقابله کښے داسے ښکاري دکه چه د ګل منم تطهیر شوے وی او هغه د خپل زور اخلاقي مقام نه ترقي کړی وی نو په داسے حال کښے هغه سره نفرت اوکړه څه جواز لري "[1]

د اشراف زیاته د لچسپي د خپلو کردارونو سره وی اوکوشش یے داوی چه په څه نه څه طریقه هغه د خپلو کردارونو په سیرتونو کښے د انفرادیت څه نه څه کوشش رابرڅیره کړی ـ دا رویه خو د شندی ګل ـ تاج ګل ـ او و لایتئ ترحده کامیابه ښکاري ـ خو د هغهُ په نورو کرداری افسانو کښے عموماً دا یو ناخوښه تکلف معلومیږي ـ او دا هغه عمل دے چه زموږ د نوی دور ځنو افسانه لیکونکو د اُردو د ترقي پسندو په پیروئ کښے خپل کړے وو ـ خو داوړه حقیقت پسندئ او نیمه خوا ترقي پسندئ د دغه جذباتي عمل نتیجے کله کله ډیرے خرابے هم راوخیژی ـ

او په دے باره کښے د اُردو ژبے د نوموړی نقاد ښاغلی سید احتشام حسین د یوے مقالے دا ټوټه د کتو جوګه ده ـ

"د زموږ افسانه لیکونکی خو کله کله د پیچیدګونه د بچ کیدلو دپاره د

---

[1] مقدمه "مورے او شګے" د اشراف حسین احمد، ص ي ـ ک ـ

[2] اقتباس ـ افسانه او حقیقت ـ سید احتشام حسین ـ ترجمه قیم الدین ظاهر ـ قند مردان جلد ۳ ګڼړه ۱ ـ ۲ ص ۳۴ ـ ۴۴

هغه سرسري خيالاتو او جذباتو عکاسي شروع کړي د کومو لوړ والے او اهميت چه هميشه شکي وي - او کله کله خو دوئ د حقيقت سند و د بنيادمو په داخلي ژوند کښے کټي - او ډير زر دوئ د لاشعور په توره تياره کښے لاره ورکه شي - دا سے خلقو په خيال کښے شعور ډير کم او لاشعور ډير زيات د انساني ژوند تربيت کوونکے دے ----

د بنيادم جنسي ژوندون د ډيرځه باوجود هم څه نه دے د انساني کړه وړه ذمه دار صرف جنسي جذبه نه ده - دے دپاره هغه خلق کوم چه د جنس متعلق نيک تنه د حقيقت نګارئ نوم ورکړي - په درسته لاره نه وي - دا سے ښکاري چه د حقيقت ډير اړخونه هغوئ نظرانداز کړي او دا سے دوئ د سماجي حقيقت نګارئ نه ځان نورهم لري کول غواړي ".

دا شراف په افسانو کښے د ولايتئ ماحول او کردار د هغه د افسانو د عمومي مزاج نه بدل ښکاري دا په قبائيلي چاپيرچل کښے جوړه شوے افسانه ده - دا دے تکنيک نوے او د پلاټ د جوړښت لاره ئے ډيره ګرانه ښکاري خو ليکونکے په ډير په احتياط پورے وتے دے - په دے افسانه کښے د تجسس او تعطل (Suspense) رنګ جوت هم دے او ژور هم -

د افسانے په شروع کښے د ولايتئ د کردار سره د ليکونکي د حد ورتيره همدردي ورپسے د ليله او بے ماحته تکلف ښکاري خو افسانه چه څومره په مخکښے ځي دا قسم له سوچونه په شا پاتے کيږي - او هاتے په وخت د املیت شوي ناڅاپي دومره سيوا شي چه په زړه د جذباتو يوه تيزه سيلئ تيره شي - او د غه طوفان چه تم شي - نو په حافظه کښے د ولايتئ د کردار نه ورانيدونکي بنا شي

پاتے شی ۔

د بنا غلی قلندر مومند په خیال په دے افسانه کښے د ځانګے د کردار سره د افسانے د بیکوښکی له حده ورتیره د لچسپی یو ناخوښی افسانوی عمل دے ۔ او دے عمل د ستاپیلی نقاد په خیال کښے د افسانے د تاثر وحدت ته زیان ور رسولے دے ۔

دوی ولایتئ کښے که چرے د ځانګے په کردار دومره رنړا نۀ وے اچولے شوے نو دا به د اشراف په عظیمو افسانو کښے یوه افسانه وه — حقیقت دا دے چه د دے افسانے جوړښت بے انتها مشکل دے ۔ او بغیر د ځانګے د کردار د وضاحت نه د ولایتئ د کردار وضاحت کۀ ناممکن نۀ وو نو بے حده ګران خو ضرور وو ۔ د ځانګے او ولایتئ (مور او لور) دے کرداری خانه جنګئ یقیناً د افسانے د تاثر وحدت مجروحه کړے دے ۔ خو د هغے د پاره بیکوښکی دا التزام ساتلے دے چه د افسانے اخر کښے ئے د اے لمحے شدت زیات کړے دے ۔ او ځکه که هر لوستونکے نقادی شروع نۀ کړی ۔ نو دا افسانه په ورشه د جذباتو د شدت د ماحول د عکاسئ او درد له اعتباره بهترینه افسانه نګاری.[۱]

## ګل افضل خان

د کلی وال چا پیرچل د ساده باده فضا نه چه ګل افضل خان څومره په ارت مټ افسانوی رنګونه راټول کړی دی هغه هم د هغه برخه ده ۔

په د غه ساده ماحول کښے روسید وسنګی ساده شپیل او کابزۀ وابزۀ خو ایسغ نیسغ کردارونه په دومره ژوره مشاهده کښے سره د جذباتو د تفصیله ورانسے

---

[۱] مقدمه ، مورے او ښشتے (د اشراف حسین احمد) ص م ـ ن

کول دګل افضل د فن کمال دے -

د هغهٔ د افسانو اډانړه هم په د غه شهل ګهل چاپیرچل کښے د ناستو ولاړو بنیادمو په مشاهدهٔ او مطالعه باندے ولاړه ده - د د غو کردارونو د نفسیاتو د هغوئ د لوغړنو جذبو او پادیدلو احساساتو عکاسی هم د هغوئ په ژبه او لهجه کښے پیش کول دګل افضل خان د افسانوی زیارونو شناخت دے - د غه لید لی کتلی کردارونه دخپلو مخصوصو حرکاتو اوکړو وړو سرهٔ د هغهٔ د افسانے په چوکاټ کښے داسے فټ (روغ) راځی چه یو بخیه اخوا دیخوا کیږی نه - او دا ځکه چه د هغهٔ واقعات پیلاټ، کردارونه او ماحول واړه د حقیقت ژوند سرهٔ نزدی او ژوره علاقه لری -

ستر شاعر او افسانه لیکونکے سیاغلے مراد شنوارے دګل افضل خان د افسانو د مجموعے کړے لارے په پیژندګلو کښے په دے حقله لیکی -

"د ګلؔ افضل خان په افسانو کښے تهول کردارونه زموږ د خپلے پښتونخوا بلد بلد او اشنا اشنا کردارونه دی - دے کردارونو ته چه کومے لاسے کښالے راپیښیږی هغه هم زموږ د عام ژوند لانجے دی - دده د کردارونو ژبه لکه د ځنه نوږ و افسانه ځکارانو خالصه ادبی نهٔ وی -"

د سیاغلی مراد شنواری د دے وینا په مرسته د کښے دا اضافه به هم زیاتے نهٔ وی - چه دګل افضل خان کردارونه یواځے د ماحول او ژبے ترحدهٔ نه بلکه د نومونو پورے یوه حقیقی او پښتینی فضا وړاندے کوی -

په کلی وال چاپیر چل کښے دا ګیر دا کردارونه کلهٔ په کتو کښے هرڅوموره ایسغ نیغ سیکاری خو د شعوږ په چپه یے هم هغه رنګ شاوُلے واوُلے غورزنګونه سیاځی

---

ا کړے لارے ګل افضل خان ص ۲

کومې پېښه د کړدې نړۍ د بنیادمو د بنیادي جذبو سره تعلق لري.

د گل افضل خان د افسانو دواړه مجموعې "کږې لارې" او "داغونه" هم دغه قسم کردارونو د نقشونو هنداره دي -

د "دارو بوتل" کښې د ښارلې پښتني معاشرې د اوسېدونکو دېمتې په حقله د مخصوصو رویو او نفسیاتو مطالعه د "غنم رنګ" په کردار کښې په زښت ښکلې او د پښتونې رنګ کښې وړاندې شوې ده -

د مینې دومره جذبه چه هغه د ځان د پاره خوښوي او په دې خبره کښې هم تیار نه محسوسوي چه خپله خوږه غنچه د ډیبارې په دور خپلې معشوقې له لیږدي را لیږدي ولې چه څنګه وخت هغه ته معلومه شي - چه هم دغه پاکه جذبه د هغه خوږه غنچه د تور زړه ل د پاره لوی نود نه خبره بیا د غنم رنګ د فطرت نه خلاف ښکاري - او دغه حالت د هغه د ز غم او برداشت نه بهر شي - او هم هغه تور دل د چا د خوږه (غنچې) سره چه هغه د مینې رشته قایمه کړې وي چه د غنم رنګ په مخکښې د غنچې د عاشق په څېر راشي نو هغه یې د مرګه تیر شي - او څنګه وخت چه هغه د مرګ په تبه پرتې خوږه له د دارو بوتل په لاس راشي - او د هغې په خوا کښې د ناست تور دلي په ښکالو پورې شي نو د دارو بوتل د هغه د لاسه وغورځیږي او د هغه لاس په تماچه سور شي - او د پښتني هوډ او غیرت په سیلاب کښې هم د خوږه مینه لاهو شي هم د وردر -

د گل افضل خان په کلي وال ماحول باندې بنا شوو افسانو کښې "سورچیت" یوه ښالي افسانه ده - په سورچیت کښې ممنی یوداسې کردار وي چه هغه د خپلې نامې په مناسبت د بنیادمو د بقې د لې سره رشته لري چه د مهذب (Civilized) نړۍ په نظر کښې نه څه ځای وي نه مقام - خو د "ممنی" د کردار د تسل نه چه افسانه

پیکوونکی کوم مواد را کښتی دی۔ هغه زړهٔ را کښونکی هم دی او زړهٔ سیزونکی هم۔

د ممتی په زړهٔ کښې د "دولا" بیمارۍ سره بې کچه مینه او اخلاص د لوستونکو د لچسپۍ ځان ته راوپاروی چاچه بې دغه غرض او لالچ نه د دولا د بته غاړه را سے راتینګه کړې وی لکه چه د غهٔ ډېرو ندیوه قیمتی پسکه وی۔

د "ممتی" په پښتو کښې د "دولا" د بته دپاره خشاک را تولوی او بیا چه "دولا" بته ته کیښتی نو دے ورته اوربلوی۔ دا د "ممتی" د دولا سره د یارۍ لوغرنه چرۍ به وی چه د هغه د بته اورلړونې په دومره مینه را تینګ کړے وی کنی -----

" په ممتی خپل پلار قلند ر کلال چپلے تنرۍ شلولے وے چه کنی یوه ورځ خوبه را له د مه را کړی او د لونښو منګو به یکه به ښهرته اورسوی۔

ولے ممتی هغه کړ ه ونه وه چه جرړے یې کور او سور ے یې بهروو"[ل]

د د غه ساده بے تامته او بے قیمته انسان په زړهٔ کښې هم د مینې او اخلاص خزانې پرتې وی -او په کوم چاپیرچل کښې چه هغه اوسیږی ځان د هغې یوه اهمه تو ته کڼری -

د شیبے چه د "لنډی" "توری" په حجره کښې د منګی رباب کوم محفل کیږی نو ممتی د دغې محفل یو لازمی غړے وی او په منګی وهلو کښې د هم چا نه میدان وړے وی -

د ممتی د کردار د تبولونه د لچسپ او حیرانوونکے اړخ هغه وخت څرګند شی کله چه د هغې په زړهٔ کښې د سور چیت د جامو د جینئ سره مینه پیدا شی - د غه جینئ بته ته د نیتو دپاره راځی او د غه جینئ ممتی ته هم په هغو سترګو کتل کوی په کومه

---

ل کږے لارے ، گل افضل خان ، ص ۰م

چه ورته مځکې ګوري ....

د دغه نه پس د مځکې دپاره د بټ غاړه دګودر غاړه شي خو یوه ورځ د مځکې یار دولا یتیارې د سور چیت والا جینئ نه خوځ وا تخلي او مځکې د دولا په دې ورېنا داو لړزیږي . "د ځمکې په تا جو حق ورک نه دے" او د دغه ورځې نه پس مځکې ته خپل یار د یو بادار او رقیب په څهره کښې ښیسے شي . ولې بیا هم دیارۍ لارښري. او هم په هغه رنګ د بټ او یتیارې خدمت جاري ساتي تکه چه اول خوه دولا په زړهٔ کښې غلا پټه وي او کله چه هغه مځکې په ډیره چالاکۍ او پسته خوله د بټ د غاړے نه جوا ئې کړي نو د مځکې د اخلاص نه ډک زړګے چوري چوري شي. او س د هغه دپاره د بټ خوا ته د ا ښختیدل د غیرت او د ناسئله جوړه شي او د بټ نه لرے پاتے کیدل هم ورته قیامت وي . خو د مینے او غیرت په د غه ظاهري ساده لوبه ( خو په حقیقت کښې عظیمه المیه ) کښې مځکه خپله مینه داؤ کړي . او د غه شان دا کردار تر عمرهٔ عمره زمونږ په ذهن کښې ژوندے پاتے شي .

د دولا او مځکې د کردار ونو په تقابلي جاج کښې یو خوا مځکې دیو ساده زړې . ا یسغ نیغ ، اخلاص مند ، پت پرور ، مینه ناک ، صبرناک او ورسره دیو حساسه زلمي په ګڼو ویږو رنګونو کښې مونږ ته ځان ښائي .

او بل خوا دولا دیو کاروباري ذهنیت لرونکي او استحصالي قوت په دود د مځکې د تنکو ارمانونو مخ نیوے کوي . په دا سے رنګ چه هم دیوے طبقے نه زا ئیږېیږي لي بنیادم په دوه د لو کښې او ویشي . او په دے ځاے د بنده په ذهن کښې د قلندر مومند د افسانے " لرګے " دغنم رنګ او داؤ د نقشه خوره شي . چرته چه هم د

---

له کړیږے لارے کمال افضل خان ص ۴۴

یوګور او سید وتکي په دوو کورکو او دوو طبقو کښې اوویشلے شي ـ او دخدا ے بخښلي دوست محمدخان کامل وینا کومه چه یې د ګجرے د "شرم" نومے افسانے په حقله کړے ده ـ هغه په دے دواړو ماخولونو هم ډېره کره راځي ـ

چه " دقلندر افسانے مرام د (اولس) عوامو په مرسته کښې وي او دد ے افسانے دقلندر نیازبین عوام دي "[1]

او د سور چیتي دولا هم د اولس د لاندینۍ یا عوامي طبقے سره تعلق لري خو د خپلے فطرت له خوا د بد نصیبي ځمي دپاره هم هغه و یلی (وران کارے) شي ـ

## ډاکټرشاه افضل

خدا ے بخښلے ډاکټرشاه افضل دګل افضل خان ورور وو چه په نو ے ځوانۍ کښې په حق ورسید ـ

د ډاکټر د پیښے سره شاه افضل دپښتو افضے په ځنډه ستر ګه کښې هم ډیر کار کړے دے او دخپل وخت دپښتو په نوموړو مجلو کښې افسانے چاپ شوي دي.

ښاغلي شاه افضل هم په کلي وال چاپیر چل کښې خپلے افسانے لیکلے دي او دخپل افسانه نګار ورور ښاغلي ګل افضل خان سره نږدے مشابهت لري ـ

" مشالے " د ډاکټرشاه افضل په پښتني کلي وال چاپیرچل کښے بنا شوي یوه نمائنده او معیاري کرداري افسانه ده ـ دا افسانه ډېره موده وړاندے په قند مردان[2] کښې چاپ شوے ده ـ

---

[1] پیش لفظ ګجرے دقلندرمومند ص ـ ص [2] قند دوېم دور ګڼه ۵

مشالے یو داسے کردار دے چه هغه زمونږ په کلی وال ماحول کښې ځائے په ځائے لیدے شی - خوشحال افضل چه دے کردار کوم ژوره مطالعه کړے ده - د هغې په نتیجه کښې پښتو افسانے ته یو مؤثر او جوړ کردار په لاس ورغلے دے - مشالے د کلی د خانانو د بدمعاشانو نوکرانو د هغې د لے سره تعلق لری په چا چه د خانانو د خانئ رعب جوړ وی - او د غه مشالیان د خان د مرضئ او خوشحالئ په خاطر په هیڅ اسریه نه کوی - دا سے سر بیتنی ځوانان عمرله خپل سرونه په تلی کښې کرځوی او د خپلو خودغرضو او ځان ته خو نبو یادارانو د ناولو مقاصدو د سرکولو دپاره روئ د هرقسمه ظلم او زیاتی عین عبادت ګنړی -

مشالے هم یو داسے کردار دے - چه د هغهٔ د ژوند نه څه تیاکا مرام وی نه مقصد - نه ئے د کور درک لګی نه د اور - نه ئے مور پلار معلوم وی نه ذاوزاد - د هغهٔ رضا د خان رضا وی او د شا غلی شاه افضل په الفاظو کښې -

"او دا هم مشالے وو چه د خان د کو نبتی ملا پښتی شو او د هغهٔ په توری ستړ کښې یئے د خپل ستړ په کړه یو ځل بیا لګه د شامار چڅه راپیدا کړه - او د هغهٔ و سمه کړی برېتونه چه د خوا وُ شا خانانو د زوره په تیتیدو وو - د مشالی په سپین پلن مخ د ګنړو تورو شورو د برکته لګه د لرم د لشو او دریدہ ۂ"

مشالی ته د خپل شخصیت د رعب او خپلو متو د زور احساس په خپله هم وو - هغه په خپل ګذار باند ے پوره پوره غاوره وو - مشالی د مرګ نه هیڅ ویره ترهه نه کوله ځکه چه د هغهٔ د ژوند هلو څه مقصد نهٔ وو - د حتې ژوند څهٔ مقصد

---

ه قند مردان دویم دور ګنړه ۵ ص ۲۲-۲۳

نهٔ وو ځکه وژنه دبل وژل هم هغهٔ وخت ښه نهٔ ښکاريده .

هم دغه وجه ده چه شالے دهغے ناکردے د سرکولو په موقع د سرټيټوب په احساس کښې ډوب وياړ محسوسوي .

دو دموږ غيرت کښې به هم رانه خلاص نهٔ شي . د شالی ډک ټوپک چرے ډک کالتوس نه دے راغورزولے "[1]

خو دے به لارے شوی کردار د ذهني او نفسياتي اړخ کړي په شان چه کوم اولسي عوامل کارکوي هغه د افسانے په وروستي برخه کښې شاه افضل خپلو لوستونکو ته ډاګيز کړي دي .

شالے ځنه موده وړاندے په نوځ کښې برتي شوے وو او دوه کاله پس چه لام ماتٌ شو او هغه بيرته کلي ته راغے نو د هغه معشوقه جماله د خان د هوس ښکار شوے وه او هم په دغه غم کښې په نري رنځ مړه شوه .

دد غے واقعے نه پس شالی کور کلے پريښود . هغه د ټول انسانيت د وجود نه زړهٔ ماتٌ شي او کوم بدل چه هغه د خپل کلي د خان نه وانهٔ خستے شي هغه بدل په ټول انسانيت پورے وګرځي او ددغے نه پس چه هغه د بلے علاقے د خان سره نوکر شي نو په انسانانو باندے په ظلم زياتو کولو کښې د هغه زخمي زړا ته تسکين رسي . د هغې پاپه سينه کښې چه به بے ګولئ سرے کړے نو د شالی د روح تنده به پورے ماته شوه .

خو د لاشعور په چپو کښې ورک اوبه دړکه شالے چه کله د شعور او ادراک برېدونو ته مخامخ شي او د ستړګو نه ئے پړدے لرے شي نو هغه خپل د ژمن وپيژني .

---

[1] قند مردات دويم دور ګڼړه ۵ س ۲۵

ACKU

د شالی د کلی خان چه د هغهٔ د موجوده یادار په څهرهٔ کښے د هغهٔ ځه له راشی نو هغه ته خپله "جماله" د "مهری" په شکل کښے وردیږی - مینه په خواهم قتل شوے ده او مینه نن هم قتلیده - او شالے د دیر سوچ نه پس په دے نتیجه ورسی چه دهغه اصل دښمن هغه وحشی دے کوم چه د بے لوټه ینے د معصوموخن بو، تنکو ارمانونو او د انسان دبنیادی حقو نو قاتل دے -

او دغه وجه ده چه د سترګو په رپ کښے دنیا بدله شی - د شالی په کردار کښے یو ستر انقلاب راشی او د کوم خان دپاره چه به هغه د بنیا دمو په سرونو لوبے کولے نن هم په هغه خان دا چل شو - او د هغه مظلوم او بے اسرے جینئ دپاره چه د دهٔ سره یې هیڅ رشته نهٔ وه - ځکه چه د شالی په وړاندے اوس د ید ل یو بشپړ مفهوم پروت وو - دهغهٔ په خیال کښے اوس د ژوند یو بښکاره مقصد موجود وو - "خان به بله جماله کورته نهٔ بوځی" [۱]

دا یوه فقره یوه داسے ایښه شی چه دشالی دبدل شوی کردار داره تجزیه پکښے بریښی -

د شالی په نزد اوس د دنیا حرف ییغله جماله وه - ذاتی او انفرادی یغے یو افاقی رنګ اخستے وو خو د دنیا په سترګو کښے دا یو نا شونے کار وو - هیڅ نا ممکن ځکه چه "هتکړئ په لاس شالے دیر وکسانو ته دهغه مار په شان ښکاریده و چا چه خپل یارو په خپله چیچلے وی" [۲]

خلقو که داسے سوچونه کول نو ګرم نهٔ وو خود سوچ هم پکار دے چه مار په یارو هغه وخت ګنډ ار کوی کله چه د یا رو دم او ده بیکاره شی -

---

[۱] ، [۲] قند مردان - دویم دور - ګنړه ۵ ص

چه د شالي د شعور سترګے وغړيدے نو د خان د طاقت د اثر سره د هغهٔ د عيارئ چارو هم تهوټے تهوټے شو ـ

# ساغر اپريدے

د پښتو افسانے په رنګينه څهرهٔ کښے يو شوخ او بريښيدونکے رنګ د قبائيلي افسانے هم دے ـ او په قبائيلي چاپيرچل باندے چه کومے افسانے ليکلے شوے دی د هغے په موضوعاتو واقعاتو او کردارونو کښے يو عجيبه غوندے ندرت، تازګی او نوے والے محسوسيږی ـ زموږ کوم ليکونکو چه په قبائيلي رنګ کښے ډيرے کاميابے او معياری افسانے ليکلے دی په هغوکښے اکثريت په خپله د دغو غرئيزو او کسکرو سيمو په زادهٔ او تازه فضا کښے اوسيدونکی ليکونکی دی ـ

په قبائيلي رسم ورواج باندے د افسانوی ذيارونو ابتدا د ازادئ نه مخکښے بيا غلی امير حمزه خان شنواری کړے ده ـ په هغے پسے د هغهٔ د نوموړی فرزند مراد شنواری نامته راځی ـ او د آزادئ نه پس چه په دغه مخصوص رنګ کښے کوم افسانه ليکونکی په باقاعده ډول د دغه طرز کاميابی او د فن په تول پوره افسانے اوليکلے هغه ساغر اپريدے دے ـ

[illegible] ساغر د نوی دور هغه افسانه نګار دے د چا فن چه نه يوازے د دغه [illegible] د موجود پښتو افسانے دغوندے پسنګے د پاره د فخر او وياړ مقام [illegible]

[illegible] لی چاپيرچل ته چه ساغر اپريدی کوم کردارونه راټول کړی دی [illegible] خپلو افسانو کښے کوم فنی ژوند ورکړے دے د هغے مثال ډير کم

موندے شی.

"په دے افسانو کښے د تیراه د مختلفو دودونو دوا جونو نقشے په ښکلی پیرایه کښے راکښلی شوی دی ..... د ساغر په افسانو کښے د تیراه خپل علاقائی توری په ارت متې استعمال شوی دی - دغو تودو افسانے د واقعاتی او نفسیاتی اړخونو په څلولو کښے نمایان کارکړے دے."[1]

په قبائیلی ماحول باندے بنا شوو افسانو کښے د ساغر اپریدی "بد عمله" - "لوظ" او "باور" مشهور او ښه افسانے دی.

خود هغه "تربور" د کردار نګارئ په توګه زمونږ په افسانوی ادب کښے یوه مثالی نمونه ده - په دے افسانه کښے د یوے او چتے افسانے ګلهے خو بیانے په ډیر ښکلی انداز کښے راتمولے شوی دی - پښتو افسانه، تحقیق او تنقید کښے د دے افسانے په حقله دا تاثر وړاندے شوے دے.

"تربور" د واقعاتو[2] د فن کارانه ترتیب، د پلاټ د استکارانه تړوت، د کردارونو د نفسیاتی رغوے، ساعت په ساعت د التوا (Suspense) د یوے نوے مرحلے د پیښے او د بیان د رنګینے او زړه راکښونکے زبے یو ښائسته مثال دے -

دا عظیمه افسانه یواځے د قبائیلی ژوند په افسانو کښے نه بلکه د پښتو افسانوی ادب په تاریخ کښے د یو لوړ مقام جوګه ده."

په تربور افسانه کښے د یوسف د خپلے ترلے سره واده او شی - خو د خاندانی روایتی ترکښئ او تربورولئ په صورت کښے انغښتی پښتنی جذبات د پیښځے او

---

[1] د خیبر ادب ص ۲۱۹ [2] قند مردان جون ۱۹۷۳ء - قند مردان اکتوبر نومبر ۱۹۷۳ء د قند مردان خصوصی ګڼړه ۹ - ۱۰

خاموشه پښتې ېینے د معصوموجذبو سره د اول نه تر اخره په تصادم وی ۔ د دښمن سره مینه اود ېینے سره تربور ولی د افسانے دوه لوئے کردارونه تر انجامه په یوه داسے نفسیاتی دوجاله کښے ساتی چه دواړه تر اخره پورے دا فیصله اونهٔ کړے شی چه دا مینه ده کهٔ نفرت ۔ خو لته چه د تفصیلی مطالعے دپاره د ساغر پرید ی کومه کرداری افسانه وړاندے کوؤ هغه د ساغر افسانه " ولور" ده ۔ دا افسانه په خپل مخصوص قبائیلی رنګ کښے یوه شاهکار افسانه ده ۔

په دے افسانه کښے د "تاجی" د هغه د ښځے "شفلے" اود هغهٔ د مور او ماما "ګل خان" واړه کردارونه په قبائیلی چاپیرچل کښے د پښتنی نفسیاتو حقیقی هنداره دی ۔ ددے کردارونو د رواجی او عمومی حیثیت سره خو اپه خواخپل خپل انفرادیت هم دد لچسپئ نه خالی نهٔ دی ۔ او د کردارنګارئ له رویه " ولور" زمونږ دافسانوی ادب یوه یادګاری او مثالی نمونه ده ۔

ګل خان دیوځدی ٔ عاوره ٔ خود غرضه ٔ ځان ته خوښی ٔ او جاهل انسان په شکل کښے ښئیلے شوے یو داسے غر ځنے پښتون دے چه هغه عمرله د پښتنی روایاتو توری په خپلو معنو کښے استعمالوی او دهرے پیښے او کردار رشتے دخپل غرض د محور نه چاپیره چورلوی ۔

او ښتیاخبره دا ده چه ساغر ددے کردارنه ډیر په استکارئ یو دلچسپ او وزن دار کردار جوړ کړے دے ۔ ګل خان په دے افسانه کښے د تاجی سخر ( او ماما) وی او کله چه تاجے دخپل ورور دا جو دوهلونه پس د هغه دوهونکی په ټپوس او تسکل تموپک په لاس بهر پټو ته د ګل خان مخے له راشی (ددے حقیقت نه بے خبره چه دراجو ځُله هم د ګل خان په شپیرهٔ په و یښو سره شوے ده ) نو ګل خان پرے داسے راوغرمیږی ۔

"[1] په مار لونړو ميړونه هسې هم ښه نه لګي - ليا پاتې چه توپک
دا پسې هم راواخلي - ورک شه مخ دِ پناه کړه کښي"....

تاجې ورته په ډيره پسته ژبه وائي -

[2] "ماما خفه کيږه مه - راجو چا ډيربد وهلې دې - او ما دا توپک
هغه پسې را خستې دې"

او د ګل خان جواب داوي -

"خُله سمه خوږوه - هغه ما وهلې دې - د پښتونو پړے ماتول"

تاجې په پښيمانه لهجه کښې وائي -

"زه بخښنه غواړم ماما - ماويل که بل چا وهلې دې"

خو ګل خان په چار په تاجي پورې خندا کوي -

"که زما په ځاے بل وے نو تا به يې څه کړے وے؟"

"ما به - ما به" ..... د تاجي دپاره دا جمله پوره کول ډيره ګرانه خبره
وه - ځکه چه د هغه په وړاندے د هغه جابر ماما او عزتمند سخر ولاړ وو - او
د هغې د کردار د نفسياتو او پښتني روايتو د احترام غوښتنے څه دا رنګ وے
چه هغه دِ نور وړاندے نه وے تلے -

خو ساغر ډير په مهارت د تاجي دغه نيمګړے جمله پوره کړه - د ګفتار په
تکو نه د کردار په حرکاتو -

---

[1] ولور قند جنوري - فروري ۱۹۷۳ء ص ۹۰

[2] قند ايضاً ص ۹۰

" تهوپک ئے په یو شوک اودے ته راوړو او په ډیرے خاطره غږیئے ورته[۱]
اوو ئیل "ما به دا کړی وو" - د غه وخت ئے خپله مور او ښځه سترګو ته
بو ځے او دریدے - دے کبرجن انسان خور او لور او په کینږ لوری
یو تیږیدونکے مارغه یئے د ماما په څنګ کښے راپریوته ."

د تاجی د کردار تقاضے څه دا دنګ وی چه هغه د چا خبره "قهر درویش
برجان درویش" او تاجے د جابر ماما قهر په یوه یے زبانه مارغه او یاسی -

د ګل خان او تاجی د کردارونو په حقله د ساغر دغه رویه هغه وخت
موثره هم واضحه شی - کله چه ګل خان د لور کورته ورشی او تاجےئے د تابعدارئ
نه په وړاندے پښیمانه او ټیټ سر ودریږی -

" ماما زه د هغے ورځے د غلطئ د رنه بیا بخښنه غوارم "

خو ګل خان دے خبرے ځواب په یوه کبرجنه خندا کښے داسے ورکوی -

" ته ډیر ښکلے تهوپک وُلے - خو زه اوس په هغو روپو پسے راغلے
یم - او که روپئ نه وی نو زه به دا غوا په کښے بوځم "

او ګل خان په پنځو سو روپو کښے د زوم د کوره غوا بیائی خو خپلے لور په دے
وینا هغه وخت ایسار شی -

" بابا دا غوا خو تا ما ته په برخه کښے راکړے ده - او اوس ئے هم
زما د سر په روپو کښے پستنه بیائے - دا خلق به څه وائی ؟ "

خو بله ورځ چه شغله خپل اخور ته او ګوری نو اخور تش وی او غوا شپه
په شپه ګل خان کورته بوتلے وی.

---

۱ قند جنوری فروری ۱۹۷۳ء ص ۹۲

تر ونغ خو دګل خان د کردار فرعونیت او جابریت ډیر شوخ او څرګند وی خو څه وخت چه د تاجی د مرګ حادثه را پیښه شی او خلق د ایرے نه راستانه شی نو هغه ناڅاپی د لور او خور خواله راشی ۔ او دغه ستغ او جابر ګل خان د غه وخت په منځ نیم شی ۔ د هغه د کردار فولادنیم ویلی شی خو نیم بیا هم په ځلے کښه پراته وی ۔

دو زړهٔ د تاجی په مرګ زهیریم ۔ خو مرګ حق دے خلاصے ترے نشته ۔ شغله کندره شوه ۔ او د ا څوانه نده ستا په کور سرنه شی پیښیدلے ۔ دا زړهٔ د ځان سره بیایم ۔ چه نوے روپئ مودرے د ولور راکړی دی په هغو کښے به تیے درستنے کړم ۔ دومره خویے ستاسو خدمت هم کړے دے کنه ؟[1]

دا هغه وخت دے چه ګل خان د پلار نټی ینے سیلاب د ځان سرهٔ په مخه کړو ۔ خو د او لاد په غم ژوبل انسان لاتر اوسه د خور سره د ضد مزے کلک نیولے دو ۔ او هم د غه د فولاد و جوړ انسان چه د خپلے لور شغلے د لاسه په پښتنی هو د کښے په دینو سور سالو د خور کور ته راشی او د خپلے ویرژ پلے خور د غه حالت ته وګوری چه د خپل ورور (ګل خان) ویرکوی او د هغه په غم کښے سرګودا شه او سرے سترګے و لاړه وی ۔ نو د هغه سترګے او غریږی ۔ تهویک ے د لاسه او غورزیږی ۔ د هغهٔ د و جود په سنګینو او کسکرو غرونو زلزله راشی او د ګل خان په شخصیت کښے پراته ټول فولاد ویلی شی ۔ د هغهٔ د کبرجن او غاضه کردار ملاکونتی شی او د خپلو غلطو او ناکړدو په اعتراف کښے په وینو سرهٔ لاسونه

---

[1] قند مردان جنوری فروری ۱۹۷۳ء ص ۱۰۱

خپلے خوښ ته وړاندے کړی۔

د تاجی کردار په یو شکل کښے د گل خان تضاد دے۔ او دا د فطری کردار نگارئ یو ښائسته مثال دے۔ چه د هر قسمه مبالغے او تکلف نه پاک وی۔ هغه یو داسے زلے وی چه د ماحولی بندیزونو په وړاندے زورند سرولاړ وی او د حالاتو سره د هر قسمه مصالحت او جوړے کولو ته تیار وی۔ په دے دوره کښے د تاجی د ننه پښتون کله کله د سر پورته کولو تابیا هم اوکړی۔ خو د شغلے سپیځلے مینے د تاجی په شخصیت کښے یو پراخه نرم والے (Sophistication) او لچک پیدا کړے وی۔

هغهٔ تر ډیره حده د حالاتو چپوته ځان سپارلے وی خو کله کله په دغو چپو کښے د لامبو کوا ښ هم کوی۔ او چه مجبوری راشی نو د تیراه په ځوکوا لوتونسکے مارغهٔ د پیښور میدانونو ته راکوزشی۔ او د خپل سخر د قرضے خلاصولو په غرض او د ننگ او ناموس د ږمنگے په خاطر تاجے په ورسک کښے خواری مزدوری شروع کړی۔ خو ځکه وخت چه هغهٔ ته د خپل تاکلی شوی منزل په وړرسید وکښے د ثوکا مو فاصله پاتے شی نو تقدیر هغه د هغے ا لیمټے سره مخامخ کړی۔ د کوم د مقابلے توان چه د بنده دوس نه بهر خبره ده۔

د تاجی مرگ دد ے افسانے د تأثر شدت نور هم سیوا کړی خو د تاجی غم لړلے انجام هغه پړاؤ دے کوم چه دا افسانه د خپل مقصد او منزل په لوری ور نیغوی۔ د تاجی مرگ د شغلے د کردار د تکمیل او جوړښت دپاره ضروری وو۔ ځکه چه هم دد ے واقعے نه پس مونږ ته دد ے کردار اصلی کرهٔ ورهٔ په او پره شکل کښے راوړاندے شی۔ د شغلے په کردار کښے سادگی، اخلاص، مینه، وفا او پښتو په ډیره ښکلی پیمانه او مناسبه توله راپوځائے شوی دی۔

ACKU

د هغې په وړاندې يو خوا ته د ښځې مينه وي او بل خوا د ضدي او جاهل پلار ذړيا تو مقابله - هغه نه خاوند پرېښودې شي او نه پلار غوړزولې شي - خو دا ميښت په دې سختو کړو کښې هم هغه د پوهې او مصلحت واګې د لاسه نه غورزوي - او په اکثرو موقعو هغه د ګل خان او تاجي تر مينځه د دړزو بند کار کوي -

د خاوند د مرګ نه پس چه پلار هغه د ځان سره کور ته بوتلل غواړي نو د يوې اميلې ښځې په دود شغله په خاموشۍ د خپلو تالا والا ارمانونو مسکن پرېږدي - خو د هغې پلار چه د مظلوم ښځې د تامّل په شکل کښې د هغې د سترګو د وړاندې او درېږي - نو بيا د پښتو او بت په وړاندې د دنيا ټولې رشتې باطلې او دروغ شي - او د تاجې پيشقوزه د خپل پلار په وينو سره کړې او د دې نه زيات ته اثر ناکه او لړزوونکې مکالمه په داداب په تاريخ کښې ډېره کمه موندې شي کومه چه شغله د دې واقعې نه پس د تاجي د مور په وړاندې وائي -

" هن مورې! دا غوا او تره - هغه راته په غلا بوتلې وه او ما ترې نه د پښتو او ننګ په ليار دا وستله " [2]

# هيش خليل او چارګل

چارګل د نوموړي محقق او شاعر ښاغلي هيش خليل د هغو افسانو مجموعه ده کومې چه هغه د کال ۱۹۶۱ء د ګرفتارۍ نه پس د خپل درې کلنې قيد په دوران کښې په مختلفو جيلونو کښې ليکلې دي - او وخت په وخت په مختلفو رسالو کښې چاپ شوې دي -

---

[1] قند، مردان، جنوري ۱۹۷۳ء ص ۱۰
[2] چارګل، هيش خليل، د خپلې خبرې ص ۶

دد ے افسانو ته بوده دخپل خواو ښاد خوږ دوترڅو حقیقتونو سره تړلے ده او کرداروته یۓ هم په خپل پښتنی چاپیرچل کښے ژوند ورکړے دے ، دده د کردارونه ښکاری خو د متصدیت او دیر جذباتیت رنګ پرے ډیر خور او غلبه ښکاری - له دے کبله په دے افسانو کښے په اکثرو کښے د تاثر اکائی دا نه وانه شی او کردارونه یۓ باوجود د خپلے ربتینتو بنیادونو د فنی حقیقت بلند وته په ختو ختو کښے وبنو ښېږی اوډا لمبه زمونږ د اکثرو مقصدی لیکونکو لمبه ده چه صغوئ سره دخپلو لوړو مقصد نو، پیچلو نظریو او فنی تواتونو د بیان په جذباتی دپیل دول ، منظرنګاری او مکالمه بازئ کښے دا سے بوخت شی چه یو خوا د افسانے د مجموعی تاثرو وحدت ته نقصان ورسی او بل خوا د پلاټ او کردارونو تر منځه څه منطقی او نفسیاتی جوړ او علاقه پاتے نۀ شی -

په دے حقله د اُردو یو نوموړی محقق او نقاد ښاغلی شبلی بی کام په خپله یوه لرغونه مقاله کښے د نن نه څۀ شلویښت کاله اګاهو د افسانه نویسئ د فن په لړکښے ډیرے ښائسته فنی او مقصدی اشارے کړی دی چه متاسفاً زمونږ پښتو افسانه لیکونکو کښے ډیرو په موجوده دور کښے هم هغه څیزونو ته توجه نۀ ده ورکړے -

ښاغلی شبلی په خپله مقاله (۱) " افسانه نویسی کے جدید رجحانات " کښے لیکی -

در آج سے پندره برس پہلے واقعہ نگاری افسانے کا ایک ضروری جزو تھی - لیکن افسانہ نویسی کا موجودہ رجحان یہ ہے کہ " ماجرا " کی بجائے انسانی زندگی کی کسی خاص حقیقت یا انسانی نفسیات کے کسی خاص نکتہ کو اپنے افسانے کا محور بنا لیا جائے اور اس کے ارد گرد خارجی یا اندرونی کیفیات کو اس چابکدستی سے بن دیا جائے کہ پڑھنے والے کو افسانہ نویسی کے تاثرات کا علم ہو جائے - ظاہر ہے کہ یہ ایک بہت

---

لہ افسانہ نویسی کے جدید رجحانات - عبدالرحیم شبلی بی کام عالمگیر لاہور - افسانہ نمبر ۱۹۴۱ء

بڑا فن ہے - اور جب تک انسانی نفسیات پر کامل عبور نہ ہو افسانے کو اپنے قابو میں رکھنا آسان نہیں ہے - جدید ٹیکنیک کے ماتحت نہ صرف ماحول اور کردار میں پوری ہم آہنگی ہونی چاہئیے - بلکہ افسانے کی ہر تفصیل کو مرکز کی طرف مائل پرواز رہنا چاہئیے - اِس مقصد کی تکمیل کے لئے ڈرامائی عمل اور نفسیاتی اشاروں سے کام لینا پڑتا ہے - لیکن افسانہ نویس کو چونکہ بہت سی باتیں مختصر الفاظ میں کہنا ہوتی ہیں - اِس لئے اشاریت اور ابہام کے بغیر گذارا نہیں ہوتا "

تو له بده مرغه زموږ افسانه ليکونکو ته دغه حالاتو نه شل کاله پس هم دغه رنګ مسئلے پيښے وی - ددے لويه وجه داده چه دغې افسانه ليکونکو د تکنيکی باريکو او (Treatment) په لوری څه خاص توجه نه ده ورکړے - ولے بيا هم د چارګل په افسانو کښے ځينے داسے افسانے شته چه په هغو کښے د مؤثرے کردار نګاری شعوری زيار شوے دے .

"د يوه سره شوه" د نباظلی هميش يوه داسے افسانه ده چه د هغې د پلاټ دائره هم منبوطه ده - مقصديت هم په کښے ځليږی او د چاپير چل او کردارونو په حقله د ليکونکی مشاهده هم ډيره رښتونے معلوميږی - ديوې اسرے يتيمے پيغلے " سانګې" سره چه د رياست په لويه مانړئ کښے کومه لويه سانحه اوشی - د هغې د اثر شدت په افسانه کښے ډير ډېره لړزوونکے دے - خو د دے افسانے د ډيرو خوبو سره اسيکی يوه خامی هم هغه ځائے ځايه د بے ضرورته بيان بازئ او شاعرانه استعاراتو استعمال دے د کوم چه د افسانے د فن ايجاز او اختصار اجازت نهٔ ورکوی -

د دے نه علاوه يو بله افسانه ... (sic) د دے بنيکلے افسانے د تعطل او لتوامزے هم هغه ځائے او شليږی کله چه ليکونکے د اکا هوند په خپل جذباتی انداز او شاعرانه منظر کشئ صراحة په دا که

کړی -

"د ساټګې د حسن شغلے لکه د زیړی ماذیګری تښتی شوے ، د هغه د شونډو او د هغې د انګو سرخی هم د غم تاؤ پیکه کړے وے وے اوس هم د ریاست په مانړو کښے د ګل ساټګې بغیر د رباب نغمے بے خونده او د شرابو دور بے کیفه ، بے نوند ، بے سروره وو - د غه محل ته د یوے شپے دپاره د ګل ساټګې ضرورت وو او بیا د چا د سرسورے چه هم نه وی ، د چا د کور دیوه چه مړه شرے وی - چا کره چه د تیرو نه سیوا نور څه هم نه وی - هلته دا ضرورت پوره کیدهٔ - دواړے جابړو لاسونو په مخکښے چه دیوے شپے د رنګینو دپاره یے د ګلو نوړا دیرے ساټګې ماتے کړے وی څهٔ لویه خبره نهٔ وه - هو ...... هغو شریفو ته چه د شرافت په مقدس نوم په سرو او سپینو پردو کښے د خپلو تورو او تورو ګناهونو د پټولو کوشش کوی -

کوم چه د شرابو په نوم حسینو پیالو کښے د خپل حیوانی خواهش د تسکین دپاره د غربت د غیرے د پاک توبے و سکه حسن د عصمت وینے نوشی"

او د دے دومره اوږد او تفصیلی بیان نه پس لوستونکو ته خود په خپله هم د ساټګې انجام معلوم شی هم د افسانے -

د چار ګل په افسانو کښے "مینه"[۲] یوه داسے افسانه ده چه په هغے کښے فن او مقصد تر اخره پورے ګوته نیولی روان وی - او دا افسانه د نبا غلی هیش د انسانی جینس ثبوت وړاندے کوی - په "مینه" کښے د ملالے په کردار کښے د یعقے او پښتو تر

---

[۱] چار ګل - هیش خلیل ، ص ۲۱ - ۲۲

[۲] ایضاً ص ۶۰ - ۷۳

منځه کشمکش په ډیر سنګین او ډېره پوره انداز کښې ښودلے شوے دے. د فرض او
پښتو په پښتو کښې چه ملاله په کومه ویارلے طریقه د مینے لوغړنه جذبه ایرے کړی.
هغه دیوے سیالے پښتنے دکردار ساهو شکاسی کوی.

"خور" "واصل" دکردار په مخکښې د ملالے څخره هم هغه وخت ته ښکاری
کله چه یو مئین زلمے د ماحولی غوښتنو په وړاندے خپلے معشوقے ته په نخو ویُلو
مجبوره شی. او که واصل د پټ اوننګ په لار کښې د دغے لوئے جذباتی قربانئ نه
پس جسمانی قربانی ورکړے هم نهٔ وے نو بیا به هم د هغه دکردار په لوړتیا او عظمت
کښې څهٔ فرق را نغلے نهٔ وے.

"[1]پټه ویشه" کښې دګل پانړے او ارسلا خان دواړو په کردارونو کښې د ستړے
کردار نګارئ ګنجائش وو خو د قیصے پلاټ چه په کوم غیر فطری او فلمی انداز کښې راڅول
شی د هغے دلاسه دیوے ښکلے افسانے تهوله اداړه راونړیږی. دکردار نګارئ له
رویه د چارګل په افسانو کښې "ننان بیان" د بنده توجه ځان ته راکاږی. سراښنجی یو
کرداری او دیو کردار افسانه ده. ننان بیان هم څو که زمونږ د پاره یو عجیبه او نا
اشنا (کم از کم د پښتو د چاپیرچل ترحده) غونډے کردار دے خو د چارګل په
نمونهٔ و کردارونو کښې کهٔ په ذهن باندے دخپل انفرادیت څهٔ پاخهٔ نقشونه پرېږدی
نو هغه هم دا کردار کیدے شی.

"ددے[2] ګمنامه انقلابی د سیاسی نظربندئ په شا چه کوم سیاست پروت
دے د هغے پته خو به دا فسانے لیکوال ته وی. خو په کومو شوخو
مستو او ټوندو رنګونو کښې چه ددے کردار کړهٔ وړهٔ زمونږه تر
وړاندے راځی د هغے د ستائیلو نه بغیر بله لار نشته."[3]

---

۱ چارګل - همیش خلیل ص ۸۲ - ۹۱
۲ ایضاً ص ۷۴ - ۵۹ ۳ پښتو افسانه محمد اعظم اعظم، ص ۱۶۰

# زیتون بانو

دپښتو افسانې په میدان کښې په زنانه لیکوالو کښې زیتون بانو د ټولونه باشعوره او باقاعده لیکواله ده - روزمونږ دافسانې یو مستند نوم دے -

دموضوعاتو په لحاظ بانو دخپل صنف دمسائلو عکاسي کوي - دهغې دافسانو ماحول هم دکور دے او هم کورنے ځو مسئلې ئې دنوي وخت مسئلې دي اوکردارونه ئې عموماً دساده او ښه لوکلي والو کردارونو په ځائے دنوي دورتعلیم یافته او سوشل پیغمانه کردارونه دي - دنګ ئې تر ډیره حده اصلاحي خو دتنګي تنګي رومانیت په احساس کښې ډوب دے - ژبه ئې ساده رواڼه او بیان ئې هوار دے -

میرمن بانو دټیرو ډیرشوکالو راسے دافسانې په صنف کښې دقدرروړے اضافې کړې دي او تر اوسه پورے ئې دپښتو افسانو دوه مجموعې "هنداره" مات بنګړي او ژوندي غمونه" چاپ شوي دي -

"هنداره" دبانو د اولني دور دافسانو مجموعه ده او په دے کښې داکثرو افسانو موضوعات دزنانه ادب روماني موضوعات دي او دروایتي رومان پرستۍ جذباتي رنګ پرے غالب ښکاري -

دهندارے په افسانو کښې " لاس " د هغې د روماني تصوریت یو واضحه مثال دے او په حقیقت دا افسانه د هندارے د مجموعې نمائنده افسانه ده - ددے افسانې هیروئن میمونه یوه ښکلې لوستلې جینۍ وي او په اسپتال کښې نرس وي - میمونه دیوډاکټر دلیونتوب ترحده مینه کوي چه د هغه ورسره مینه هم نه وي -

دا لیونئ میسه هغه تردے حده جه باقی کړی چه هغه لاس دځان نه پریکړی په کوم چه به یئ خپل خیالی جانان ته خطونه لیکل - او ذ هغے لاس د تحفے د پاره د لوګی بکسه هم جوړه کړی او بیا دد ے دومره خطرناکے ارادے نه هغه دوړاندے نه خپله نږدے ملګرے "شمع" هم خبروی ـ

"زه خپل امانت ور لیږ ل غواړم چه دځان نه ئے جدا کړو نو اوس به ئے را نه دا کتړان ځیری څنګه کړی څومره چه زر کیدے شی چه دا کار اوشی"[1]

او دغه ټیاخبره داره چه د شمع غوندے په هوش او حواس باندے پوهه جینئ صرف په دے نصیحت باندے خپله ذمه واری تماموی چه

"میمونے مه کوه پریږده دا لیونتوب"[2]

او بیا هم د شمع له خوا هغے ته د لاس په ځیځ د لرګی بکسه جوړول ..... دا ټول داسے واقعات دی چه زمونږ افسانه د حقیقت دد نیا نه ډیر وروستو دا ستانی دروایت ته بخښتوی ـ

دا قصه ثیقے کیدے شی چه څه تاریخی اصلیت لری خوځه ته چه شعری یا افسانوی حقیقت وئیلے شی د هغے په نزد دار ملګے واقعات اوکردارونه بیخی د مبالغے نه ډک دروغ او باطل معلومیږی ـ

نو د"هنداره" زیتون بانو چه "مات بنګړی" را ټول کړی نو د هغے شعور ډیر پوخ او شاهدانه ډیره ژوره شی او د هغے فن د حقیقی ژوند د تجربو ښه ډیر ځنځت شی ـ

---

[1] و [2] هنداره ، زیتون بانو ، ص ۲۱۸

ACKU

"د ماتې بنګړي" د افسانې مرکز هم د ښځې ذات دے - او نزدے نزدے هم یو تهیم (موضوع) یې د زنانه مسئلو سره تړون لري - د ښځې معاشرتي درجه د هغې په کمزورو او نازکو اندامونو د رواج او دستور درانه بارونه - د روایاتو ددے درنو بوجونو لاندے د هغې د چوړې چوړې ارمانونو احساس او د دغې چوړې شوو ارمانونو په شا ولاړے د سرونو ذمه واري ...... دا واړه هغه محرکات دي چه د "بخت" "نتکۍ" "ببوزیے" "ضالۍ" "ماتې بنګړي" او "دالۍ" غوندے افسانو تخلیق یې کړے دے -

د "بخت" ناوے یو داسے کردار وي چه د خپلې بختورتیا احساس په کښے د حده زیاته خود اعتمادي پیدا کړے وي - د دغه احساس هغې له د خاوند د کور خلقو ورکړے وي او د سخرانے له خوا د لوړتیا دغه احساس د هغې سره داسے جوخته ورکړي چه د خاوند د مرګ صدمه هم هغه محسوسه نه کړي -

خو د بختورتیا او لوړتیا د غه احساس هغه وخت زړے زړے شي څه وخت چه د هغې د کشرې لیور د دولۍ راننوځي - او په هغې باندے د نوے ناوے د مخ کتو بندیز او لګي - ځکه چه د خوابخے په ستر ګو هغه اوس سپیره وي - د غه وخت د دنیا غوندے سره او غمونه د هغې په خونه پند شي - او هغه داسے محسوسه کړي لکه چه د خپل څښتن د مرګ ذمه واره هم هغه وي - -

هغې د پیرنو په شان ورمنډه کړے - په دے خیال نه چه ګني دولۍ ده - بلکه په دے خیال چه ګني د هغې د مېړن خاوند کټ یې راوړو یا د هغې د بخت جنازه کورته را دننه شوه "[۱]

د با نو په خیال کښے خارجي عوامل او د معاشرے رویه د کردارو نو په جوړیدو

---

[۱] ماتې بنګړي ص ۳۰

او ورښېدو، د ځغوټې په يادۍ او بربادۍ کښې لوټے لاس لري - د مرے سرے عمل د کردارونو
په ذهني او نفسياتي ماحول کښې د ردعمل په توګه عموماً دا سے تبديلي راولي چه هغه
ډيرے ناپسنديده وي او اکثر د تباهۍ موجب شي - د بانو د بخت ناوے د کردارونو
د هغې سلسلے سره تړون لري د کومے سرچه په پښتو افسانه کښے د راحت زاخيلي د
"کونډے جينۍ" سره لګي -

"د نتکۍ" "مارو" يعني د دغه کردارونو تضاد دے - ځکه چه هلته بهرنۍ
مجبورۍ د دوۍ د ارمانونو او خواهشونو استحصال کوي خو لته د کردار داخلي
کشمکش او ديت لوغړنه جذبه د ماروګۍ له راشي او هغه د ړوند يوه دا سے سودا
او لري چه هغه ډيره ګرانه او سراسري د تاوان سودا وي - خو ديت او ناموس په لاره
د ګټے د تاوان پيمانے له سره بدلے شي -

د مات بنګړي د افسانے د ظريفي په غوږ وکښے شپه او ورځ د بنګړو شرنګار
اوريدے شي - د هغۀ په سترګو کښے په ناسته په ولاړے د پېغلو د بنګړو د کے ليچے تاوېږي
او په اوده او په ويښه په يوه دا سے خوږ بوے فضا کښے ګرځي چه پکښے سرنوا د
رنګينو بلورينو بنګړو رنګونه ځليږي - او د خوږ بنګړو د شرنګا شرنګ سازونه پکښے
اوريدے شي -

خو د تصور په طلسمي او روماني فضا کښے اوده دا ساده او ناخبره زلمے چه
د خوب راويښ شي نو د حقيقت دنيا څۀ بله وي او د هغه په تصور کښے پرقيد و شکي او
شرنګيدونکي بنګړي ټوټې ټوټې شي او د کومو بنګړو ټوټے چه ظريف د ګودړي په
غاړه په دے خيال را ټولے کړي - چه دا به د چا ښاسته پېغلے د مينے يادګار وي خو
هغه بنګړي د ظريفي د خور تابانے په ليچو کښے مات شوي وي - د هغے تابانے د چا د
د کوليچو د کتو د پاره چه د ورور سترګے د مور د ارماني وے - خو په دے شکل

ACKU

کښې نه څکه چه -

" اوس د ظریفې د هغه ماتو تو تو سره تړوله مینه په هم هغه هومره سخته کوکه کښې په دا یو ساعت کښې بدله شوې وه - دهرې توتې د ګډ اوړو لو سره لکه څنګه چه یې د ورور د پښتو چنغړق تاؤ کړې وو او ..... د غیرت مړې یې ور له لکه د بنګړو د دغه ماتو تو تو توتې توتې کړې وه "

د خپل جذت او ندرت له کبله د ظریفې کردار یو د لچسپ او زړه ته پریوتونکې کردار دې - نو دا فسانې په آخرکښې چه میرمن بانو د اخلاقي او اصلاحي درس په غرض د غیرت په جامه کښې کومه ناز که اشاره کړې ده هغه د ظریفې د کردار په حواله څه اضافي شے معلومیږي -

دا خو څرګنده ده چه بانو په خپلو اکثرو افسانو کښې د ښځې د مقام او عزت نفس د پاره جنګ کوي -ولې د مات بنګړي ظریفې د شروع نه څُه دا سې ساده او یو مخین کردار ښیئلې شوې دې چه په اخرکښې د هغه په نیت باندې د معمولي قسم مبهمه اشاره هم په ذهن پیتې محسوسیږي -

" شوې پانړه " د بانو د نوي دور افسانه ده او په دې افسانه کښې د شموکردار د ښائسته کردار نګارئ یوه ښیځلې نمونه ده -

د شموکردار د روایتي پښتنې چاپیرچل په بندیزونو کښې راګیرې شوې دیوې دا سې ښځلې کردار دې چه د ساه دوبئ په کیفیت کښې مبتلا وي -او د معمولي بندیزونو د ساه دوبئ چه هغه ته کومې نفسیاتي کشالې او عارضې را ورانده

---

ل ماتت بنګړي - زیتون بانو ص ۱۸۰

کړې وي شمو په لاشعوري طور د هغې نه د تېښتې او فرار لارې لټوي - هغه د ماحول خلاف بغاوت کوي خو دا بغاوت برملا او دا ګېز بغاوت نه وي - دا د حیا په پرده د ننه یو خاموشه احتجاج وي - او د خارجي فضا او داخلي کیفیاتو ترمینځه یو نه ایساریدونکې طوفاني کشمکش وي -

"د شمو د کردار بنیادي مسئله یوه جنسي مسئله ده او دیوې ښځې له قلمه چه د ښځې د کردار په دې اړخ باندې په ډیر فطري رنګ کښې څه لیکلي شوي دي هغه د پښتو افسانې په تاریخ یو اجتهادي قدم دې" [1]

د بانو په کرداري افسانو کښې "چلمچي" یو اهم مقام لري - د چلمچي دا کیټي مهتابه د روان ژوند یو ژوندې کردار دې - زمونږ په موجوده معاشره کښې چه د ښځې سره کوم امتیازي سلوک کیږي او او د ښځې خوا لوړ ته چه د هغې زامن په کومه سترګه باندې ګوري چلمچي کښې د هغې ډیر ښکلې تصویر پروت دې -

دا افسانه د بانو د هغو موضوعاتو یوه نمائنده افسانه ده کوم چه د موجوده دور د جینکو د مسائلو سره تړون لري - د مهتابې کردار زمونږ د دو یمې درجې د متوسطې طبقې د هغو تعلیم یافته جینکو ډیره ښاغلې عکاسي او نمائندګي کوي د چا سره چه حالات دومره مرسته نه وکړي چه هغوئ تعلیم حاصل کړي او د معاش مجبورئ نه ملازمت کولو ته هم مجبورې کړي خو د پسمانده هیوادونو نیم زالې او نیمه خوا تعلیم یافته او مهذب ماحول کښې ورته ډیر باعزته مقام حاصلولو موقع ډیرې کمه په لاس ورځي -

مهتابه ته یو اړخ ته دا کټ ئې غوندې د معززې پیشې په خپلولو کښې

[1] پښتو افسانه - محمد اعظم اعظم، ص ۱۵۰ - ۱۵۱

کامیابه بیا مومي خوبل خوا دا سپتال په دا خلي ماحول کښې هغې ته ذاتي اناحفاظت او د فطري شرافت سنبالے ډیرګران پریوځي - او هم له دغې کبله دا سپتال اپریشن تهیټر دهغې په نظر کښې د عصمت او شرافت یوه بد بوداره قصاب خانه ښي - مهتابه چه د سړو فطرت او اصلیت د نږدې نه بربنډ اوویني نو هغې له بیا د ټولو سړو نه باغيګي ورځي -

ښځه چه د ازل نه د سړو په نظر کښې د لوبو ګوډا ګے وي په هر رنګ هر پرده او هر مرتبه کښې بس ښځه وي - د هوس ښکاریان که د بد معاشانو په جامه کښې وي که د دا کټرانو هغه د مهتابے غونډے د ښکورے د ناروغه او کرم روح اپریشن نه کوي د هغې د معین بدن د پرتیډ ونکو پارشو نه چاپیره چورلي -

مهتابه یوه داسے جینۍ وي چه هغې د غربت په شیبره کښې سترګے غړولے وي او په خوار و زارو چه د دا کټرۍ تعلیم سرته اورسوي نو هغه د خپلے مور او رونړو خویند و خدمت ته ځان وسپاري او د هغې ځواني چه د ذمه وارو د بوجه نه سر پوره ته کوي نو بیا وخت تیر وي - او د دا کټر بلوچ او دا کټر قریشي غونډے د هوس دښتنانو د فریب په دا مونو کښې را ګیره ښي - دغه وخت د مهتابے شال د هغې باردارے ونے وي چه د هغې د میوے د ښوکولو سره د هغې ځانګې هم وربیلے ښي او د دا کټر نجیب غونډے دخوا خوږ و مهربانانو نصیحت هم هغې ته په خپله ژوند باندے یو طنز ښکاره ښي -

"مس مهتاب ! عمر د ربانډے اوري - چرته حق حلال نکاح او کړه -[له] د ښځې د پاره بے سري عمر تیرول ډیرګران دي - زما خوخیله

---

له ژوندی غموته ، زیتون بانو - ص ۱۱۹

دوه ښځې شته ـ ګنې ما به د ریاندے دا ثواب ګټلے وے ـ"

خو درے نصیحت دومره قدارے اثر اوشي ـ چه هغه دا غږ د خپلے دوړیدو نکے ځوانۍ د تیریدو شکو سپرلو دا یسادتیا په لاره کښے یو الارم وګنړي ـ او دد نه پس چه څه وخت د هغې په لاسو کښے دیوے درنے کورنۍ یو وران کارے هلک د یو ناکاره مرض نه شفا بیا موهي ـ نو دد نه هلک (صادق) په مخ باندے دخپلے مهربانے داکټرے دپاره د مینے او پیرزو ګینے نه ډک تاثرات خواره شي ـ او مهتابه چه هغه په سترګو کښے دخپل ځان دپاره دد لچسپۍ او طلب په اشارو پوهے شي نو په دے کښے هم ورکه شوے خود اعتمادي سر دا پورته کړي او دد نه خود اعتمادۍ په داد په بے ساخته اوے باکه لهجه کښے صادق ته د غیر فطري طریقو د پرېښودلو او فطري طریقو د خپلولو په حقله یو اوږد لیکچر ورکړي ـ د هغې نتیجه دا شي چه صادق د اکټرے له دوا ده پیغام ورکړي او د مهتابے دپاره دیو محفوظ او ځلانده مستقبل د تکیا درک اولګي ـ خو ـ

" د دواړو د جسمونو د جذباتو په شور زوږ کښے چه صادق په پس پسی کښے د مهتابے نه د هغې د تیر ژوند د تجربو تپوس اوکړو ـ نو هغې ورته د خپلو ګنډلو زخمونو تپولے بخئې یوه په یوه او سپړدلے او چه صادق دوا ده نه یو ځو میاشتے وړاندے پرله پسے مهتابه وز یخله نو یوه ورځ یې ورته په داګه اوویل چه هغه د هغې په بنجر شوے ځوانۍ کښے تماکۍ نه شي لګولے ځکه چه هغه یو غیرتي پښتون دے."[1]

---

[1] ژوندی غمونه ـ زیتون بانو ، ص ۱۹۳

او د مهذب انسانانو د رشتو او تعلق د آخري تجربه چه هم دومره ترخه او خپژی نو
هغه د تهذیب او مرتبے (STATUS) د هسکے غونډئ نه څو پورئ لاندے راکوزه
شي - د مهتابے وجود او چه طبقے خلاف تهول انتقام انتقام شي - او د دغه انتقام
عملي مظاهره په دے ډول اوکړی چه د نپیل اردلی سیف الله سره د وادهٔ فیصله اوکړی
نود ا سپتال عمله د هغه غوږونه هم د مهتابے خلاف دومره ډک کړی چه د دا کټرے
وجود دیو اردلی د پاره هم یو پیغور شی - او مهتابه چه د پردے اخوا د اسسټنټ
سرجن محمد اواز واوری - "دا کټره که دا چلمچی - د هغے مثال خو ددے چلمچی
دے - چه سرے راځی ناولی لاسونه په کښے وینځی "

نو ددے په جواب کښے د سیف الله ردعمل چه هر څه وی خو مهتابے ته دغه
وخت دا تهوله دنیا دیو چلمچی غوندے ښکاره شی چه هغه په کښے ډرونډ تهوے
کړکے او نفرتونه ورو توکی - او دیو نامعلومه منزل په لور روانه شی -

د مهتابے د کردار رغونه کښے چه بانو د دا تعاتو ماحول او تاثر په مرسته د کومے
حقیقت نګارئ او فنکارانه صلاحیتونو مظاهره کړے ده هغه ډیرے عملي شاهدے
او طویلے فني تجربے ثبوت ښکاری -

# حسن خان سوز

دیوسفزو د سیمے د اباشعوره او لوړ خیاله افسانه نګار زمونږ په هغه یکو تکو کښے
شمیرلے شی چا چه د پښتو افسانے څهرے له هم جمالی رنګونه ورکړی دی او هم جلالی.

حسن خان سوز د هغه وخته لیکل کوی کله چه پښتو افسانه د نوی پیغلتوب په
میلئ ولاړه وه - او په تیرو دیرشو کالو کښے ښاغلی سوز زمونږ افسانوی ادب ته د

ګنړو بنګلو او نادرو تجرباتي افسانو پسې زوښنه کړې ده ....... او د افسانو دوه مجموعې "لوګي او لمبې" او "که ابا سين را ټيټ نه وے" يې تر اوسه چاپ شوي دي.

د حسن خان سوز په موضوعاتو کښې او دغه په کردارونو کښې هم ځانګړې نوے والے او انفراديت موجود دے - آفاقيت هغه يو ټکے کيدے شي په کوم چه د سوز د افسانو شناخت کيدے شي - د سوز موضوعات عموماً د معاشرتي او ولسي (SOCIAL) مسائلو او واقعاتو نه را اخستے شوے دي خو هغه خپلو کردارونو له عموماً څه داسے آفاقي خصوصيات ورکړي دي چه موږ يې په اسانه د يو مخصوص چاپيريال سره تړلے نه شو - دا خبره موږ په دے روړو هم کولے شو چه د سوز افسانه د پښتنو افسانے د پښتنو د مخصوص مقامي مزاج نه د کردار نګارۍ او مجموعي خراش تراش له رويه لږ ه لږه بد له غوندے ښکاري - او هغه هميشه د خپل اظهار د پاره د يو پښتني او وسيع کينوس په تکل کښې کړي -
په عمومي توګه د سوز افسانه په اسانه د پښتنو افسانے د ترقي پسند مکتبهٔ فکر سره تړلے شي -

ښاغلي محمد همايون هما د سوز د افسانو په حقله خپله رائې داسے څرګنده کړے ده -
"سوز په پښتو کښې افسانے ليکي - خو د افسانو موضوعات يې آفاقي دي او د ليکو نکو کينوس يې د پښتو نخوا د ورشوګانو نه د برما تر پيګوډاګانو پورے خور دے" [1]

د حسن خان سوز د ورومبي دور په افسانو کښې "بيګم خان" يوه ښکلے معاشرتي افسانه ده - په دے افسانه کښې د بے جوړه وادهٔ معاشرتي خرابۍ ته اشاره شوے ده او د بے جوړه وادهٔ وجه هم هغه ده کومه چه زمونږ په معاشره کښې د

---

[1] لوګي او لمبې ، د حسن خان سوز ، ديباچه

زمانو راسے راروانه ده دیو سرمایه دار د هوس رلاسکا دیوے مجبورے پیغلے د ارمانونو او حسرتونو استحصال ۔

بیګم خان یوداسے ښځه وی چه د سرو او سپینو په انبارونو کښے هم اسوده نه وی ۔ او دهغه د خپلو فطری غوښتنو په وړاندے بے وسه وی ۔ او په نفسیاتی عارضو کښے مبتلا وی او دیوے معاشرتی غلطئ په نتیجه کښے چه دیو معززخان بیګم په خپله انسانی ځهره کښے د او وړاندے شی نو دهغه حالت څه د ا رنګے وی ۔

" د بیګم خان لاس چه د مسعود لاس سره په خطا او لګیدو نو په وجود کښے ئے یو کرنټ فذغلیدو او یو خاص لذت ئے محسوس کړو ۔ ښکلے اثری توورے سترکے ئے لږے درنے شوے او رنګے نه پرے لږ غونډے سر هم اوګرځید و ۔ د ا هغه څه د اسمان دبرېښنا په شان د سترګو په رپ کښے اوشو ۔ د هغه زړه غو ښتل چه یو ځل بیا خپل لاس د مسعود د لاس سره او لګوی ۔ ولے نسواتی حیا د هغه لاس بالکل مړ کړو ۔"

" راجو" د ترقی پسندے افسانے په لړ کښے د انسانی رشتو د لویتیا او تقدس په موضوع یو شالی کودار دے ۔ په دے افسانه (راجو) کښے سوز دا ښیٔلے دی چه کله انسان د خپلے فطری معصومتیا انتها بیا مومی نو هغه بیا د مذ هبی د اړونه بهرته راوځی ۔ راجو یوه هندوه جینئ وه او هغه یو مسلمان نوځی ته د زړه د اخلاصه درور ویٔلے وو او څه وخت چه د هغه خاوند د ورور او نخوړ د غه رشتے ته د شک په نظر اوکتل نو راجو د خاوند سینه هم د دغے عظیمے رشتے د سرنه قربان کړه ۔

د ملک درویش نه پس چه په نظریاتی او جغرافیائی توګه دیوے غارے او

---

ئه لوګے او دنړا حسن خان سوز ص ۷۰

بلے غارے بنیادم پہ خپلو کښے اود یشلے شی نو بیا هم درا جو پہ زړهٔ کښے د ورور د مینے دغه رشته موجوده وی -او ددے د رشتے پہ تل کښے دیوے ښځے د فطرت دغه پیدا کښی جذبه برینبی کومه چه درا جرله خوا د خپل مسلمان بهائی جان پہ نوم د اخری خط نه څرګنده ده ..........

بو ځپه د نیا کښے ورومبی سړی چه ماته د خور پہ نظر کتلی دی ـ ګنی زړهٔ چه پہ ښځه بدا یوی شری یم اوچرے هم دکوره بهر وتلے یم نو زلمو سړو او بوډا ګانو پہ سترګو کښے خوړلی یم [1]"

" لوګے اود نړا " دختیز پاکستان (موجوده بنګله دیش) د سانحے پہ موضوع باندے د سوز یوه شاهکار افسانه ده - ددے افسانے مرکزی کردار یوه داسے جینئ ده چه د هغوی بنګالئ او پلار ے بهادی وی - یوه تعلیم یافته او بنا ئسته جینئ چه د حالاتو پہ ولقه کښے راګیره شی نو د هغے بنائسته بدن پہ بازار کښے نیلام شی خو د هغے زخمی روح لا ژوندے وی او د سپیڅلے مینے د جذباتو بڅری ئے لا تر اوسه د بدن پہ ایرو کښے ځلیږی -

او بیا د غه تورتم کښے چه هغه د "مکتی باهنی" دیو زلمی پہ شکل کښے دنړا یوه تحریکه اووینی نو سر دوباره ئے پہ ژوند او انسانیت عقیده را اوزیږی او د اسرو لمن را ټینګه کړی ـ

" اوکوره چه تا اولیدم چه زهٔ غمګینه یم نو ته اودریدے او نوره خلق ځکه اودریدی چه زهٔ دیو خاص قسم جینئ یم [2]"

اوددے ځواب د مکتی باهنی لښکری داسے ورکوی ـ

---

[1] لوګے اودنړا حسن خان سوز ص ۷۲ [2] لوګے اودنړا حسن خان سوز ص ۷۶

"تاشاید بشهٔ سړي ډېرکم لیدلي وي - تا دا سړي په جنګ کښې نهٔ دي لیدلي - د دشمن سره په مقابله کښې د دوئ تماشه پکار ده - دا ټول بهادران او جانباز خلق دي - د قربانئ یوه اعلیٰ جذبه لرونکي زمري"[1]

"زما د ورې ډېر سیوند دی - زهٔ هر وخت د ورې په دنیا کښې اوسم - زهٔ په چا اعتبار اوکړم - زما په خیال تا به هم ډېر پاکستانیان وژلي وي"

او سفه ډېر په بې پروایئ جواب ورکوي -

"د دې اندازه نهٔ شي لګېدې - تر څو چه مړي او نهٔ شمارلې شي - او ما خو چرې هم نهٔ دو شمارلي"

د دې دواړو کردارو نو د خبرو نه په ډېر سپېځلي انداز کښې د دوئ د سیرتونو او د ژوند په حقله د رسایئ اندازه لګي - دا افسانه د سیاسي اړخ نه په انخوا یوه لویه انساني المیه په ګوته کوي - او د جنګ نه پس د دواړو بخارو د سوچ او فکر عکاسي د دې دوو کردارونو په وسیله په ډېره فطري او نفسیاتي پیرایه کښې شوې ده - یو خوا ته یو بریالې او فاتح فوځي دې او بل خوا د یو شکست خورده قافلې نه جدا شوې جینئ چا چه دا جنګ بایللې دې -

د دې المیئې کلائمیکس هغه وخت راشي چرته چه په لوکو کښې راګیر دا بې اسرې پېغله د امید د رڼا ورو ستنئ څرېکه هم په ورکېدو او وینئ کومه چه هغې د رڼ بنا ستړه او خوږ زباني فوځي په معصومو سترګو کښې صحیح کړې وي -

" هغه د خپلې پښتوې نه یو څو نو تهونه راوکښل - په مېزیئ ورته

---

[1] لوګې او رڼا - حسن خان سوز ص ۸۱ - ۸۲

[2] ایضاً ص ۸۹

ACKU

کېښودل او بیا ھغې ته ورنژدے شو او ورته یې اووے - دخدائے په امان ؟

زلمے رخصت شو - او ھغې دغه نوټونه په لاسو کښې ټوټے ټوټے کړل - ھم داسے څنګه چه د ھغې وطن ټوټے شوے وو - څنګه چه د ھغې زړګے ټوټے شوےوو۔

" د ھغې په جیب کښې ډکوکے او تعصب په دے ښار کښې صرف یوه تمکه وه۔ ھغې خپل ځونډ په ځلا دد ښمنانو په غیرت کښې تیرولو - ھغه ناځاپه د سپوږمئ چو بید ونګے دنړا کښې کېښناسته او د سوزنه ډک اواز کښې ئے دا سندرۍ شروع کړه

" غم نه کو غم نه کو رات بدل جا ئیگی ؟"

" کهٔ ابا سین راغلے نه وے" نومے افسانه کښې سوز د تماشئی دنیا په ریاکارئ باندے یو تریخ طنز کړے دے۔ په دے کښې دیو فنکار او ستر شاعر دژوند المیه بیان شوے ده - د ښاغلی ھمایون ھما په خیال۔

" دا افسانه د یو داسے ماحول تصویر دے - چرته چه فن نو قدر من دے ځکه چه ھغې باندے دځوکسانو د خپل قدر دار مدار وی - خو د فن خالق فنکار د ګمنامئ په تیرو کښې دغرے خوری ؟"

" کهٔ ابا سین راغلے نه وے" د سوز د حقیقت نګارئ یو ښائسته مثال دے - دا افسانه د یو داسے شاعر دژوند نه تاوېږی چه د حالاتو څپیړو د وطن نه دربدره کړے وی او په پردو ھیوادونو باندے د ژوند سختے ورځے تیرے کړی۔

---

له لوګے او دنړا - حسن خان سوز ص ۹۴-۹۵

که کهٔ ابا سین راغلے نه وے - حسن خان سوز ص ۲۳ ( د سوز افسانے یو جاج ) ھمایون ھما

او چه ډېره موده پس خپل وطن ته راورسي نو هغهٔ د فن شهرت د هغهٔ نه مخکښې رارسیدلے وی او د هغهٔ په درناوی کښې د ادب سرپرستان دیو درونډ او باوقاره تقریب کولو بنا اوکړی - خو دا ستر شاعر چه په زړو جامو او مخلې ثقه کښې په هغې خلقو کښې ورګډ شي څوک چه د دهٔ د لاثانی فن په ستائنه کښې رانیول شوی وی نو هغوی څوک یې پېژنی نه او نهٔ د چا دا ګمان راځي چه دومره ستر شخصیت دا ملنګنما بنده هم کیدے شي - او د دې واقعې نه پس دغه ستر شاعر خپل دیوان په اور او سیزی - دا افسانه چه د کوم کردار سره تړلے شوے ده هغه یو تاریخی او واقعاتی حقیقت هم لری - او دغه کردار د پښتو ژبے نومیالے شاعر ښاغلے فضل احمد غر وو - چا چه ډېره موده د وطن نه بهر په پردیس کښې اړولے وه - او چه وطن ته راغے نو دومره زړهٔ ماتے شو چه د خپلو اشعارو ټوله پنګه یې په اور او سیزله او دا یې اووے -

چه عمر لمیٔ زهٔ سوزولے یم نن یې زهٔ سیزم -

او ښاغلی سوز چه په خپله افسانه کښې د شاعر د کردار په حواله کوم اشعار ورکړی دی هغه هم د غر بابا اشعار دی -

## د ارباب رشید احمد خان انګازے

---

د پښتو افسانے په تاریخ کښے د ارباب رشید احمد خان انګازے د هغه طرز افسانے دی څهٔ ته چه مختصره یا لنډیزه افسانه ویلے شی -

دد ے مجموعے اکثرے افسانے د تأثر افسانه دی - لیکوال په یو مخصوص کیفیت کښې د یوان ژوند د څنې پیښے یا کردار په حقله یو خاص تأثر اخستے دے او د تأثر دغه غوټه چه هغه له خپله ذهنه پورا نکی نو یوه وړه افسانه ترے جوړه شي -

خو دوی غوښتنه د پولنستو په عمل کښې هغه دریچه او هنرمنه کار اخلي - او په دغه عمل کښې هغه د خپلو لوستونکو په سوچ کښې هم یو ول پریږدي - د ساده کلي وال چاپیرچل له کومې ذائين بدلو دو نو قصو د کردارونو په حقله د ارباب صیب شاهده ډیره ساده او د پښتونه ښکاري - خو درې کردارونو مطالعه عموماً یو بحین سره او یو اړخیزه وي - او لیکوشکه دیوه مخصوصې زاویې له کوټه د خپلو کردارونو د حرکاتو او سکناتو مطالعه کوي - او درې مطالعې پخوا په دریږدیه د اکنسومنکي افسانوي انداز کښې خپلو لوستونکو ته وړاندې کوي .

"د انګازې[1] اکثرې افسانې په یوه وړه پیمانه د خپل ماحول د کردارونو دیو مخصوص فطرت یو اړخیزه نفسیاتي مطالعې دي - او هرې افسانه په خاتمه د صفحې کردار د مخصوص مزاج هغه عجیبه اړخ زمونږ وسترګو وړاندې اوډدیږي خو د مزاج د دې څېرې په پېژندلو کښې د لیکوال او لوستونکي ترمنځه د رموز یوه پرده هم ډاډې موجوده وي - دا پرده کله خو یوه نرۍ جالۍ شي او کله دومره غټه شي چه د لوستونکي په ذهن کښې د شکونو نبارونه اوډدیږي.

"ملاګی"[2] "درې کانړي"[3] او شیرینۍ[4] دا بهام ترحده پورې دالتوا او تجسس SUSPENSE د عمل ښکاره افسانې دي - "نسکۍ"[5] د سلطاني غونډ سره د بې وچې او بدعمله ظلمي د ډونډ یوه ښکلې خاکه ده .

د نسکۍ "سلطانې" زمونږ د اولسي معاشرې هغه علامتي کردار دې چه د خوشو عیشو صحبتونو ناستې پاستې د ډونډ ډواک د ناستې ولاړې نه ایستې وي او شپه او

---

۱ پښتو افسانه - محمد اعظم اعظم ص ۱۲۲ - ۱۴۵

۲، ۳، ۴، ۵ انګازه - ارباب رشید احمد خان

ورځ د پېرسو ښځې لوڅړې ته څېله ځواني لوګی کوي ـ ترڅو چې د هغه د احساس په زړونو کښې د غیرت و پته هم وچه شي ـ او د سلطاني غونډ سره د بې ځواکه بې احساسه ژلمو چغلې د "بدرنګ" په شان د چېلو لوغړنو جذبو په کور کښې ټوټې ټوټې شي ـ

لونده پېکړې کښې د شاهين زمان دلاسه د خپل زوم قتل له د جواز کتل چه د هغه په زړه د زړه د پښمنې احساس سر راپورته کړي ـ د موجوده دور د څه قدرې تهذيب يافته پښتني معاشرے د مزاج په حقله يوه خيالي مبالغه بنکاري ـ د يو سخر د لاسه تش په دے جرم په خپل زوم باندے ګولئ چلول چه د هغه نوے واده نرې زوم د سخر د لامبانه پس د هغه د حجرے نه ته ولے تېر شو؟ يو داسے فعل دے چه د افسانه ليکونکي په خيال کښې به ډېر ضدي او هوډي پښتون د نفسيات يوه امکاني ګوښه بشه برڅېره کوي ـ ولې د حقيقت او روايا تو له مخه د شه عمل د يوے زړه پورے روئے نه زيات يوه ذهني عارضه په ګوته کوي ـ

او د تجربه په لوستونکو څه ښکلے او پسندلے اثر نه پرېږدي ـ

"چېله" د انګازے په افسانو کښې د تېو لوته روغه او متصدي افسانه ده ـ په دے داستان کښې د شيخ عبدالله کردار زمونږ د معاشرے د هغه تصور پرستو کسانو ډېره ښه نمائندګي کوي ـ څوک چه په تل کښې شرشم د رنګونو غوارې او د ژوند د رښتونو نه د تېښتے او فرار لارے لټوي ـ

د زړے زمانے د کيمياګرو په دود "شيخ عبدالله" هم د چېلے نيستئ غوځولو په غرض د محنت او مشقت په ځائے د الله دين د ديوے په لټون کښې په ځان شپے ورځې تېروي او د کلي نه بهر په ځنګل بيابان کښې چېلے اوباسي ـ

او په دے ورو ستئ چېله څو د هغه پوخ باوروي چه پېريان به او ومرو

ACKU

د ضعف په ګیره کښې راځي - او د هغه لاسونه هغه غیبي طاقت رانښي چه د عمر پستي به یې غوښه نښي او بیا به یې په مزو سر وي - خو کله ژوند دیو تریخ او لړزوونکي حقیقت په څیره کښې هغه ته را ورانډې نښي نو د خیالونو ماڼۍ یې سر د لاندې دا پړیوځي -

د هغه د نطیفه خطا نښي او د عمر د نو خوارۍ سره څیث لاره نښي - په افسانه کښې چه د شیخ عبد الله د کردار نه تاؤ راتاؤ په دغه مرحله کومه نفسیاتي فضا جوړه شوې ده دی هغه په حقیقت کښې د هغه د خپلو خیالونو انګازې دي چه هم یې ویره او هم یې بوږنوي -

کله د پیر پانو په ښکالو کښې او کله د امن پسنو په ورهم کښې رګني حقیقت دا وي - چه کوم غوښې د هغه د تصور سترګو ته د پیرنی په شکل کښې ښکاره ږنغ بري - هغه د ښادۍ کاکا پر ګې وي چه پره سره شلولې وي او هغه ورپسې ګرځي -

په دې افسانه کښې د ښادۍ کاکا کردار په لاشعوري طور هغه علامتي کردار جوړ نښي څوک چه په خپله خوارۍ او مشقت د ژوند غوښتنې پوره کوي او کوم چه د شیخ عبد الله غوندې د تصور پرستو او اعصابي زکورانو او شخصیت تضاد دے -

# طاهر اثر پریدے

## ۰ د محلونو خوا کښې او پاڼړے پاڼړے

د کال ۱۹۶۰ څخه را په دې خوا چې د پښتو افسانې کوم نوي لیکوال راولاړ شوي دي په هغوی کښې د طاهر اثر پریدي نامه د ټولو نه ځلانده او جوته ده. د هغه د افسانو اولنۍ مجموعه "د محلونو خوا کښې" په کال ۱۹۷۱ کښې چاپ شوې ده. او دغې مجموعې د اثر پېژندګلو د پښتو افسانې د لوستونکو سره په ډېر اثرناک انداز کښې کړې ده. د دې افسانو د ټولو نه لوی خصوصیت د ژوند په حقله هغه بیدار او تنقیدي شعور دے. کوم چې یو حساسه بنده هر ګړۍ په څه ډوب او ژور فکر کښې بندي ساتي.

جذبه د دې افسانو (د محلونو خوا کښې) د افادیت سرچینه ده. څو ځایه ئې د ځنې تکنیکي نیمګړتیا ایکي یوه وجه کیدے شي. خو لے سره د دې ټولو فني کمزورو هم د اثر د افسانو په موضوعاتو کښې د جدت، تنوع او نوو نوو زاویو بربیل او رنګا رنګي موندے شي.

د دے افسانو اکثر کردارونه ژوندي او متحرک کردارونه دي. د ټولو نه اهمه خبره دا ده چې په اول ځل د پښتو افسانه د کلي وال ماحول نه په بشپړ شکل کښې د ښار دې فضاته راوتلې ده. او ښاریه هم څنګه ښاریه چرته چې د کالو پښتانه په یو ګڼ شمېر کښې د معاش په سلسله کښې د مودو راسے استوګن دي. او طاهر اثر پریدے په خپله هم د ډېر وخت نه د دغه نوي څو آشنا چاپېریال یو جز دے.

هم له دغې کبله نیکوال د دغې چاپېرچل د کردارونو د نفسیاتو د مغوټې د کړو وړو او سیرتونو یوه ژوره او عملي مشاهده لري.

د کرا چۍ ښوندنې په لوی او مرکزي ښار کښې (چه د اوچتو نه اوچتو او کوچنو نه کوچنو بنیاد موښاریږه ده) د مختلفو طبقو د معاشي او معاشرتي ژوند ترمینځه چه کوم واضحه تضاد موجود دے ـ د اثر د افسانو اپه اثره هم د هغې تضاد نه ژغورېدلی شعور او احساس باندے ولاړه ده.

"د مخلوقونو خوا کښې" په اکثرو افسانو کښې د طاهر اثر رويه ډيره جذباتي ښکاري ـ او کردارونه چه په کومه طريقه د واقعاتو ترمينځه راځي د هغې نه داسے معلومیږي چه کردارونه قیسه په مخه نه بیائي ـ قیسے کردارونه په مخه کړي دي ـ او دا کردارونه اکثر د واقعاتو د ناترسو څپو په زور کښې د خپل ګودرنه بے خبره لاهو شي ـ او که چرته یو کردار د خپل ځواک په زیاتي لاس پښنه او هم ځوزوي نو بنده ته د دغې عمل نتیجه یوه معجزه ښکاره شي ـ ولے بیا هم د دے مجموعې څنې افسانے داسے دي چه د هغې کردارونه هم ژوندي کردارونه معلومیږي او هم فطري.

او د دے ښکلي مثال په پنځوېشت رو پئ کښې موجود دے ـ جمیل یو تیکسي ډرائیور دے چه د یو همدرد او د مظلوم انسانیت د خوا خوږي ژړلي د یو اولسي مصلح (Social Reformer) په شکل کښې مونږ ته ښکاره کیږي ـ دغه حساسه زلمے د معاشرے د ناهوارو په حقله یو تېز تنقیدي شعور لري او په مادي کشالو کښې د رڼنتو بنیادمو د خود غرضانه رویونه سخت ناپوهه دي ـ خو په دغه روان کښې چه هغه د یو نه مالدار دے او ښناسټ د پېغلے جمیلے په حق کښې د دېنه خلاص ښناسټ او انسان دوستۍ رنګونه په یو ځائے راټول او و ښي نو د هغه روح په شاله شي او هغه د نا امیده ژوند په او چه د اګه باندے د خپر تحالو سپرلي

اوغوړېږي - خود اُمید دغه سپرلي او دخوشحالۍ دغه احساس ډېر لنډپارے وي - جمیل ته ډېر ژر معلومه شي چه د جمیلې خندا هم بس په دغه پورے خند اوه -

د هغې دخند ا ګلدستے هم په اصل کښې د هغې دکلاس ( درجے ) سره د تعلق لرونکی "انوړ" دپاره دي - دغه ډنی یو اتفاق او د جمیل ښپله غرش فهمي وي چه ځان روښ ورځ دپوے بنا کسته او دو لتمند ے پرېغلے د مینے حقدار اوګڼي - او چه خبره د حسن سلوک نه د حقیقت د نیاته شي نو هغه یو ټیکسي ډرایئور وي او جمیله یوه داسے ملغره چه صرف د مال ارو د سر په تاج کښې خوند کوي -

ښاغلے د بنواز مائل د دے افسانے په حقله خپله رائے داسے ښرګندوي -

"ده وا یم دا افسانه د ښو مغربي افسانو په مقابله کښې کیښودے شي - موپاسان[1] هار هم د غے کښیده لري - نقلي هار د کړے شي خو اصلي اوګڼړلے شي - بیا هغه ورک شي - د ورکولو والا پریشان او اریان خو په آخر کښې بته او چلیږي چه هار نقلي وي"

د اثر افریدی د افسانو دویمه مجموعه "پانړے پانړے" په کال ۱۹۷۲ ع کښې چاپ شوے ده - په دے افسانو کښې هم د کلي وال ماحول سره خوا په خوا د ښار ژوند په خپل جبني رنګارنګۍ او سرګرمۍ کښې ډوب برېښي -

په دا پوغاړو د هغه کردارونه د شته او نشت، هستۍ او نیستۍ او د مسائې کامرانو او محرومو په یوه نه ختمېدونکے شخړه کښې راګیر دي - خو د اثر ګرفت د کلي وال چاپیرچل نه زیات په هغو کردارونو

---

[1] د محلونو کښې خوا کښے - طاهر اثر اپریدے - ص ۲۲
( وړاندې ستکې د رب نواز مائل )

[2] د فرانس د نوموړي افسانه نګار ګائي ډي موپسان افسانه

د بیات مضبوط سنګري د کوموچه د ښار د ئې د تیز او تند او متحرک ژوند سره

پوره ګامونه اخیستي دي.

او وېښه وجدان د کیسې ته چې ددغه چاپېرچل او دغو کردارونو

په ښکلي ډول تجزیه او مشاهده زیاته عملي ده.

او د کلي وال چاپېرچل نه د ښاري ژوند په لوري د ګواښ زمونږ د افسانې

د پرمخ تګ د پاره یو نیک فال دی.

په کلي وال چاپېرچل کښې د پانډې پانړې اولنۍ افسانه ګرځونه د اثر د

روماني طرز په تصوکښې وړو مبنيمعیاري افسانه ده چه په لوستونکو باندې یو

ژور فکر انګیز او غم پارونکي اثر پرېږدي - دد ې افسانې روماني پېغله

د ښاتو" خو د رواجي پښتني معاشرې هغه بې زبانه مال دې چه د واده په باره کښې

یې د رضا مرضۍ د پوښتنې هډو څوک ضرورت نه ګڼي - او د افسانې مرکزي کردار

د ګوجر" پوه ارې غرڅنې او شپول زلمی وي چه په زړه کښې د ساده اوبه لوټه

مینې یو څرېکې ځړېکې طوفان لري - ولې معاشي حالت یې دومره پریوتې وي چه

د چېلې کونډې او بې وسه مور په ورانده د ښاتو غوندې د یوې عامې او غریبې

جینۍ د واده نامدا حستل هم د هغه د پاره نا ممکنه خبره وي - ځکه چه کله

اوښ په کاسیره نشي او کاسیره هم د چا سره نه وي نو بیا؟

د ګوجر د ژوند واره اثاثه خو د پردو کډو د څرولو پورې محدوده وي..

د هغه د شپېلۍ په سوزناکې نغمې د ښاتو زړه ته خو ورکوزېدې شوې وې

د هغې چا غوږ و ته نه شوې رسېدې - د چا په لاس کښې چه د ښاتو غوندې

بې ناسته ونېغلو د قسمت واک اختیار وو - او ځکه وخت چه هغه دغره د سره

د ښاتو ډولۍ او چتېدونند اره اوو یښي نو د ګوجر کړې د چا فصل ته

ورکړې شوې وې او هغه د هر څه نه بې خبره د کلي په خوا کښې د جنج په ننداره کښې سترګې ور ښخې کړې وې او په دې کښې د فصل خاوند په هغه غږ اوکړو۔

"د ستړې زويه! ګڼړو د فصل تباه کړو او ته دلته بې غمه ناست يې - او بيا يې د ورستونه ګوجر را اوځکولو او د ګوجر سر خوا کښې تړې ته اړم شو - د هغه روح هم د شانو سره جنج کښې شامل شوے وو"[1]

او که عقلي دليل د افسانے دے انجام د منلو دپاره تيار هم نه وي نو بيا هم دومره ليکلے په شدت کښې څه کمے نه راځي ځکه چه د ګوجر بدقسمتي په تاد معاشي او معاشرتي استحصال بوه اوږده قصه هم پرته ده۔

د طاهر اثر په ارتقا کامياب کردار نګاري په هغو افسانو ډيره ځلانده ښکاري کوم چه د ښاريے د ژوند سره تړلے دي - د اثر ډير ورانده هم د ښاري په چاپيرچل بانډے ژمرنو د افسانے نخے نامتو ليکوالو لکه قلندر مومند - اشراف حسين احمد او حسن خان سوز ښکلے معياري افسانے ليکلے دي - خو اثر افريدي دا روايت په باقاعدګۍ سره خپل کړے دے - د باز د حسن په موضوع د اثر په دوو مجموعو کښې ګڼړے افسانے شاملے دي - خو د دے طور په افسانو کښې د کردار نګارۍ تو که "عزت" يو ښکلا او کامياب افسانوي ريام دے ۔

سپوږمۍ په دے افسانه کښې ديوے داسے ښځے کردار دے چه په ناخوالو دے بازار ته راوستے شوے وي - خو بيا د پيسو د هغے دپاره يو معمول شي او کله چه د هغے د ځوانۍ ګل په ژړيدو شي او هغه ديوے نا ښکے ځائے او نيسي نو د

---

[1] يا تړے يا نړے - طاهر اثر افريدي ص ۱۷۳

"ناهید" وار راشي ـ

ناهید سپوږمۍ په ماشومتوب کښې د چاانه په دوه سوه روپئ اخستې وي او اوس په ځوانۍ کښې هغه د سپوږمۍ په کوټه پورې کړې وي وسکه قیامت وي ـ او د سپوږمۍ د پاره د سرو زرو د مرغۍ حیثیت لري ـ

خو ځکه وخت چه د هغه سیټهه د لاسه د ناهید د نشګۍ کوزولو تېهه راشي چا چه په ناهید باندې بې خرته دولت شندلې وي نو سپوږمۍ ته هغه منداره را ځکښې شي کله چه یوه شپه د هغې د مرضۍ خلاف دیو بریتوخان په غیږه کې د هغې پېغلتوب سیبڅۍ دانه وانه شوې وه ـ په دغه خیال د سپوږمۍ مراحساس دا اوښه زیږي ـ او سته پټ په یته ناهید هغې زلمي ته حواله کړي ځوک چه یو معمولي

نوکر دی هرد سپوږمۍ سره پاکه او د شتړې مینه کوي

د ناوې څر سپوږمۍ هم یوه شپه جوړه شوې وه څو هغه د بریتوخان[ب] د پاره چه هغه یې نشکۍ کوزوله د وه متوب ناوې"[۱]

د ناهید د پاره چه سپوږمۍ نوم ناوې توب خوښ کړې وو د هغې په ارمان کښې د هغې د چیلې ځوانۍ ګلې جوړ شوې وو ـ ولې دوغه ځلې د پاسه چر سپوږمۍ د انسانیت کومه ډېره مله کړه د هغې په زړا کښې باید چه ډېر وته خپلې ځمر ـــ ځرګند ـــ شي ـ

د طاهر کردار ونه ځوندي او فعال کردارونه دي او د شاغلي د نواز مائل په وینا ـ

"د دغه په افسانو کښې الفاظ له الفاظو سره او جملې له جملو سره[۲] نښتي وي"

---

[۱] پانړې پانړې، ـ طاهر اثر افریدي، ص ۱۲۰

[۲] پانړې پانړې ـ طاهر اثر افریدي ـ ( وراندې مقدمه د رب نواز مائل / ص ۱۰

ACKU

افراد له افرادو سره غزیږي."

"خړپوښ" د طاهر د فطرت نګارۍ یوه ډوله نمونه ده - دا د ښار یې په مشیني ماحول کښې د معاش او اقتصاد په بیکرو کښې درا ګیر یو ړېړے والا "خیسه" د محرومو یوه داسې قیصه ده چې د هغې په لوستو د انسانیت د سر او چت په ګړې را تیښه شي هم له نن ا منه او هم له احترا مه.

خړپوښ د ژوندي د کړ ښتونو او مسلسلو زحمتونو هغه علامت دے چې د نوي کروړونه محنت کش ورله د زمانو را سے د خپلو خولو او وینو او ښه خورے ورکوي خو دا دے شنډ ے ونے په تنه یا خو د سره میوه نه نیوکیږي او که چرته د میوے دانه پکښې ښکاره شي . نو هغه هم د نورو خوراک شي .

خیسه یو ګونګړي مار دے چې سحر نه تر ماښامه د کرا چۍ په ګرم او مور ښار کښې چوله خرخوي - و ے د هغه د مودو د محنت په نګه څه د نارو غتیا خوراک شي او څه مړ تالې جلوس د تالان - په د غه سخت وخت کښې د هغه وفا داره او همت ناکه ښځه هم په خپل کور کښې مشقت کوي او د خاوند د کاروبار د پاره څه په نګه غونډه کړي خو د خیسه سره د خپلې ښځې د دے وینا څه پرا تے جواز نه وي چې
"زما ګټه تا نه ځکه زیاته ده چې زه محنت ډیر کوم".

او یوه ورځ چې د نمائش د میلې په وجه د خیسه سودا دوخته ختم شي او هغه په خوشحالۍ خوشحالۍ خپل کور ته د وخت نه اګاهو اورسي د نو د حقیقت هغه ته په ډیره بدرنګه څرګنده کښې ښکاره شي چې د هغه د ښځې ګټه د هغه نه په څه زیاته ده - هغه د خپل کور د ورانه د یو نا بلد سړي په هیبت د راوتو په مطلب صفا پوهه شي - او د ودیه خوا کښې د ولا ړے زیړ ز بیښلې ښځې په څرګنده کښې ورته د خپل نیمه خوا ژوند تول محرومۍ داسې کو یا نه شي چې د هغې په ژبه هم هغه پوهیږي .

# پښتو ادب او ناول

---

په پښتو ادب کښې د ناول د فن سره پېژندګلو د نولسمې صدۍ په وروستئ ځلورمه برخه کښې شوې ده او زمونږ په ژبه کښې د ناول شورو د میاں حبیب ګل کاکاخیل د نقش نګین نه کیږي - دا د اردو ژبې د اولې دورې دستر او نوموړي اصلاحي ناول لیکونکي ښاغلي مولوي نذیر احمد د اولني ناول مرآة العروس ترجمه ده -

دا ترجمه په دومره ښائسته بې ساخته روانه او با محاوره پښتو کښې شوې ده چه په ترجمه باندې د اصل ګمان کیږي - او د خپلې ژبې او خپل چاپېرچل د قیمتې مینه پرې ماتیږي - ښاغلي میاں حبیب ګل په نقش نګین کښې ځا ئے په ځائے د موقعې او ماحول په مناسبت د پښتو د متل محاورې سره خوا په خوا د خپلو اشناکو شعر ونو غمې هم لګولي دي او په دې ډول دا ترجمه د پښتو د موجوده نوي نثر په ارتقاء کښې هم یو اهم مقام لري - په چاپي شکل کښې نقش نګین په کال ۱۹۵۷ء کښې را اوت او ددې په حقله ښاغلي مولانا عبد القدوس خپله فاضلانه رائے داسې څرګنده کړې ده -

" دمراۃ العروس دا ترجمه دیں نه څه دپاسه اتیا کاله اول د زیارت کاکا صاحب یو مشهور مصنف شاعر او مترجم جناب میاں صاحب حبیب ګل کاکاخیل مرحوم کړے وه ـ حبیب ګل میاں صیب دنثر او نظم د دوارو میدانونو شهسوار وو او د پښتو ژبے بے شماره ښهٔ ښهٔ کتابونه دهٔ په خپل قلم کښلی وو چه په هغو کښے یو هم لاتر اوسه د چاپ میدان ته نهٔ دے راوتے. ډیر نو یکښے دهغه د دوستانو او شاګردانو دلاسه ضائع شول ـ یو څو لکه "مهر وماه" وغیره لا دجناب میاں امیرزاده صاحب کاکاخیل د قدردانئ او دمست په برکت لاتر اوسه محفوظ دی. دا کتاب هم د دوئ د دغه مختصرے قلمی کتب خانے یوه مرغلره ده. په دے ترجمه کښے مرحوم میاں حبیب ګل صاحب د خپل ادبی قابلیت نه پوره پوره کار اخستے دے ـ ترجمه ئے آزاده کړے ده او د رنګینئ او خوند پیدا کولو په خاطر ئے پکښے هرځائے عبارت ارائی او اضافے کړے دی ـ"

دمراۃ العروس او نقش نګین د عبارتونو په موازنه کښے داحقیقت په ښهٔ شان واضحیږی چه مترجم په ډیر زیار او کراخت د خپلو علمی او ادبی صلاحیتونو په استعمال د مولوی نذیر احمد ناول په پښتنی چاپیرچل کښے داسے انښلولے دے چه د نقش نګین پلاټ او کردارونه خالص هم ددے مزکے معلومیږی.

---

ئه نقش نګین ـ مقدمه دمولانا عبدالقدوس ص ج ـ د

"میاں نے کہا "تم نے بہت جھک مارا" یہ سن کر وہ احمق عورت میاں سے بولی " دیکھو خدا کی قسم میں نے کہہ دیا ہے مجھ سے زبان سنبھال کر بولا کرو۔ تمہیں پیٹ پیٹ کر اپنا خون کر ڈالوں گی ۔" یہ کہکر رونے لگی ۔ اور اپنے ماں باپ کو کوسنا شروع کیا ۔

"الٰہی اس اماں باوا کا برا ہو کس کم بختی میں مجھ کو دھکیل دیا"[1]

"سړی ورته اووے چه ته ګرمه نهٔ ئے چه له وړوکوالی نه داسے پلشته ئے ۔ اوس به څه رنګ چل عادت پرېږدے تاته سلام دے ۔

له وړوکوالی نه چه بنځه شي بد رنګه

هغه هيڅرے پروا نهٔ کا له ...

ورانه بنځه د بازار کوی سيلونه

په دے څهٔ شوه که د ناسته وه ترخنګه

هغے احمقے اووے چه ۔

ګورے سړيه خوله د سنبال کړه سمه ئے خوږوه۔

ګوندے ځان به په وهلو وهلو مړ کړم ۔ تا به عالمونو ته پرے کړم داسے اووے په ژړا راسمه شوه ۔ چل مور پلار ته په ښېرو راسر شوله ۔ وے ئے چه ۔

هائے هائے مور پلار مے خوار شه په دوزخ شه چه

---

[1] مراة العروس مولوی نذیر احمد ص ۲۶ (مطبع عثمانی پریس لاھور)

[2] نقش نگین میاں حبیب گل ص ۵

زۀ ئے په ژوند انۀ او رته واچولم - په روښتیا سړے ګرانه ؤم
پرے زیاتی ؤم - کومی ته ئے په خپله تیل وصلم - دے خلقوته
به چا توره سپتی هم پس زو کړے نۀ وه - زۀ ئے دے مردارو
ته ورکړم -"

"د نقش نګین" نه پس د مولوی نذیر احمد دیو بند مشهور اصلاحی
ناول "توبة النصوح" ترجمه په پښتو کښے هم په دغه نوم ښاغلی میاں محمد یوسف
کړے ده خو دا ترجمه "د نقش نګین" د معیار او پائے نۀ معلومیږی.

په پښتو کښے د اولنی طبعزاد ناول په حقله لا تر اوسه پورے فیصله نۀ
ده شوے په دے لړ کښے د ښاغلی راحت زاخیلی دیو ناول "نتیجۀ عشق" یا
(ماه رخ) ذکر په بعضے ځایونو کښے راغلے دے - چه دغه د پښتو اولنے خپل
ناول وو - خو متاسفانه دغه ناچاپ شوے ناول نایاب دے او داسے ښکاری
لکه چه د ښاغلی راحت په ژوند هم دغه نه بے درکه شوے وی - په موجوده
شکل کښے د پښتو اولنے طبعزاد ناول د ښاغلی پروفیسر صاحبزاده محمد ادریس
"پیغله " دے کوم چه د آزادئ نه پس په کال ۱۹۵۰ء کښے چاپ شو - او پیغله
په حقیقت کښے نۀ یواځے د پښتو ژبے اولنے ناول دے بلکه تر دے وخته پورے
د فن او تکنیک له رویه د پښتو ناولونو رهنمائی هم کوی - او زموږ د شمیر په څو
ناولونو کښے په اکثرو باندے په څه نه څه شکل کښے د پیغلے چاپ څرګند

---

له پروفیسر افضل رضا د "راحت افسانې" په مقدمه کښې د راحت زاخیلي "نتیجۀ عشق" د پښتو د رومبي طبعزاد
ناول تیاکلے دے . د یک کال ئې د ۱۹۱۰ او ۱۹۲۰ تر منځو مانه یادیږي . دا ناول وروستو په ۱۳۶۳
کال ثور کښې افغانستان کښې " ناول د ماه رخې " په نوم دوباره چاپ شو . خو د ناول
په خاتمه د "تمام شد حصه اول" مطلب دا دی چې د دویمه برخه ئې هم لرله .

لیدے شي -

په دے ناول کښے د نوی تعلیم یافته پښتون ځلمی او پښتنے پېغلے د پاره د مثالی کردار مغکوره په ډیر ښکلی انداز کښے وړاندے شوے ده - او د نیک مرغۍ خبره داده چه ښاغلی صاحبزاده د قبیلش ادب د غرتے مطالعے په رڼا کښے د دے ناول فنی اړخ او د کردارونو د غوړاوی او د ځنو خامو په ډیره موثره پیرایه کښے کړے ده - دے ناول د پښتو ناول لیکونکو د پاره په حقیقی معنو کښے دلاره ښودنے فریضه ترسره کړے ده -

"پېغله" پسے د پښتو ناول په ارتقائی لړۍ کښے د ښاغلی امیر حمزه خان شنواری "نوے چپے" هم یو اهم مقام لری - دا ناول په کال ۱۹۵۷ء کښے اولیکلے شو - د نوے چپے مرکزی خیال د وطن د آزادۍ نه مخکښے د مغے مسئلو سره تعلق لری کومے چه د پښتون وګړی د سیاسی مستقبل سره اړه لری -

د موضوع په لحاظ دے ناول ته موږ خالص سیاسی ناول ویلے شو خو د حد نه زیاتے مقصدیت او بے ضرورته اوږدو سیاسی بحثونو د ناول ښائسته پلاټ او کوټلی کردارونه د فنی مرام نه ښکته راغورزولی دی - هم په دغه کال د ښاغلی اشرف درانی رومانی ناول " زړګے ستړے " چاپ شو - په دے ناول کښے ز موږ د موجوده معاشرے د رومان زیاتو تعلیم یافته ځلمو د مینے په جذباتی تصوّر باندے ډیر ښکلے طنز شوے دے -

د پښتو ناول د ارتقاء په مختصر تاریخ کښے د نوموړی شاعر نقاد او محقق ښاغلی میان سید رسول رسا نامه د هیڅ لونه هم نه ده ښکاری -

بناغلی رسا د کال ۱۹۶۳ او ۱۹۷۲ ترمینځه پر له پسې ځلور[1] ناولونه "مفرور" "شمئ" "ماموښئ" او "خودکشي" د پښتو ادب ځولۍ ته ورواچول - او په دې ناولونو کښې هر یو په ځله ځله موضوع باندې دیو لوړ ادبي او مقصدي مقام جوګه دې -

بناغلی رسا په ځلو ناولونو کښې د پښتني چاپېرچل او کردارونو دائره زموږ د شهال قبایلي غریبي ماحول نه تر لاهور او کراچۍ او د پاکستان نه واخله تر افغانستان او ایرانه پورې خوره کړې ده - او په دې عمل کښې مغۀ د ساهو او بشپړې تجربه مشاهدې او مطالعې ثبوت ښودلې دې - د موضوع پلاټ کردارونو او چاپېرچل په ځلو کښې کوم منطقي او فني جوړښت چه په دې ناولونو کښې لیدې شي - مغه زموږ د راتلونکو ناول لیکونکو دپاره د رڼا د منارې کارکوي -

د شیر زمان غمژن[2] "ګل خان" د ځل ساده او رنګین کلي وال پس منظر خوند ور پلاټ، ژوندي کردارونو او سپېڅلې منظرنګارۍ له رویه یو اوچت معیاري ناول دې چه زموږ د ناولیز ادب په لنډه تنګه جولۍ کښې د قدر وړ اضافه کوي. ګل خان په کال ۱۹۶۷ کښې چاپ شو - د ګل خان نه پس د بناغلي غمژن دوه نور ناولونه "امانت" او "رحمان کورونه" هم چاپ شوي دي - خوله بڼه مرغه په رحمن کورونه فلمي رنګ غالب شوې دې - او که د بناغلي افضل رضا[3] د ویښا

---

[1] بناغلي میاں سید رسول رسا پنځم ناول اوس اوس په کال ۱۹۸۵ کښې د میخانه په نوم چاپ شوې دې.

[2] رحمان کورونه - خوښتکی ص ۵ - ۶

[3] شیر زمان تاثیر دی چه په اوله کښې ئې غمژن تخلص وو.

مطابق بناغلی غمژن په ځېل خیال کښې د پښتو ورو بې "جاسوسی ناول" لیکل غوښتل نو بیا هو خبره خلاصه ده . ځکه چه د جاسوسی رنګ د قیصو او ناولونو واقعات او کردارونه د عام ژوند نه مختلف وی .

په "امانت" کښې د ریاستی نوابانو د عیش پرستو او ریاستی اولس د بې ارزی داستان چیړلے شوے دے . د موضوع له حوا ددے ناول د افادیت نه انکار نهٔ شی کیدے خو د پلاټ او واقعاتو اوکردارونو په ترون کښې داو پرجذباتیت نغښے پکښې صفا ښکاریږی - او دګل خان د خالق نه چه لوستونکی دکوے حقیقت نګار طمع لری . په دے دوارو ناولونو باندے دهغې مینه نهٔ ماتیږی .

د بناغلی غمژن نه پس په دغه اوان کښې د پښتو د نوموړی افسانه نګار بناغلی ساغر اپریدی ناول " نوے کول " په کال ۱۹۷۲ کښې چاپ شو . په "نوے کول" کښې د موجوده نسل د مغرب زده تعلیم یافته زلمو د ژوند د طور طریقو عکاسی شوے ده . او یوکونکی د نوی تهذیب د اثراتو د عندنے سره سره په ځنو غلطو او ناخوښو زړو دوایاتو هم تنقید کړے دے . بناغلی ساغر په بنیادی دول یو افسانه نګار دے او په نوی کول کښې هم صغه تر ډیره حده د افسانے د رمز او اشارت اسلوب ځېل کړے دے .

بناغلے مراد شنواری ددے ناول په حقله لیکی چه

" په قبائیلی ماحول لیکونکے ساغر دا سے معلومیږی لکه دجولاګی په جال کښې راګیر شوے وی . خو په دے کښې ساغر صیب له کومتون نشته ځکه چه زموږ معاشره په ځېله لګیا ده د یو عبوری دور

---

ڵه نوے کول ، سریزه د مراد شنواری من یعط

نه تیریږي .

د بناغلي ساغر ملوسه کول د څېل افادي موضوع، غوښتن پلاټ او ځنو ډونډو کودارونو باوجود هم د بې ځايه افسانويت او سطحي جذباتيت ښکار شوی دی . او دده ناول په ډېرو ځايونو کښې چه کومه خالي برخېږنه ښکاري هغه د شعوري مصنوعي او سیوا ئي کردار نګاري (Over Characterisation) کوشش دے[1] .

ددے نه علاوه چه په پښتو کښې تر اوسه کوم ناولونه ليکلي شوي دي په هغو کښې د محمد ابراهيم شبنم "خوابنے اسنګور" د میاں مکمل شاه "ژوندۍ مینه" د جیب افغاني "ښاپيرۍ" او "مینه او فرض" د ماهیتوخان "ماته ښيښه" شامل دي .

---

[1] د ناول اصل موضوع په ناجائزه ذرائعو د دولت پیدا کونکو په طاقت او حکومت کښې د حصه دارکیدو هسه ده - د ښاغلي ساغر آفريدي د ناول ټول روداد او کردار نه په دے چاپيرچل په ګوډ دي .

# پښتو ناول او کردار نګاري

## نقشِ نګين

لکه چه وړاندې ذکر شوې دې نقش نګين د مولوي ډپټي نذير احمد د اردو ناول مراة العروس ترجمه ده - او د ميان حبيب ګل کاکاخيل د دې ترجمې عمر د سلو کالو نه وړاندې دې - دا کتاب د هجري سن په ١٢٩٣ھ کال کښې ليکلې شوې دې او په دې حساب د ناول ابتدا نمونه په پښتو ژبه کښې د افسانې نه هم څلويښت پنځوس کاله آګاهو شوې ده - خو د حيرانتيا خبره دا ده چه د افسانې او ډرامې د ارتقاء د تاريخ په عکس په پښتو کښې د باقاعده او طبعزاد ناول نويسۍ شروع د آزادۍ د کال (١٩٤٧ء) نه هم پس اوشوه۔

---

ے نقش نګين ص ٢٧١

دوشنبه ده څلورم د شوال ګوره — سن درې نوي وو د دولس سوه پسې وروره
که دې ګوډ شي حاصل به دِ مراد — شو کتاب د حبيب ګل په کښلو زما د
نوم د دې ترجمې دې نقشِ نګين — د دې ناقل دې في الحال سنا و الدين "

په نقش نګین کښې د مولوی نذیر احمد د نورو ناولونو غوندې د ښځو په تعلیم او تربیت او په کورنی ماحول د ښه د ژوند په فائدو او د ښځې په معاشرتی بګیړو او شخړو باندې په ډېر ښکلی او رښتونی انداز کښې بحث شوې دې. او ترکومې پورې چه د کورنی ژوند او چاپېرچل تعلق دې د هغې په تفصیلاً تو کښې ئې د حقیقت نګارئ نه کار اخستې دې.

دا ناول په ظاهره د دوؤ متضادو مزاجونو او سیرتونو لرونکو خوېندو اکبرې خانم او اصغرۍ خانم قصّه ده. کومې چه دوؤ رونړو محمد عاقل او محمد کامل ته وادۀ شوې وې. مشرئ خور اکبری خانم یوه بد مزاجه، سرتېزه، بدتمیزه، بواره او جنګیالئ جینئ وی. او د دې خویونو او خصلتونو له مخې ورته مزاجدارۀ بی بی وئیلې شی. او کشرئ خور اصغرۍ خانم د هغې په عکس یوه هوښیاره هنرمنده. نیک سیرته. مونځ ګذاره. خوش اخلاقه او خوش اطواره جینئ وی. ځکه ورته خلق تمیزداره بی بی وائی.

نو په حقیقت کښې د ناول ټول پلاټ د اصغرۍ خانم د کردار نه چاپېره چورلی څوک چه د خپل فهم او فکر، سلیقه منډئ او نیک مرغئ په برکت د خاوند د کورنئ ټوله نقشه بدله کړی. او خپل خاوند محمد کامل ته هم د ژوند د تېرولو او د ژوند د ازمینتونو سره د مقابلې چل او ښائی. او په هغه کښې چه کوم ناخوښې عادتونه او خصلتونه موجود وی هغه هم د اصغرۍ خانم په اخلاص او تدبر باندې هوارشی او دغه شان د محمد کامل نه هم یو مثالی خاوند او کامل انسان جوړ کړی.

اصغرۍ خانم نۀ یوازې د خپل کورنی ماحول د بدلولو او جوړولو تابیا کوی بلکه د کور محلت او خواؤ شا د جینکو د زده کړې او تربیت پېټې هم

ACKU

په ځېنو نازکو اوږدو بياندے پورته کوی - او ځېنې پردی اولوے واړه تهول د هغې د مينے اخلاص او قابليت مدح خوان او ثنگان شي -

خو ددے دومره خوبو اوپيس زوشنو په منځ کښې د اصغری خانم شخصيت يو مافوق الفطرته هستی ښکاری - د هغې په حقله د يوے فرښتے تصور خو جوړ شي - ولے د هغې د نسوانيت عمومی او انسانی دلکشی د خياله بيخی لرے او جا روځي -

د بناغلی علی عباس حسينی په خيال -

" د نقش نگين ( مراة العروس ) هيروئن اصغری داسے ماينکه صفته ښځه ښکاری چه د هغې خاوند به هم غالباً چه د هغې د يو نظر کتو په خيال د مخکښې نه اودس کول لازمی گڼړی "[1]

په ناول کښې چه د اصغری خانم د کردار کومه نقشه راکښلے شوے ده د هغې نه دا اندازه لگی چه د هغې نه په ماشو والی کښې هم څه داسے حرکت نۀ وو شوے چه چا پرے ښندے گوتے کړے وی -

او د بناغلی ميان حبيب گل په الفاظو کښې -

په وړوکوالی کښې ئے[2] د لېو ښوښو د خندا دلاس نگولو يا د چا سره په جنگ کولو يا د چاسره په خواب گرولو يا په غوبلو پرزيدلو ليدلے نۀ وه - په کور محلت کښې چه څه ښځے وے مشرانے هولو د ځېنو لوڼو عونډے ترے مينه کوله "

---

[1] ناول کی تاریخ اور تنقید علی عباس حسینی (ترجمه) ص ۲۱۲

[2] نقش نگین - میان حبیب گل - ص ۸۹

د دیارلسو کالو په تنکی عمر کښې چه هغه د شپارسو کالو محمد کامل ته وادۀ شی نو د محمد کامل نه خو د خپل عمر د غوښتنو مطابق داسے حرکتونه اوشی چه عام خلق ئے د عمر او عقل د کچه والی په مناسبت فطری هم گڼړی او د بخښنے جوګه هم -

وے د اصغری خانم د ذات نه د معمولی قسم غلطی کیدل هم یوه ناشونے خبره وی - او هغه دیوے پخے اورسیدلے ښځے په دود د توے سغرانے د ذمه واری بوج په خپل سرواخلی او د توے کورنئ بسکیڼے اوکشالے په داسے دول هوارے کړی چه عقل ورته اوخوزی - د اصغری خانم په مقابله کښے د اکبری خانم کردار اګرچه په ظاهره یو ډیر ناخوښے کردار بڅلے شوے دے - وے بیا هم د اد اصغری خانم په شان یو مړ ډوانی ے - هوار جام او ولاړ کردار نۀ دے چه د یو مشین غونے نۀ څه انسانی جذبات لری او نۀ محسوسات - کوے خوبئ او پس زو ښئے چه د اصغری دکردار سره تړلے شوی دی په هغو کښے یوه هم مصنف اکبری له نۀ ده ورکړے - هغه جنګیالئ ده - ناقابله ده - فضول خرڅه ده - بے پرواه ده او ځائے بے ځایه تو پونه او غوړ داڼګے وهی او په یوه موقع چه هغه خپل خاوند محمد عاقل ته وائی -

" یو[1] راته تنبلګے داوړه او یوه دوپړئ راته ور وکے غونډه داوړه "

محمد عاقل اوخندید وے ئے وے چه دوپړئ تنبلګے به څۀ کوے.

---

[1] نقش نګین - میان حبیب ګل - ص ۲۱

مزاجدارے اووے چہ زلفن خور رحمتن خوږ ....... دوئ.

داشي ورسره به پیبے کوم . ستاځنے به پرے وایم .؛

نو ددے نه هم دمزاجدارے دمزاج څهٔ اندازه لګی - خوولے بیا هم داکبری دکردارنه نسوانیت راڅاڅی او دبنځے والی نه ئے څوک انکار نهٔ شی کولے هغه دړ را په ځائے ژاړی او دخندا په وخت خاندی - هغے له غصّه هم ورځئ او دمیعوړ په موقع پیغور ونه هم ورکوی خو بل خوا اصغری خانم دیوے داسے مقدسے بی بی (Nun) په شکل کښے زموږ دوړاندے راځئ چه دهغے دبل په خوږو خو کاردشته وے په خپله دلوئے نه لوییه صدمه هم دهغے نوک نهٔ شی ازارولے - تردے چه دخاوند سره دغیرو ښځو د ناستے پاستے په خبره هم په هغے کښے دبن ولئ فطری جذبات نهٔ راپاریږی او تش داسودا ورسره مله شی چه دهغے خاوند په دغه سبب د دومره ګټے وټے باوجود دکور دخرچے دپاره پوره اسباب نهٔ رالیږی . که دهغے په ځائے بله ښځه وے نو یقینی خبره چه اوریږے بل شوے وو. خو دنقش نګین اصغری خانم اومحمد عاقل (داکبری خانم خاوند) دیوے ښځے نه جوړ هغه مخلوق وی چه دمعنوئ دغصے ، تاؤ ، کرکے اورقابت جذبات لکه بیخی مړهٔ وی .

داصغری خانم دسیرت یوه جوته خوبی دهغے خود داری اوخوداعتادی وی . هغه نه په ځان دچا داحسان پیټے ایښودل غواړی اونهٔ په خپل خاوند . دغه وجه ده چه کله محمد کامل دنوکرئ په خیال خپل سخرله د ورتګ اراده څرګنده کړی نو اصغری خانم دے ته هم غاړه نهٔ ایږدی چه دهغے خاوند دِکنے دهغے دپلار احسان هم په ځان واړوی - د

ACKU

اصغری خانم دغیرت ، حیا ، شرافت ، هنرمندۍ ، سلیقې او علمیت دارګه قصّه میاں حبیب ګل صیب په دے څو بیتونو کښې ختمه کړے ده ۔

" که[1] څهٔ عقل که هـــنر وو
که حیا د ستر ګو شـــرم
په دے واړو صفتو نـــو
وو د تن بــازار ئے ګرم
په قلار قلارۓ تلل وو
لوزۓ پوست وو غـلے نرم "

د مزاجدارے ( اکبری خانم ) دکردار د ټولو خامو اوکمو ذمه واریکونکی دمغے دینچو اوکسبوڅ بنځوسره ناستے پاستے اود معنوئ مجلس ګنړی او د محمد عاقل په الفاظو ۔

" د بازاریانو[2] خوشو کسبوو سره د تاآشنائ دی زهٔ خو
دِ ویـــنم چه د ټول محلت خو شکئ تاله څ راځ ۔ د
تاسره کښینی پاڅی ۔ یوه پکښې د تا سیاله نشته ."

خو دخپلو ټولو انسانی کمزورو او خامو باوجود هم داکبرئ خانم کردار د اصغری خانم په مقابله کښې یو ډونی ے اودلچسپ کردار معلومیږی چه د لوستونکو توجه او دلچسی تر آخره پورے په ځان پورے کلکه نیسی ۔

---

[1] نقش نګین ۔ میاں حبیب ګل ، ص ۸۹

[2] نقش نګین ۔ میاں حبیب ګل ، ص ۳

د میاں محمد یوسف د "توبة النصوح"[۱] مرکزی کردار "نصوح" هم هو بهو د نقش نګین د اصغری خانم د سیرت مردانه عکس ښکاری - هغه یو انتهائی پرهیزګار، د تقوی داره او ملا طوره بنده وی چه په شرعی توګه یو پوټی ناروا او مکروهه کار هم نه په ځان برداشت کولے شی او نهٔ په بل - تر دے حده پورے چه د کلیم په کمره کښے پراته ادبی کتابونه هم نهٔ پرېږدی - او د ګلستان سعدی موجودګی هم په کور کښے یوه د عیب خبره ګڼړی - نصوح یو داسے کلک ځنګړه غزوی چه د لوے نه لویه صدمه سره هم د ځایه رقولے نهٔ شی -

د مولوی نذیر احمد دا قسمه مثالی کردارونه د پښتو ناول نویسئ د فن د پاره هغه رده ابړدی چه په هغې باندے زمونږ ناول لیکونکو د خپلو تخلیقاتو بناء کړے ده -

او د مثالیت دا رنګ زمونږ د ناول په کردارونو باندے تر اوسه پورے خورښکاری - دا کردارونه د مثالیت هغه نمونے دی چه په هغې کښے د ارتقائی مدارجو ښځی ګنجائش نهٔ شی لیدے - او د دغو مثالی کردارونو د اثر لاندے چه وروستو بیا زمونږ کومو پښتو ناول لیکونکو د خپل چاپېرچل او خپلو حالاتو په حواله د کوم قسم کردار نګاری ته ګوتے واچولے هغه د خپلے زمانے په مناسبت ناپسندیده هم ښکاری - ناکافی هم او مصنوعی هم -



[۱] د ډپټی نذیر احمد د اردو ناول توبة النصوح ترجمه چه په پښتو کښے هم په دے نوم میاں محمد یوسف کړے ده -

# پیغله

د پروفیسر صاحبزاده محمد ادریس ناول "پیغله" د پښتو ناول د ارتقاء د زنځیر د تولو نه اهمه کړۍ ده. د دې ناول تنه بوده ریاض احمد او نیلوفر په کردارونو باندې ولاړ دی او د ریاض او نیلوفر کردارونه د شلمې صدۍ د تعلیم یافته ځلمو او پیغلو هغه تصوراتي خاکې وړاندې کوي کوم چه د نوي پښتون کول د پاره د ستر و اخلاقي اقدارو او لوړو انساني اوصافو احاطه کوي.

د ریاض په کردار کښې هغه واړه ذهني، وجودي، اخلاقي او روحاني صفتونه او خوبئ را جمع شوي دي کوم چه د یو مهذب او اعلیٰ تعلیم یافته پښتون ځلمي په سیرت کښې د امکان تر حده موجودې کیدې شي. د "پیغلې" د هیرو ریاض کردار د علامه اقبال د مرد مومن او کامل انسان مجسم تصویر ښکاري. د بناغلي صاحبزاده د تصور مېړنے او مرد مومن هم هغه پښتون ځلمې دے څوک چه د خپلو مذهبي اقدارو او ملي روایاتو او چته نمونه د خپل شخصیت د انفرادي خوبو په وسیله په داسے ډول وړاندې کړي چه هغه د ځان نه علاوه د ټولنے او اجتماع د پاره هم د خیر او ښیګړے موجب شي.

علامه اقبال چه د فطرت د مقاصدو سره د غرځنې باتورن یا مرد کوهستانی کومه تصوریه وړاندې کړې ده د هغې تشریح ښاغلي مولانا عبدالقادر په یو ځای کښې داسې کړې ده .

"د مرقام[1] اصلي جوهر د هغه روایات ، اخلاق او دژوندی پاتې کیدو خاصه فلسفه وی - د اسلامی اخلاقو فلسفه او فلسفهٔ پښتو ترمنځه داسې یو واڼ او هم آهنگی وه چه علامه د پښتون د فطرت په تنه بوده کښې د غه جوهر لیدلی -

د محراب گل افغان د افکارو د پیش کولو په سلسله کښې علامه عرب او پښتون دواړه یو ځای کړی دی او د ضرب کلیم آخری شعر چه -

فطرت کے مقاصد کی کرتا ہے نگہبانی

یا بندهٔ صحرائی یا مرد کوهستانی

بندهٔ صحرائی عرب اقوام دی او مرد کوهستانی د سید جمال الدین افغانی او محراب گل د اقام دے ."

او پروفیسر ادریس د غه کوهستانی باتورن د یو نوی تعلیم یافته پښتون زلمی په شکل کښې وړاندې کړے دے .

دریاض او شیلو قصه هسې خو د عامو رومانی ناولونو په طرز په روایتی انداز د دریل د سفر په دوران کښې سرنیسی - د ناول هیرو "ریاض" یو

---

[1] ضرب کلیم د پښتو ترجمه د سید تقویم الحق کاکاخیل ، پیژندګلو د مولانا عبدالقادر ص ۲۷

بناسُته پیغله نیلوفر د ریل په ډبه کښې د یو بدمعاش د ناولو ارادو د پنجې نه په ډیره بهادرئ را خلاصه کړی . نیلوفر یوه پښتنه جینئ وی . په لاهور کښې د ډاکټرئ سبق وائی او د چهټیا نو نه پس د پېښور د سټیشن نه واپس کالج ته روانه وی .

ریاض احمد د اسلامیه کالج پېښور د یو نوموړی پروفیسر فیاض احمد زوئے وی چه د ایم اے ایل ایل بی پورے ئے تعلیم وی . نوے نوے وکالت ئے شروع کړے وی او دا وخت په فوځ کښې د کمیشن اخستو د انټروېو په غرض لاهور ته روان وی .

د ګاډی د غه سفر او حادثه د دواړو د ملاقات او پیژندګلو بهانه شی . نیلوفر د ریاض د مړانے او اخلاق (او شاید چه وجودی) خوبیا نو نه ډیره متاثره شی او په زړهٔ کښې ئے د دهٔ د پاره هغه جذبه را او ټوکیږی څه ته چه مینه ویلے شی .

د ریاض سترګے هم د نیلوفر په ښکلا کښې د بناسُت هغه ټول صفتونه صحی کړی کوم چه د یوے ډیرے بناسُته او باکرداره پښتنے پیغلے د تصوّر سره تړلی وی . خو د دے ښکلی تصوّر او ریاض په مینځ کښې یو دا سے دیوال او دریږی چه هغه نیلوفر ته د معشوقے په ځائے په خور ویلو مجبور شی .

"تهٔ لو کښې لویه مسئله چه ماته درپیش وه نو هغه زما او د نیلوفر د رشتے وه - ما هغے ته بیګاه خور ویلی وو او اراد تاً

---

له پیغله - صاحبزاده محمد ادریس (دویم چاپ) ص ۱۳۸

وېښلي وو - او اراده ئې کړې وه چې وېښلي وو چې هغې ته به د خور وېښلو ماته بله لاره نه ښکارېده - زما او د هغې په مېنځ کښې سيوا د دوروولۍ خوروولۍ بله رشته هم وکېدې نه شوه او ددې صرف يوه نه بدلېدونکې وجه وه هغه دا چې زما کوټه دن دخپل ماما د لور سره د مور او پلار په خوښه شوې وه او زما په مرضۍ، جميله زمانه پنځه کاله کشره وه. ن ورځې ئې په لسم جماعت کښې سبق وې - خدائې ورله حسن هم ورکړې وو - حيا او اخلاق هم -

دا جميله زما د قوم سره تړلې شوې وه او ددې ځائې بل چا ته شو اخستې - پښتون په خپل وس خپله ښځه نه پرېږدي -"

او له دې ځائې د ناول په پلاټ کښې د سپنس هغه ول سر اونيسي د کوم له کبله چې تر آخره پورې په قصه کښې د لوستونکو دلچسپي قائمه پاتې وي - د رياض سره د ښلوفې او جميلې بيلې بيلې رشتې په ډېر ذړه دا ښکونکي انداز کښې په داسې هنرمندۍ سره ښيلې شي چې د ناول د افادي او مقصدي اړخونو سره د هغه جمالياتي او روماني اړخ هم خپل کشش او رنګيني قائمه ساتي - او دې څيز د ناول پلاټ ته ډېر تقويت ورېخښلې دې - د رياض په کردار کښې چې کوم پښتون ذليې راوړانئې شوې دې - هغه په ظاهري جوړښت کښې خو د زړو اقدارو او نوې تهذيب يو ګډ وون ښکاري - ولې په بنيادي توګه هغه يو داسې کردار دې چې د

د روايتي پښتني معاشرے د اخلاق ذکر نه يو اځ هم خوزيدو سته جوړ
نۀ دے .

او د دغے نتيجے د حاصلولو په ذيار کښے دا سے ښکاري لکه چه ناول ليکونکے
په چټله په هر ځائے د چټل هيرو په شا ولاړ وي . او د ناول هيرو هغه
څۀ وائي او هغه څۀ کوي څه چه ناول ليکونکے د يئل او کول غواړي .

د دوه ويشتو درويشتو کالو ديو ځچے زلمي د لاهور د ښار په حقله
د اقسم له تأثرات د يو عمر رسيده او تجربه کار انسان د طويلے مشاهدے
څخوړ ښکاري .

" لاهور ماته ديوے زړے ښځے په شان ښکاريږي چه د
زوړوالي د پټولو د پاره په مخ غازه او مخې شونډے سرے کړي
او مصنوعي غابښ کيږدي ........ .... ددے مطلب دا نۀ
دے چه زما پنجابۍ ډبه بدي شي يا ئے پنجابيان زنبځے بدي شي
زۀ د تصنع دشمن يم او لاهور د تصنع ناجوړه مثال دے ."

د لاهور د ايسارتيا په دوران کښے چه د شپے په باغ جناح کښے
هغه يو ه لاهورۍ جينۍ د يو بدمعاش نه خلاصه کړي نو په دغه وخت
د دياض د جذباتو نه هم دغه رنګ کيفيت برڅيرن کيږي .

" پوليس د غنډه ګانو علاج يا کوے نۀ شي يا ئے
کول نۀ غواړي . معلوميږي داچه د لاهور په مال روډ چه

---

[1] پېغله . صاحبزاده محمد ادريس

[2] پېغله . صاحبزاده محمد ادريس ص ۱۶۲

کوم سړی ګوري دا دراصل سړی نهٔ دی ښځه دی -که نهٔ وی
نو ولې به ئې ځمکنوګانو لونړو خوېندو ته لاس اچوهٔ -"

دلاهور دسفر په دوران کښې په دغه دوه شواروزه کښې که یو خوا د ریاض او نیلوفر تعلق د ناول دپلاټ دپاره بنیادی خاکه جوړه کړی نو بل خوا په درې څلور ځایه ناول لیکونکې ځېل هیرو ددا سې واقعاتو او حوادثو سره مخامخ کړی چه د دغهٔ دبهادرۍ مړانې، غیرت، مهم جوئی او معرکه ارائی اړخونه ترې ښهٔ څرګند شی -

د فوځ دکمیشن دانټرویو په وخت د فوځی افسرانو سره دبحث مباحثې په لړ کښې ریاض دځېل پوهې، حاضرجوابۍ او بې باکئ داسې مظاهره اوکړی چه هغوئ ټول لاجوابه کړی -

او کله چه هغوئ په ظنز کښې ددهٔ دجرأت او بهادرۍ قوت را اوګماری نو دې دهغوئ دټوقې نه داسې بوقه جوړه کړی چه په هغې کښې ددهٔ د مرګ خطره هم وی او دیو اوچت عمارت نه لاندې ټوپ اووهی - خو دځېل ارادی قوت په برکت صحیح سلامت ځان را اورسوی او په انټرویو کښې په ډرامائی انداز کښې کامیابی بیاموی -

دریاض دغه مهم جوئی او د مرتوب کارنامې په لنډن کښې داعلی فوځی تربیت په اوان کښې هم لیدې شی - او څه وخت چه دسینډ هرسټ کالج یو اوچت باکسر او بدمعاش ګوټه " فوریر " (خوک چه ریاض دیوې بنائسته پېغلې " لیوسی " په حواله ځېل رقیب ګڼړی ) دې بیا بیا مقابلې ته را اوګماری او دهٔ سره دهغهٔ دمقابلې کولو نه بله چار پاتې نهٔ شی - نو دې هم د باکسنګ (سوک مارئ) مشق له غاړه وړکړی - او په یوه مقابله کښې فریر

ACKU

داسے خوشت کړی چه هغه غریب دېه عزتئ له کبله کالج پریږدی .

دریاض کوداس دکلهمو النسانی خوبیانو مجموعه ښکاری هغه په جسمانی لحاظ یو لوړ دنگ سورسپین اودکوټلے ځوانئ خاوند وی - په تعلیمی اړخ هم هغه په هر امتحان کښے اول پوزیشن اخلی - او په بحث مباحثو کښے هغه ددنیا په هره یوه موضوع بانـدے دمعلوماتو نه ډکے خبرے کولے شی - ریاض شاعر هم دے اودموسیقئ دفن پوخ شعور او سپځلے ذوق هم لری - او په دے لړ کښے د بی اے نه پس دوړاندے تعلیم دپاره دعلیګړھ په ځائے په لکنوؤ یونیورسټئ کښے دداخلے دپاره داجواز وړاندے کوی .

" زما دهندوستانی موسیقئ دزده کولو شوق وو.

اود هغے دپاره علیګړ کښے هیڅ ګنجائش نهٔ وُو ."

اود دغے شوق عملی مظاهره هغه دسینړ هرسټ په پارټو او تقریبونو کښے هم کوی - ریاض هلته په ځپله ستار هم غږوی او د لیوسی دپیانو سره په ځپل مترنم آواز کښے ځپل نظمونه هم وائی .

په ځان باندے دحد نه زیات اعتماد او د ذغم حوصلے او استقلال جذبے د هغهٔ دسیرت سره تړلی څیزونه دی .

په لنـډن کښے د فوځی کالج په هاسټل کښے تر هغے پورے خوراک څښاک له ګوتے نه وروړی ترڅو چه د کالج عمله په دے خبره مجبوره نه کړی چه دهغهٔ اود هغهٔ دملګرو دپاره د سور (خنزیر) دچربئ نه دپاک خوراک انتظام اوکړی - د ریاض دے کامیابئ نه دپاکستان سفارتی

---

[1] پیغله - صاحبزاده محمد ادریس ص ۸۴

ACKU

عمله هم گوته په خلهٔ پاتې شي - په ځل ځان باندې ضبط اوزغم او په خپلو جذباتو باندې دقابو اوبری صفت دهغه دسیرت یوه فولادی برخه وی - او دې صفت دصبر غم او مصیبت سره ریاض ته دمقابلې ځل بښودلې وی.
او هغه دعبدالرحمٰن بابا ددې شعر عملی مثال جوړوی چه ؎

په ژوند اومره چه دمرګ دغمه خلاص شې

اسان کار دګړه په ځان باندې ګران ولې

څه وخت چه دنیلوفر درومانی تصوّر په ورباندې دهغهٔ دځنګلي جمیلې حقیقت اودړیې نو ریاض ځل جمالیاتی حیات ځنګړې کړی او د ځل سیُن زړګی آواز دهغهٔ په مرۍ کښې غلې کړی او دنیلوفر په بنائسته مخ باندې دخپلې خور عصمت څهره اوګوری -

" ما زړهٔ کلک کهٔ - دهغې مخ ته دواړو لاسو کښې اونیوه پورته مې کهٔ او دهغې په تندی مې خپلې ریږدونکې شونډې کیښودې - - - - - - زما دخورکیدو نه وراتیدونکې مهر دنیلوفر په تندی اولګید -

دانسانیت خدمت او دزیږلو او بې وسو بنیادمو سره ښیګړه ریاض دځل ژوند اولنی مقصد ګڼړی او دوکالت دپیښې په لنډه پاری دور کښې هغه دعاجزانو اوناتوانو موکلانو دمقدمو پیسوی وړیا کوی - او دپیښې وړې یوې عاجزې او مظلومې بوډۍ ته نهٔ یواځې داچه ځل فیس معاف کړی بلکه دهغې دژوبل شوی بچی دعلاج معالجې ذمه واری هم

---

ٔ پیغله - صاحبزاده محمد ادریس ص ۱۵۱ - ۱۵۰

په خپل سر واخلی .

دیو داسے شخصیت دجوړښت تنظیم او تهذیب دپاره ریاض احمد دخپل نوموړی پلار پروفیسر فیاض احمد دکردار اوسپیڅلی تربیت حواله ځائے په ځائے ورکوی او حقیقت دادے چه دپروفیسر فیاض احمد کردار صغه آئینه ده چه په صغے کښے دپروفیسر[1] ادریس دشخصیت کړهٔ ورهٔ په ډیر واضحه او اوږه شکل کښے ځـلا کوی .

پروفیسر فیاض احمد په اسلامیه کالج کښے دطبعیاتو یو نومیالے عالم اوفاضل استاذ وی . او داوچتے پائے په قاموی اجنارونو اومجلو کښے هم دهغهٔ ډیکونه چاپ کیږی او په کالج دننه اودکالج نه بهر دهغهٔ بے شمیره شاګردان دهغهٔ نوم ته دعقیدت او احترام پیرزو ګیڼے وړاندے کوی .

دریاض دهغهٔ دورور او دصغوی دخویندو په تعلیم اوتربیت کښے ددغے باکرداره او باصلاحیته پلار دتربیت اوبنودنے ډیر لوے لاس وی . دفیاض احمد[2] مضمون سائنس وی خودهغهٔ فطرت شاعرانه وی او د ریاض په الفاظو کښے .

" د[3]صغوی په فطرت کښے شاعری ده اوذړهٔ په پرده

---

[1] دکتاب مصنف پروفیسر صاحبزاده محمد ادریس مرحوم

[2] صاحبزاده صیب د اقتصادیاتو یو نامتو پروفیسر وو . خود خپل دور داوچتے پائے شاعرهم وو .

[3] پیغله . صاحبزاده محمد ادریس ص ام

ACKU

ئے د رافیل او مائیکل اینجیلو په شان شاهکار ونه جوړېږي
.... ... ... دا زما د شاعر پلار د زړهٔ دنیا
ده - د هغه دنیا ته کله کله هغه ماته د ننوتلو اجازت راکړي
او زما ژوند کښے د روحاني خوشحالئ او قلبي طمانيت بهترين
وختونه هغه دي چه د پلار د ے دنيا کښے ستر گے پرانزم
او د اخلاقي او روحاني اوچتوالي معراج اووینم ـ"

دیاض ځائے په ځائے دځپل تربیت په لړ کښے دخپل نوموړي
فاضل مینه ناک درویش صفته او لوړ کرداري پلار دکوششونو او صلاحیتونو
حواله ورکوي - او د هغهٔ د شخصیت په احترام کښے سرښکته کوي.

دفیاض احمد ښځه (د دیاض مور) هم یوه باشعوره، مینه ناکه
ساده باده خو درنه خوږه پښتنه ښځه وي او دځپلو بچو په تربیت او
پالنه کښے دهغے اثر هم ډیر جوت ښکاري - فیاض احمد دخپلو بچو نه
هغه باتور صفتي انسانان جوړول غوښتل په چا کښے چه د افلاطون
د تصوریت د فلسفے عکسونه بریښي او کوم چه د خوشحال او اقبال دفکر په
آسمانونو باندے الوتونه کوي -

" پلار مے د افلاطون په شان د تصوریت د فلسفے قائل
دے - دهغه دا ایمان دے چه انسان په تربیت د فرښتو
ځائے ته رسي -"

او هم ددغے تربیت نتیجه وي چه د پروفیسر فیاض احمد

---

له پیغله - صاحبزاده محمد ادریس ص ۴۲

ټول اولاد په خپل خپل میدان کښې د مرچا نه وړاندې ځي او په تیره تیره د ریاض کودار خو د پروفیسر فیاض د دغه فلسفې پوړو نه ے او مکمل ماډل ښکاري .

د ریاض په کودار کښې اصول پرستي د ټولو نه لوے وصف دے . په اصولو باندے هغه د هیڅ قسم سمجوتے دپاره تیار نهٔ وي . په وطن کښې د وطن نه بهر په ډیرو موقعو باندے هغه د خپلو افسرانو سره د دغې اصول پرستۍ په لړ کښې د بحث مباحثې په دوران کښې د خپلې نوکرۍ هم پروا نهٔ ساتي - هغه یو کامیاب وکیل وي خود وکالت پیشه صرف په دے غرض پرېږدي چه په هغې کښې ټش دروغ چلیږي - او د دروغو پچقله په یوه موقع هغه خپل منشي ته وائي -

" ته ما د وړوکوالی نه پیژنې چه زهٔ په ټولو کښې هم دروغ نهٔ شم ویلے - ما دا فیصله کړې ده چه وکالت به دریښیاؤ کوم - ان که زهٔ د ولوږے نه پکښې هلاک شم -"

د ریاض د کودار نه علاوه په پیغله کښې د پیغلې (ناولټ) کودار د لوستونکو توجه په ځان پورے کلکه نیسي - هغه یوه ډیره ښائسته او باوقاره جینۍ وي - د ډاکترۍ تعلیم سرته اورسوي خو د نوې ژوند

---

له د ښاغلي صاحبزاده محمد ادریس د شاعرۍ مجموعه باتور کښې اکثر نظمونه هم په دغه مرکزي خیال باندے بنا شوي ښکاري .

ع پیغله - صاحبزاده محمد ادریس ص ۲۳۷

اوبدل چاپیرچل په وسعتونو کښے هم هغه دچنډ پښتنی روایاتو دحدونو نه بهر نهٔ اوځی ۔

په حقیقت کښے نیلوفر د ریاض دکردار سیوری بنکاری او د هغے انفرادیت لکه چه د ریاض په شخصیت کښے جذب شوے او فنا شوے وی ۔ د مینے په پرده کښے چه ریاض هغے له دخورولئ کومه والئ ورکړے وی نیلوفر د هغے په درنا وی او احترام کښے سرتیټوی ۔ او دریاض نه هم په سختئ سره د خورولئ دغه رشته سرته رسوی او د هغے ثبوت نیلوفر هغه وخت ورکوی کله چه د ریاض چنغله جمیله د ریاض اونیلوفر د یوځائے کولو دپاره قربانی ورکول غواړی ۔ او ریاض د بے ته جوړ کړی خو ځهٔ وخت چه نیلوفر ته مخامخ شی او هغے ته معلومه شی نو د هغے جواب داوی ۔

" څنګه چه ریاض زما په تندی د ورور ولئ مهر لګولے
دے ۔ دغه شان زهٔ ستا په تندی د خورولئ مهر لګوم "۔[1]

د ریاض او جمیلے په وادهٔ کښے د هټولو نه غټه برخه نیلوفر اخلی او د هغهٔ ناوے له د وادهٔ جوړه هم هغه په خپل لاس جوړوی او بیا چه د وادهٔ بیکیږے ختمے شی او نیلوفر د وادهٔ دکور نه د خپلو زړهٔ ستړو ارمانونو په جیلب کښے روانیږی نو ریاض ته وړاندے شی ۔

" چه[2] کشره خور ځئ نو مشر ورور دے ښکلوی ۔
ماشونړے د هغے په تندی کیښو دے او دیر ساعت ے ایښے

---

[1] پیغله ۔ صاحبزاده محمد ادریس ص ۲۴۴

[2] پیغله ۔ صاحبزاده محمد ادریس ص ۲۵۴

وے - آخر هغه په شا شوه - دهغې په مخ دخدائے پاک نور وریدهٔ - "

# نوے چپے

دپښتو ژبے ستر شاعر او ادیب بناغلی امیرحمزه خان شنواری دادب په هره څانګه کښے طبع آزمائی کړے ده - دشاعرئ نه پس په نثر کښے دسنجیده علمی مضمونونو او مقالو نه تر دمزاحیه ټکلونو انشائیو اود افسانے اوډرامے نه واخله تر دفلمی قصو پورے بناغلی حمزه ستر یادګاری نیـکونه کړی دی - دناول په لړ کښے په "پیغله" پسے چه کوم دویم کتاب راځی هغه هم دبناغلی امیرحمزه خان شنواری "نوے چپے" دے -

نوے چپے هسے خو دناول په نوم او طرز باندے لیکلے شوے زیار دے خو دا په حقیقت کښے دژور فکر اوغټے مطالعے یو داسے دوینګے دریاب دے چه پکښے دحمزه دنوم سره تړلی شوی دادب د بے شمیره اضافو رنګا رنګ چپے شاملے دی - اوکه مونږ اهو مرو نوے چپے دناول په صف کښے راوستل غواړو نو دے ته بیا دپښتو ژبے اولنے سیاسی ناول وئیلے شو - ځکه چه ددے ناول غونډ ته بوده دپښتون قامیت دتصوړ اوددغے تصوړ دسیاسی ، معاشی اومعاشرتی

پس منظر سره تړلے ښکاري ـ او د احقیقت په خپله دکتاب د انتساب[1] اترون له توره و څخه هم بريښي ـ

او په دے کښے هیڅ شک نشته چه نوے چپے په بنیادي ډول چرته په بیانیه او چرته په تمثیلي پیرایه کښے د ناول په شکل کښے د آزادئ نه مخکښے د ملکي سیاسي تحریکونو په حواله د آزادئ د جدوجهد په دغه لوئے بمبیږ او اړیګرې کښے د پښتون فکر او د پښتنو د سیاسي مستقبل په حقله یو اوبړد مقصدي رپورتاژ دے ـ ددے ناول واړه ناریـنه کردارونه سلیم ـ اکبرخان ـ رفیق ، عصمت الله ، خان بهادر، یوسف خان راوځنے نور ثوک په عملي شکل او ثوک په فکري ډګر د ناولیشلي هند د آزادئ د یو نه یو سیاسي تحریک سره تړلي دي ـ

خو د ناول د بنیادي مقصد له رویه سلیم د بناغلي حمزه هیرو ښکاري ثوک چه د پښتني اتحاد د مرام په لړ کښے د اقسم له تأثرات لري ـ

"[2] موږ چه د خورو وړو پښتنو اتحاد غواړو ـ دد ے مقصد د اخو هیچرے نهٔ شي کیدے چه موږ د یو بل همسایه یا غیرهمسایه قام په حق کښے جارحانه ارادے لرو ـ د اخو زموږ حق دے ـ د احق اسلام راکوي ـ د دنیا د هر ملک قانون

---

[1] د پښتون ملت د لوئے خواخوږي او د اتحاد داعي د لوئے پښتون محمد ثمین جان مرحوم په نوم چه ددے قصے بنیادي تصور ئے ماته راکړے وو ـ

انتساب، نوے چپے ـ امیرحمزه خان شنواري ـ

[2] نوے چپے ، امیرحمزه خان شنواري ص ۳۲۷ ، ۳۲۸

ئے راکوی او د ټولو نه زیات دا چه انسانی فهم او مروت
ئے راکوی ۔"

سلیم په تمام اوختـه د کابل د غاړے پښتون وی او د
هغه پلار محمد امین خان یو نوموړے سوداګر وی ۔ دوئ ډیرے موده
راسے په پېښور کښے میشته شوی وی ۔ سلیم یو تعلیم یافته زلمے وی او
داوچتے پائے انقلابی شاعر هم وی ۔ په پېښور کښے د هغه د اکبر خان
د کورنئ سره ډیره راشه درشه وی ځوک چه د تیراه د یوے درنے
او معززے اپریدئ کورنئ سره تعلق لری ۔ د اکبر خان تعلیم یافته خور
صفیه او سلیم دواړه د یو بل د پاره د مینے جذبات لری او د غه رشته د
سلیم د بنائسته او باشعوره خوی کل رخ او اکبر خان ترمینځه هم
جوړه شی ۔

د خان بهادر یوسف خان شاعره لور خورشید جهان چه وفا
تخلص کوی د خپلو نظمونو د اصلاح په غرض د سلیم سره قلمی رابطه ساتی
او حقیقت وادے چه د وفا کردار او د هغے قصه د دے ناول د ټولو نه
دلچسپ خوندور او اثرناک اړخ دے ۔

"وفا" یوه باکرداره او د انقلابی فکر میرمنه بنائسته پیغله
وی ۔ خان بهادر صیب خپله لور د هغے د مرضئ خلاف چا ته ودول غواړی ۔
د غه د وفا د شاعرانه فطرت نه خلاف خبره وی ۔ هغه د پلار د کور نه
ځان راپټ کړی ۔ او د سلیم دوئ کره د محبوبے په نوم د یوے خدمتګارے
په څیر د ژوند شپے ورځے تیروی ۔ په "نوے پښتون" نوم مجله کښے د
هغے انقلابی نظمونه چاپ کیږی او د ډاک په ذریعه د سلیم نه د خپلو

نظمونو اصلاح هم اخلی - سلیم د دے گمنامے شاعرے د فکر اوشاعرانه خوبونه ډیر متأثره وی او ځانے پہ ځانے ئے ستاښنه هم کوی - خوشحال چه په دغه کورکښے د لطیفه بیگم په وسیله د خورشید جهان وفا شناخت او پیژندګلی اوشی نو هغه د دے ځانے نه هم ښه اوباسی - او د یو انقلابی سوچ لرونکی زلمی رفیق په پرائیویټ (ذاتی) مدرسه کښے د جمیلے په نوم معلمه شی - رفیق د سلیم دوست او د وطن د آزادئ یو داسے بےلوثه کارکن وی چه هغه د قام بچو له په خپله ژبه کښے نصابی کتابونه جوړ وی - او شوړ وے د خپل خاندان د ماشومانو نه کوی د رفیق او جمیلے (وفا) سپیڅلی خیالات او ساهوجذبے په لړزه موګ کښے د دوارو زړونه هم یوبل ته راجخت کړی - په آخر کښے خان بهادر ته هم د خپلے لور په حقله معلومات حاصل شی او د سلیم او رفیق او د معوئ د مدګرو سره د ناستے پاستے او د معوئ د بحثونو اثر په هغه هم اوشی هغه د خپله ضده واوړی او د وفا او رفیق د واده اجازت ورکړی -

د نوے چپے زنانه کردارونو ته بناغلی حمزه د قبلتین تهذیب د مخالفت او اسلامی او پښتنی طرز معاشرت د ځلولو فریضه سپارلے وی په دے کردارونو کښے د تیراه والے اپریدئ قبیلے د یوے باشه او اوچتے کورنئ تعلیم یافته جینئ صفیه رچه د سلیم د دوست اکبرخان خور وی) په شوړو کښے د نوی تهذیب سخته پرستاره وی - صفیه پیه د دے لړ کښے د خپلے استاذے لطیفه بیگم د خیالاتو نه سخته متأثره ښکاری.

لطیفه بیگم د پوخ عمر یوه ماډرن ښځه وی ـ او په هاټی سکول کښې مېټرنه وی او د ښځو د حقوقو او د هغوئ د نوی تهذیب په لور د راملو په غرض په مختلف قسم سرګرمو کښې معروفه او د دغې معروفیت له کبله هغه لاتراوسه پورے ناوادۀ کړے کوځی ـ د هغې او صفیې په مقابله کښې د سلیم خورګل رخ د مشرقی اقدارو وکالت او نمائندګی کوی ـ او لطیفه بیګم چه د ښځو د پردے په مخالفت کښې خپل دلیلونه په دے ډول وړاندے کوی ـ

"پرده په حقیقت کښې د خپلو اخلاقو حفاظت ته وائی او که د پردے غائی علت داوی چه د ښځو نرانو تعلقات ذبون صورت اختیار نهٔ کړی نو ته دهغو پرده دارو ښځو حالت ته اوګوره دکومو نه چه شیطان هم پناه غواړی ـ په پرده کښې یواځے دا نه چه بدمعاشئ د پرے کیږی بلکه لوئے لوئے بدمعاشان او غلهٔ په برقعو کښې دا کے کوی ـ"[1]

نوګل رخ د ښځے د معاشرتی مقام په حقله خپل تاثرات داسے بنائی ـ

"د ښځو دا فرائض دی چه د قام دپاره جنګیالی مدبر قانون دان زمیداران او دے قسمه نور بچی پیدا کړی ـ جنګ کول ـ قانون زده کول او زمیداری کول د هغې په فرائضو کښې شامل نهٔ دی ځکه چه قدرت هغې ته وجود ددے

---

[1] نوے چپے ، امیرحمزه خان شنواری ص ۲۰۸

[2] نوے چپے ، امیرحمزه خان شنواری ص ۲۱۳

ځینو نو دکونو قابل نهٔ دے ورکړے ."

او په دے جنګ کښے پرې ګلرخ بیا موي . لطیفه بیگم او صفیه دواړه په آخر کښے د نوی تهذیب او فیشن پرستئ نه توبه ګارے شی او د پښتو د رسم ورواج او مشرقی طرز معاشرت د عظمت او دروند والی قائلے شی .

ګلرخ اګرچه د ځېنے روڼے او سپېځلو خیالاتو له کبله یو زړهٔ پورے کردار دے خو د هغې خبرے اترے او ډېر علمی بحثونه د هغې د علمی درجے نه ډیر اوچت ښکاری او د هغې د کردار سره هیڅ سمون او موافقت نهٔ لری . د سیاست په حقله د ګلرخ د دے قسم نظریاتو او تأثراتو له خو بیا هم د هغې د دوے سیاسی کورنئ سره د ترون جواز لټولے شی .

" د هندوستان د سیاسی ټولګو نه د پښتون ملت په حق کښے هیڅ مفیده نتیجه نهٔ شی وتے . پښتانهٔ لګیا دی په پردی ویر کښے تنړئ شلوی ."

خوکله چه خبره د تصوف په ګنجلکو مسٔلو ، فلسفیانه بحثونو ته راورسی نو لوستونکوته د ګلرخ په پرده کښے په ځپله د بناغلی حمزه علمی شخصیت اوبریښی .

"ده دپاره چه د الله تعالے د صحیح معرفت ښانے پوره پوره د انسان نه سیوا بل په یو مخلوق کښے هم ښکاره نهٔ دی .

---

له نوے چپے ، امیرحمزه خان شنواری ص ۲۷۲

له نوے چپے ، امیرحمزه خان شنواری ص ۲۶۱

او یوائې انسان هغه مخلوق دے چه د هغهٔ د وجود سره
د خالق په وجود پوره پوره دنړا غوروزیږی شي . هم دغه
وجه ده چه انسان صورت پرست دے - انسان په انسان کښے
په وجدانی طور هغه څه محسوس کوی کوم چه هغه د خدائے
پیژندګلو ته تیار وی ۔"

د اکبرخان په کردار کښے د قبائیلی سیمے د پښتون سرتیزی او
یو مخینزتوب هم شته خو ورسره ورسره د تعلیم اوتهذیب په دنړا روښانه
سوچ هم لری - هغه یو مهذبه ، شائسته ، خوش مزاجه ، پوست زبانه
دوست پروره قام پرست زلمے دے خو د هغهٔ د قام پرستئ داجذبه د
اسلامی فکر دسرچینے سره اړه لری - دسلیم اواکبرخان د قامیت او
آزادئ په تصور کښے ډیر فرق وی - هرڅو که مقصد اومرام د دوارو یو
وی - اکبرخان د علامه مشرقی د خاکسارے ډلے یو فعال غړے وی او وروستو
چه هغه د سلیم او د هغهٔ د ملګرو د خالص پښتنی سوچ اثر واخلی نو بیا هم
هغه د چل زور تحریک او زرو ملګرو د از بینست د موقعے نه ځان په شا کولے
نهٔ شی - ځکه چه دا هم د هغهٔ د ذاتی کردار غوښتنے وی - او څهٔ وخت چه
د هغهٔ خور صفیه او د هغهٔ معشوقه ګلرخ هغهٔ ته د دغے تحریک د پریښودو
خبره اوکړی نو اکبرخان پرے ډیر تاؤ اوخوری ۔

" دا څه خبرے کوے صفیه - د پښتون نامه سپکه
کړم - اوس چه په خاکسارانو د ازبینست وخت راغلے دے نو

---

ل نوے چپے ، امیرحمزه خان شنواری ص ۷۷

ترے جدا شم ۔ دا هیڅ‌ړے نهٔ شي کیدے ۔"

او دغه شان په پیښور کښې لوئے شوے دا تیر اه وال پښتون دننگ او پت په معرکه کښےدانگریز د استعمار گولئ دخپل وجود نه تیره کړی ۔

اکبرخان یو دوست پروره انسان وی او ددے ثبوت مغه په مغه ځائے ورکوی څه وخت چه سلیم او د مغهٔ خوږ گلرخ د خپل تیر اه وال نوکر عظیم خان دفریب او لالچ په دام کښے راگیر شی ۔ مغه دوئ د ولجے په شکل کښے په خپل کوږ کښے بندی کړی او چه اکبرخان ته خبر اورسی نو مغه دخپلے قبیلے د بنده عظیم خان د ولقے نه رابهر کړی او خپل کورته ئے راولی ۔

داسے ښکاری چه بناغلی امیرحمزه خان شنواری په "نوے چپے" کښے دپښتون ذکر او پښتنی فلسفے واړه ارخونه راځائے کړی دی ۔ او د ثقافت معاشرت او سیاست نه واخله د ژبے ادب او نصاب تعلیمه پورے مسئلے ئے هم په خپل ناول کښے چیړلے دی ۔ د رفیق د ذاتی مدرسے جوړول ددے یو ښکلے مثال دے ۔

د مدرسے معلمه جمیله (خورشید جهان وفا) چه رفیق ته د نصاب په حقله وائی چه دا به پښتو کښے لیکلے دے ۔ او زما دپاره نوے شے دے نو ددے جواب رفیق داسے ورکوی ۔

" ددے وجه داده چه کوم ۔ بچی د غیرے ژبے دتعلیم

---

ئه نوے چپے ، امیرحمزه خان شنواری ص ۲۸۷

نصاب شروع کړی نو د مغوئ په ذهن یوبار پریوځی - دا په
دے چه ماشومان د غیرے ژبے سره بلد نهٔ وی. ورځ تر ورځ
دمغوئ په ذهن کښے د غیرے ژبے الفاظ ځائے نیسی - او
څومره څومره چه د مغوئ په ذهن کښے داجنبی ژبے ذخیرے
زیاتیږی هومره هومره ورته دخپلے ژبے الفاظ پردی بنکاریږی
بله داچه ددے رد عمل ئے په ذهن دروسته بار اوغورزوی.
نتیجه ئے داشی چه لاخو هلکان ځینکئ د سبق نهٔ تښتی او لا
دومره کند ذهن شی چه هیڅ ترے جوړ نهٔ شی؟

د مقصدیت او افادیت له خوا "نوے چپے" زموږ دادبیاتو
په تاریخ کښے دیو لوړ مقام جوګه کتاب دے - خو ددے مقصدیت او بے شمیره
مقصدونو په هله ګله کښے دنا ول پلاټ ځائے په ځائے زخمی شوے دے - او
دبے شمیره کردارونو موجودګئ لیکونکی ته دومره موقع په لاس نهٔ ده ورکړے
چه هغه په دوئ کښے دبیل بیل سره په خپل خپل ځائے پوره پوره انصاف
اوکړے شی -

که په یوه غاړه د مختلفو واقعاتو او ماحولونو (او دمغے په حواله
دنګارنګ کردارونو) ددے ناول پلاټ مره خوا او بشپړ کړے شوئے
نو بل خوا پکښے دبے شمیره مسائلو او تفصیلاتو او اوږدو بحثونو بر سیره
د ناول د تسلسل او مجموعی اثر مزے سست کړے هم دے - او ددے صرخه
نتیجه داشی چه دابشکلی او سپیځلی واقعات او سنګین او رنګین کردارونه
په یو غیر فطری او غیر حقیقی انداز کښے راڅول شی - او د مغوئ په
غوبل کښے دناول ستر مقصدیت او سپیځلے افادیت هم پیکه او بے اثره

پاتے شی ۔

او په کوم عجیبه ناشونکی ډرامائی او فلمی طرز کښے چه د ناول په وروستۍ برخه کښے د پښتوجوړو د سلیم او ګلرخ اکبرخان او صفیے رفیق، او وفا خان بهادر او لطیفه بیګم او د نسیم او عصمت الله د لور) د یو ځائے کولو اعلان کیږی. هغه یو داسے عمل ښکاری چه د پښتنی اتحاد د تصوّر نه هم بهقاله جوړه شی او د ناول د پلاټ او کردارونو په حقله مجموعی تأثر هم داسنه واسنه شی.

## زرکے سترګے

دا ناول هم "د نوے چپے" سره په یو کال یعنی په ۱۹۵۷ء کښے چاپ شوے دے - او دے ته موږ د خپلے موضوع او اسلوب له کبله خالص رومانی ناول ویلے شو - د بناعلی اشرف درانی په دے ناول کښے د خپل وخت د ژلمو او پیغلو د عشقیه او رومانی تصوراتو مسئله په ډیر ښکلی او رښتینی رنګ کښے چیړلے شوے ده - د ناول دیک په پیرایه کښے زیات تر خطونو دو سیلے نه کار اخستے شوے دے او په دغه رنګ کښے زرکے سترګے د پښتو د شمیر په ناولونو کښے د بیان او اسلوب یو جُدا او منفرد رنګ لری دکوم استعمال چه د دغه وخت د اردو په رومانی قسم ناول نویسئ کښے زیات رواج لرلو ۔

"زرکے سترګے" د یو ژلمی سرکاری افسر اختر د چه دکوټے دسیمے د

یو باعزته او شریفې کورنۍ سره تعلق لری ) او د ایبټ آباد د ښار دیوې غریبې کورنۍ د یوې معمولی پیغلې توستلې شا ښینې د رومانی تعلقاتو قصّه ده - او ټوله قصّه هم د دې دواړو کردارونو د ښینې درازونیاز دیوې اوږدې او دلچسپې سلسلې نه چاپیره تاویږی.

د ناول په ظاهری کروړو باندې د رومانی لذتیت رنګ غالب ښکاری ولې بیا هم د قصّې له اختتامه د ناول لیکونکی د اصلاحی زیار او مقصدیت جذبه راجوته شی. او په لوستونکو باندې یو ښه اثر پریږدی. د ناول د دغ مقصد اړخ ته ښاغلی اشرف درانی په خپله مقدمه کښې دا سې اشاره کړې ده.

" نن ټې زمونږ دنیا کښې په لکونو داسې ساده ځینکۍ موجودې دی چه هغوئ د ښینې د معنوی خویونو نه بې نیازه د خپلو عصمتونو جنازې په اوږو اوچتې کړې وی. نن ورځ زمونږ د دنیا په لکونو ساده او ماشومان ژلمی د ښینې د ګنده اثر اتو په وجه د لارو کوځو خاورې څنډوی. که دوئ ته چرې د دې ګنده ښینې د تیرو کوتونو علم په وخت شوې وې یا دوئ ته د دې ښینې اصلیت ښودلې شوې وې.......
چه دا ښینه هغه ښینه نهٔ ده چه کومه د دوئ په مغزو کښې پیښه ده - کومې سره چه روحانی خوشحالئ وابسته دی. بلکه دا یوه داسې ښینه ده چه د دې په وجود شیطانان

---

له زرګې ستړګې ، اشرف درانی مقدمه ص س

هم نعنتونه واڼې نو د زلمو طبقه به یقیناً د راتلونکو خطرو
نه په امن وی ."

د دغه غرض مینې په حقیقت باندې بناغلی درانی په خپل ناول
کښې ډېر ښه اچولے ده او د اختر او شاهین د کردارونو په حواله ئې د ننه زمانې
د تعلیم یافته زلمو په دغه رومانی تصوراتو باندے یو ترېخ طنز
کړے دے .

بناغلے درانی د ناول د مرکزی خیال په حقله دا دموے هم لری . چه
" دا دیو دوست ، یو عزیز یا بل چا باندے تېر شوی
واقعات نهٔ دی او نهٔ دد ے ناول تعلق د مغنو د کوششونو
سره دے - بلکه دا هم په ما په خپله تېر شوی حالات دی ."

د شاهینې سره د اختر او لنی ملاقات هغه وخت کیږی چه
هغه د دولسو کالو معصومه ساده او بناسته جینۍ وی . د هغې د پلار سره
د اختر تعلق د اسے جوړ شی چه دے په گرمئ کښې د سیزن ( موسم ) د
تېرولو په غرض د هغوئې په کاونډ کښې د کرائے په کوټ کښې ډیره شوے
وی . او څلور کاله پس چه د شاهینې د پلار سره د زوړ تعلق په واسطه
په پېښور کښې د اختر لیدل کتل اوشی نو د هغهٔ دیر خاطرمدار اوکړی
او دد غے نه پس د شاهین او اختر تر مینځه د خطونو په ذریعه رومانی رابطه
جوړه شی - چه د هغې ابتدا د شاهینې له خوا اوشی .

اوځهٔ وخت چه اختر هغه د څو کاله وړاندے معصومه شاهینه

---

له زرکے سترگے - اشرف درانی مقدمه ص ف

په ایبټ آباد کښې اووېنی نو هغه یو حسین او ښکلو کې قیامت وی او دهٔ ته په داسې انداز کښې دخپلې بې لوشه اولیواله مینې باور ورکړی چه اختر دخپل خاندان دناخوښئ او مخالفت باوجود هم د هغې سره د وادهٔ پخه اراده اوکړی -

خو داختر دخیالاتو بنائسته ماڼئ هغه وخت سر دلاندې راګوزار شی کله چه دغه ساده او معصوم حسن دحقیقت په مکروصه اوناولې څهره کښې لځان اوښائی - اوځهٔ وخت چه هغهٔ ته دشاهینې د وادهٔ د تیارئ دپاره دهغې په خواهش لیږلے شوے منيآرډر بیرته داستون شی نوساده عاشق لاتر دغه وخته دخپلې معشوقې په حقله په خوش فهمئ کښې پروت وی او دامید لمن ئے ټینګه کړے وی - خو دهغهٔ سترګې هغه وخت اوغړیږی چه دهٔ له دشاهینې دپلار خط راشی او په هغې کښې صفا صفا لیکلې وی چه -

" شاهینې زموږ او زموږ دخاندان حیا او عزت په خاوړو کښې ملاؤ کړو هغه داختر په ورځ څهٔ وخت چه زهٔ دنورو وړو زګو سره دشاهینې مشرے خور کره تلے وُم چرته اوتښتیدله - وروستې خو زموږ په تا شک وو ...... لیکن زموږ دمحلے بعضې کسانو شاهینه دیو بل زلمی سره دپنډئ دبس په اډه لیدلے وه ."

اوشاهینه دخپل کردار اصلیت دخپل پلار په نوم په هغه

---

له زړګے سترګے ، اشرف درانی ص ۳۳۷

خط کښې ثرګند کړی دکوم له خوا چه دهغې چنغول رچاته چه داختر نه مخکښې شاهین کوثردن شوی وی ) یو ډیر ساده سړے وی او دهغه نه زیات ساده او بے وقوف دهغې په خیال کښې دهغې ماشق اختر وی څوک چه په شلمه صدۍ کښې هم دحقیقی مینې په لټون کښې سرګردانه ګرځی ۔

" تاسته بنهٔ معلومه ده چه زما عمر اتلس کاله دے او زه سن بلوغت ته رسیدلے یمه ۔ دشریعت او قانون د جهته زهٔ دخپلې خوښې وادهٔ کولو مجازه یمه ۔"

دشاهینې کردار د معصومیت په پرده کښې دیوے فریبے او چالاکے جینۍ وی چه داختر غوندے تعلیم یافته او تجربه کار بنده هم سنے دخپلو روماني مکالمو او عشقیه خطونو په دام کښې دسرنه تر پښو پورے اونښلوی ۔ داختر سره دهغې ترون محض دخپلو فرمائشونو دپوره کولو دغرض پورے محدوده وی ۔ خپل چنغول خو دهغې په خیال کښې بدرنګه او نادارة وی او داختر په حقله دهغې اندازه داوی چه دهغه تعلیم یافته خوش شکله او مالداره هم دے لیکن افسوس چه یو شاعر او ادیب دے او شاعران او ادیبان صرف په محبت بانډے ځان ورکوی ۔ او دجنسی ضروریاتو نه ناخبره وی ۔ او دکوم سړی سره چه هغه تښتی هغه یو نمبر دس ید معاش خو مضبوط او طاقتور سړے وی ۔

دبناغلی درانی دغې نظرئے سره دموجوده دور دآزاد مصوسائټۍ

---

له زړګے ستړګے ، اشرف درانی ص ۳۴۰

د ذنمو پيغلو د روماني رشتو ترحده په انفرادي ډول خو اتفاق کيدے شي وے دا ديوے کلئ په توګه تسليمول يو عبث خيال ښکاري - دشا هينے دکردار انجام چه صفه په کوم رنګ اوکوم بنده سره په منسوب کيدو کښے ښائي صفه که غير فطري نهٔ وي نو غيرحقيقي خو ضرور ښکاري - داختر ګونئ باشعوره سري نه چه صفه په کوم شکل کښے پيسے خوري صفه هم په آخري مرحلو کښے يو ناشونے عمل ښکاري -

د واقعاتو اوکيفياتو غير ضروري تکرار اوبے ضرورته طوالت په دے ناول کښے په طبيعت دره ونه وانے ذ ابيټروي خو په قصّه کښے د (ختر تيا) سسپنس عنصر د دلچسپئ سامان پيدا کړے دے -



# مغرور

د صاحبزاده محمد ادریس "پېغلې" نه پس چه په پښتو ناول کښې چا د کردار نګارۍ خیال ساتلے دے هغه بناغلے میاں سید رسول رسا دے. بناغلے رسا لکه د ستایلي مرحوم صاحبزاده صیب په شان د ختیځ او لوېدیځ ادب ښه پراخه مطالعه لري او هغه په ناولونو کښې په کردار نګارۍ باندې زیاته توجه ورکړې شوې ده. د بناغلي رسا په ناولونو کښې خصوصاً مغرور. شمې او مامونئ د هغې کردارونو ډورے او تفصیلي کرداري مطالعې ښکاري په کومو باندې چه د ذکر شوو ناولونو نمونه هم بنا شوې دي او د دغو کردارونو سره تړلي شوي د ناول نور کردارونه محض د مرکزي کردار په وړاندې امدادي (Support) کردارونه معلومېږي. او په دے وینا کښې هم څه مبالغه نشته چه تر اوسه پورې رسا صیب د پښتو ناول په میدان کښې واحد لیکونکے دے چا چه د تکنیک له رویه د ناول مکمل کردارونه وړاندې کړي دي. دا کردارونه چه د کوم ماحول او چاپېریال نه راختلي شوي دي د هغې سره پوره پوره جوړښت او مناسبت هم لري او هغه غوښتنې هم تر سره کوي کومې چه د لیکونکي د مقصد سره اړه لري. او کومې چه د دغو کردارونو د فطرت او نفسیاتو سره سمون خوري.

ACKU

"پټه مفروره کښې دیوې قباستلی جینئ ګلابۍ کردار د ناول یوکونکی د توجه مرکز دے - ګلابۍ یوه داسې جینئ وی چه د غربت او نادارۍ له کبله دخپلې طبقې د نورو جینکو په شان د حالاتو د بدمرغئ په وړاندے توره وال نهٔ غورزوی . هغه نهٔ خو دخپل عصمت سوداکوی نهٔ دچا په کور کښې کار خدمت ته غاړه ایږدی او نهٔ دسوال په ټکروباندے ځان پالل دهغې د فطرت موافق خبره وی - دهغې د فطرت خود داری او خود اعتمادی هغه یوه داسے پیشے ته وړاندے کړی چه د اخلاقیاتو او قانون له خوا اګرچه دغه یو ناخوښه او ناجائزه عمل وی لیکن د ګلابۍ په خیال کښې په دغه پیشه کښې دهغې ضمیر مطمئن وی - هغه دسرو جامے واغوندی او یو داکه ماره شی او په دغه اوران کښې دهغې ملاقات د عمرګل سـره اوشی -

دغه وخت دجنګ زمانه وه او د پیښور ښار ته بهرنۍ کارخانه جوړه شوې وه چه په هغې کښې دخواوشا کلو غریبو جینکو او ښځو مزدوری کوله او دبد معاشانو له ویرے به پرے خامخا دپولیس څوکۍ هم لګیدلے وه. په دغه ورځ د پولیس په سپاهیانو کښې د عمرګل ډیوټی لګیدلے وه او دعمرګل په وینا .

---

ك دبناغلی رسا دا ناول په کال ۱۹۶۴ء کښې چاپ شوے دے .

" دغهٔ دوران کښې مايوه چسته چالاکه او بنائسته جينئ اوليده چه ځيلئ ئ په پښو کړے وے او د کارخانې په دروازه دننوتو په وخت ماته لږه پښه ښوے شوه او مسکئ غوسندے شوه - اوبيالاړه - زما په زړهٔ کښې دغې دېيدو اودغې در درک په حقله تلوسه پيدا شوه چه دا څوک ده - څهٔ ساعت پس زما سپاهي ملګرے واړ خطا او سا ښوئے را اوغليد چه په کارخانه کښې جينکئ په ځيلو کښې په جنګ شوي دي او يوے جينئ بله په چاقو اووهله - اوموږ ته معلومه شوه چه هم دغې جينئ د بلے په پښو ن کښې چاقو ټوبيلے وو او وينے تو ے روانے وے - "

دغه د "مغرور" دګلابئ اوله پيژندګلو وه اودغې حرکت کومه وجه چه ګلابئ عمرګل ته بيان کړه هغه داوه چه دغې بلے جينئ په ګلابئ پورے توقے کولے چه اپريدئ توور ته تهٔ دلته څهٔ کوے زهٔ چوته په تيراه کښې ځېل خروړته ټروه - او د ګلابئ په الفاظو -

" دغه ږله به ے نه - په تولو اپريدو پورے ئې خندا کوله - که زما په ځائې تهٔ وے نو تا به څهٔ ځيل کولو. "

اوعمرګل ته هم دغې بنائسته جينئ په دے جواب کښې د ننګ او پښتو يو داسے بڅرے اوبرلښي چه هغه په ځيله د مغهٔ په زړهٔ کښې د مينې غرغنې ے بورے کړی -

---

ئے مغرور ، ميان سيد رسول رسا ، ص ۴۳ ، ۴۴

ئے مغرور ميان سيد رسول رسا ص ۴۵

دغه وخت دهغهٔ په خیال کښې دقانون فیصله ځان اوښائی او دګلابئ دا الفاظ هغه په یوه بله فیصله باندې مجبور کړی ـ

" زما خوبه په جیل کښې ساه اوخیژی او زما بوډئ موربه ځهٔ کوی ـ ددې نه خو به ښه داوی چه ماځوک اوو ژنی ـ زهٔ د مرګ نه نهٔ ویریږم خو دجیل نه ډیره ویریږم ."

او بیا عمرګل سپاهی په چل ول هغې ته دتښتې لار اوښائی ـ ځینئ اوتپ او عمرګل په دغه جرم کښې یوه بیاشت حوالات هم اوخوړی اودهغه " بدله " هم لاړه شی ـ عمرګل لا ددغې بناستُه او مجبه اړیسدئ په خیالونو کښې ورک وی چه هغهٔ ته دچا په لاس دسروزرو یوه ګوته راولیږلې شی چه دپاسه پرې دګلابئ نوم کنده وی ـ او دغه شان دعمرګل اوګلابو دمینې رشته جوړه شی ـ ګلابئ اوس یوه مفروره وی او هغه عمرګل سره په دې شرط دتل عمری ملګرتیا لوظ کوی چه هغه به چیله نوکری پریږدی او باقی عمر به داسې تیروی څنګه چه به ګلابئ تیروی ـ

دعمرګل جواب داوی ـ

" تهٔ[2] مې ازاده کړې خو ځان مې بندی کړو ـ ځان مې لکه دګتی بند په بند او تړلو ـ اوس نهٔ نوکری حوصل راکوی او نهٔ ژوند "

او ګلابئ چه دعمرګل دخبرې کوم جواب ورکوی په هغې کښې

---

[1] مغرور، میاں سید رسول رسا ص ۳۷

[2] مغرور، میاں سید رسول رسا ص ۵۸ ـ ۵۹

دهغې دژوند تړوله فلسفه پټه وی .

"پروا نشته . د دوړئ غم به دِ هم زهٔ وکوم . چه ځان ته دوړئ پیدا کوم نو تا ته به ئې هم پیدا کړم . د دوړئ څښتن خدائې هرچا ته ورکوی . دکوڅو سپی هم چه حرکت کوی نو په حرکت کښے ئې برکت وی اود ولوږے نهٔ مری . خوښیادم چه دځان نه دِشیں په ځائې شله کیــدره جوړه کړی نو پکار ده چه د لوږے نه مړ شی . زهٔ ښځه ذات یم خو تر اوسه ئے خیر نهٔ دے غوښتے ."

او څهٔ وخت چه عمرګل بیا نوکرئ ته تلل غواړی نو کلابـئ ئې په دے ویښا لاجوابه کړی .

سړے چه خدائې سړے کړی نو بل هرکار کوی خو یو نوکری نهٔ کوی ."

دکلابـئ په خیال کښے دځپلو مټو په زور د چا د حکم او مرضئ نه بغیر ګټل او خوړل په هر شکل کښے یوه جائزه او روا خبره ده. د هغې په نزد دا دنیا د زور د برئ ځائې دے او هر بنـده ئې دځپل همت او طاقت په قـدر موی .

هغې ته د نوکر پیشه ایرـیدی نه ده که مار ایرېدے غوره بشکاری . او څه وخت چه عمرګل ته معلومه شی چه دا ښائسته جادوګره په حقیقت

---

ئه مغرور ، سید میاں رسول رسا ص ۶۰

ئه مغرور ، سید رسول رسا ص ۶۱

ACKU

کښې یوه ډاکه ماره ده او دکان خانې نوکري محض دخلقو دخیال غلطولو له کبله کوي نو هغه اوبوږنیږي خو دعمرګل دحیرانتیا او د هغهٔ په سترګو کښې د بوږنیدو تپوسونو جوابونه ګلاب بي دا سې ورکوي .

" زهٔ خو په لکړه روزي نهٔ پیدا کوم - نهٔ دښار په کوڅو کښې په ګېـډه دوډۍ پسې هر ماښام دسپوږمۍ چنګوسته کوم - او د هغوئ روزي وهم - او نهٔ لکه د مزدورانو هغه وله ورځ دکسته کري خر په شان بوږي وړم - او نهٔ د بې ننګۍ کار کوم چه کني چکله کښې کښینم .......... - راشه چه تا ته دځپلې روزۍ سامان اوښایم ."

او ګلاب بئ د روزۍ دغه سامان په ټله کمره کښې پروت وو یو پنځه ډزې تمونچه یوه پیش قبضه - دسرو خرو سپلمټي رنګې جامې ، پټکې دکارتوسونو ډک کمربند او شا رپې شپا ړې ځپلۍ .

ګلاب بئ د پیښور ښار په یوه ګمنامه غونډي کوڅه کښې په یو وړوکي شان کوټه کښې د یوې بوډۍ نوکرې سره اوسیږي او هم په دغه کوټه کښې هغه عمرګل دځپلې پېشې ملګرتیا ته جوړ کړي او په ډیر ساده ډول د دوارو واده اوشي عمرګل ځپله نوکري پرېښې دي او د عمرګل نه "عمرې" بد معاش شي . او یوه ورځ ګلاب بئ هغه د بد معاشانو جوارګرو اډې ته بوځي چرته چه هغه "رویتو بد معاش" د جوارۍ په پیسو بانډې په ښار کښې داخلاص کري او وې وژني او د دغې واقعې نه پس هغه د ډاکه مار و بد معاشانو د ټولې سردار شي . دا و

---

له مضروب - سید رسول رسا ص ۶۷

ACKU

شاید چه په دے تول ناول کښے هم دغه واقعه د عقل نه لرې خلاف او د فلمی طرز واقعه معلومیږی) د داکه مارئ په پیشه کښے هم گلابئ د عمری استاذ وی او دلته هم هغه د بقائے اصلح یعنی (Survival of the Fittest) والا نظریه باندے عمل کوی - او عمری ته نصیحت کوی چه .

" که څوک په ویش کښے ورانے کوی او ستا حکم نهٔ منی فوراً څسر خوروه - گنی که دوئ ته معلومه شوه چه ستهٔ په سرې صرفه کوے نو ستا سر به خورکړی "

او هم د دغه نصیحت په رڼا کښے عمرے د یوے داکے نه پس هغه سرکش ملگرے څوک چه په ویش کښے د نورو نه غمته برخه اخستل غواړی په تماچه اولی -

عمرے اگرچه په دے خپله پیشه کښے ډیر وړاندے لاړ شی او خلق ئے د یو نامتو مفرور او ډاکو په نامه یادوی خو د هغهٔ په کردار کښے څهٔ داسے انفرادیت نهٔ ښکاری کوم چه د هغهٔ خپل وی یا د څهٔ نه چه د هغهٔ د کردار شناخت کیدے شی - داسے معلومیږی چه ښاغلی رسا تول زور هم د گلابئ په کردار اچولے وی .

کهلابئ د عمری نه هغه وخت اثر اخلي کله چه هغه په کارخانه کښے یوه ښځه په چاقو اووهی او عمرے د دومره جرأت نه کار واخلی چه د خپلے سرکاری نوکرئ خیال هم اونهٔ ساتی او هم له دغه وجے د دے کلک څکرے جینئ زړهٔ د هغهٔ دپاره د مومو په شان ویلے شی -

---

له مفرور، سید رسول رسا ص ۱۳۱

دکلابئ د تصوّر هیرو یا ائیډیل یو ننګیالے انسان کیدے شی

" زما ننګیالے آشنا خوښ وی - تور ماړ او سرداړ
چه د سرې سر ورته د چرګوړی سر صم نهٔ ښکاری - او
بنهٔ ګټه کوی او بنهٔ عیش معاش کوی "[1]

او څهٔ وخت چه عمرے جغے ته دا مشوره ورکړی چه دا زمونږ ژوند ډیر د خوارئ، کړاښت او بے یقینئ ژوند دے او راځه چه کراچئ ته لاړ شو هلته به خواری مزدوری کوو او څیله ګوزاره به چلوؤ نو ګلابئ بانده داخبره ډیره بده اولګی نو عمری ته صفا اوواې .

" مونږ د پیسو او یارونو اوچتولو دپاره نهٔ یو پیدا شوی.
یار خو د خزکاړ دے - خړ پرے بنهٔ ښکاری ........ خو دا سے
معلومیږی چه ته ډیره موده زما یار نهٔ شے پاتے کیدے - بیتهٔ
به داوی چه زهٔ په وخت ځان ته یو نر او ښتون یار اوګورم "[2]

او بیا چه ګلابئ د عغه سینتهٔ دلوتولو منصوبه جوړه کړی کوم چه د ریل ګاډی په ذریعه د پیسو نه کراچئ ته تلونکے وی او د دغے کار دپاره د هغے ځان له په عمری باور پاتے نهٔ شی او دیو مناسب او د دغے کار جوګه سړی په درک کیتے د کوم نه درے ورځے غائبه شی .

او دغه سړے چه راشی نو هغه یو سور پیین ، توړ دنګ ځوان وی لږ ډیر سبق ئے هم ویلے وی او په کومه بے باکئ او آزادئ چه دګلابئ سعره

---

[1] مفرور - سید رسول رسا ص ۱۳۸

[2] هم دغه کتاب ص ۱۵۵

خبرے اترے کوی نو مغه په عمری باندے د رقابت اوربل کړی - اوبیا چه دغه

ځوان په کوم چل، هنر او جرأت دګادی په دبئ کښے دیسته اتیچی کیس تر لاسه

کړی - د مغے دار په زړه ډزړه کښے عمرے هم ورکوی - خو څنګه وخت چه د یسته

د پټګے حقیقت معلوم شی نو مغه تشے دوه زره روپئ اوخیژی - او په د مغے

دوه زره و کښے هم دغه ځوان غوښتے مونډے زن روپئ اخستل غواړی نو

دغه وخت د عمری د رقابت جذبه په مکمل شکل کښے را اولړزیږی مغه د

کلابئ په سبق عمل اوکړی او دغه ځوان د شا د مخے په اتبار کښے اولی او بے غمه

ئے کړی -

خو د دے واقعے اثر په کلابئ باندے ډیر اپوته اوشی - مغه د عمری

نه بد زړے او خفه معلومیږی او چه څۀ ورځے پس ورته عمرے بیا د دے

ناولی ډوند د پر یښودو اوکواچئ نه د تلو مشوره ورکړی نو مغه پرے

لګه د زخمی مزری رابېره شی او ډیر په بے باکئ ورته د چل زړۀ حال

اووائی -

" زۀ ستانه کوکه کوم - زما ته سخت بد ے شے - زما میاں

مغه وو چه تا اووژلو - تۀ زما یار نۀ ئے زۀ اوس د مجبورئ نه

تاسره عمر تیروم -"

د دے وینا نتیجه کلابئ ته د مخکښے نه معلومه وی او مغے چل

انجام د ځان د پاره د اکاهو نه خوښ کړے وی مغه د عمری دلاسه ځان قتلول

خوښ کړی خو د غلامئ مجبورئ او د وه پر یقتوب ژوند تیرول د مغے د وس نه بهر خبره وه -

---

[1] مفرور - سید رسول رسا ص ۱۲۲

# شمئ

دمعروف پښتو شاعر دبناغلی سید رسول رسا د ناول شمئ پلاټ هم د یوې جینۍ شمئ د کردار نه تاوېږی . شمئ یوه داسې جینۍ ده چه هغه په بازار حُسن کښې لویه شوې وی خو دځېل نورانی ښائست سره سره د تعلیم او تهذیب په خوبو باندې هم ماموره وی - د لاهور په دغه بدنام بازار کښې چه په کوم روایتی قسم ماحول کښې ښځه ذات تش دعصمت د سوداګرئ ، فیشن نمائش او تصنع نوم وی هلته هم هغې دځلې طبقې د نورو جینکو دفطرت خلاف دځېل کردار انفرادیت قائم ساتلے وی - او د "خان ګل" په شکل کښې چه هغه دپاکې او پې لوثه مینې دښا بیا موږی نو دهغې په زړه کښې هم داخلاص او صداقت دیوے روښانه شی -

خان ګل په لاهور کښې دایم اے طالب علم وی او دمالدارے کورنۍ یو خاموش طبع شریف پښتون زلمے وی . خان ګل په اول ځل شمئ دلاهور په مال روډ وینی او دهغې د لاثانی ښائست نه متأثره کیږی او بیا چه دے د ځېل اواره مزاج او سیلانی دوست خانزاده سره د انارکلۍ دکپړے په یو دکان کښې شمئ صحی کړی نو ورته معلومه شی چه خانزاده دغه جینۍ پیژنی او چه خانزاده ته معلومه شی چه خان ګل د دغې جینۍ په ښائست زړه بائللے دے نو ورته وائی .

"واقفیت به دِ ورسره اوکړم خو په ژوند به دِ پښیمانه کړی ."

اوبیا خان کل ته معلومه شی چه شمئ د هیرامنډئ یوه ډمه ده . ډېښتنو د سیمې سره تعلق لری . لسم پاس ده - دورکوتوالی نه په دغه بازار کښې لویه شوې ده او په اردو او پنجابئ کښې ښې غزلې وائی .

او بیا د خانزاده په وسیله خان کل د شمئ محفل ته لاړ شی او په اولنی ملاقات کښې شمئ ده ته بنائسته معصوم او د دغې چاپیرچل سره نابلده ساده زلمی د خبرو نه داسې متأثره شی چه دهغې په زړهٔ کښې هم د خان کل دپاره د پاکې او بې لوټې مینې جذبات راوتوکیږی . او هغهٔ ته نصیحت اوکړی چه دې خطرناک بازار ته تګ راتګ ستا غوندې د شریف هلک دپاره ښه نهٔ دی - او کله چه خان کل هغې ته اووائی .

" ستاسو په شان جینئ ته خو په دې بازار کښې اوسیدهٔ نهٔ دی ښکار "[1]

نو شمئ ورته په جواب کښې وائی .

" زموږ خو دغه ژوند دې - دلته پیدا کیږو دلته به مرو - زموږ څه دی زما په شان جینئ که برباده شی څه او که آباده شی څه - خو ما سره غم ستا په شان د زلمی دې ستا اموخت دلته نهٔ دې بنهٔ ."[2]

او په وړومبی ملاقات کښې خان کل ته معلومه شی چه د دغې بازار د ښځو په حقله چه کومې خبرې هغهٔ اوریدلی دی شمئ د هغې نه

---

[1] شمئ ، سید رسول رسا ص ۵۷

[2] ایضاً ص ۵۸

څه جدا مخلوق ښکاري -

شمې په عمر کښې د خان ګل نه یو کال کشره وي - خان ګل د دویشتو کالو وي او هغه دیو ویشتو خو خان ګل چه هغه په کوم انداز کښې مخاطب کوي نو داسې ښکاري لکه چه د هغې په وړاندې یو ماشوم ولاړ وي - او کله چه خان ګل هغې ته د تحفې په دول د سنګار سامان یوسي نو شمې ورته په داسې انداز ګویا کیږي -

" معصومه تاسته داچا اوښئیل چه ښځې ته دده څیزونو تحفه ورکول ضروري وي - دا به درته خانزاده ښئلې وي "

او خان ګل هم د هغې د شخصیت په رعب کښې ځان په ربتیا یو ماشوم ګڼړي -

" نه جي خانزاده خو سحر رخصت شوې دے - دا ځه په خپل فکر راوړي دي - یو هیڅ نه خوښه ے وا خستل نو -"

او شمې د هغه د زړه ساتلو دپاره واتې -

" داخو ډیره ښه تحفه راوړې ده - زما خو ډیره خوښه شوه - خو بیا چه راځې - داکار مه کوه - تاسته مابګاه نه وو وئیلي چه فضول پیسے به نه خرڅ کوے -"

او دا هغه رویه ده چه د دغې بازار د یو کم عمره جنئې نه ځه هم د تجربو په بنټې کښې یوه سن رسیده او تجربه کاره ښځه جوړه کړے وي - او څه وخت چه خان ګل د هغې د منع کولو باوجود هم د خپل راتګ

---

ـه شمې - سید رسول رسا ص ۱۰۵

دپاره دمینے مجبوری وړاندے کړی نو د شمئ دکردار معصومیت او نیکی ځان داسے رابرخیره کړی -

" بنهٔ نو که تهٔ دبشتیا وائے نو داخو لا بیره خبره ده - زما په شان ځینئ سره مینه کول ستا دپاره لا ډیره خطرناکه خبره ده -"

اوځهٔ وخت چه د شمئ د خان ګل په مینه باندے باور یوخ شی - نو بیا هغه ځپلو روایتی عاشقانو له جواب ورکړی چه په هغوئ کښے اکثر د شمئ ځوانی د دولت په زور اخستل غواړی - ځکه چه شمئ د نوړو دمو په شان د دولت هوس نهٔ کوی او هغه په لعل او کوڅ لعل کښے فرق کولے شی -

د شمئ کردار داردو د کلاسیکی ناول امراؤجان ادا د مرکزی کردار سره ډیر مشابهت لری - د مرزا هادی حسن رسوا امراؤجان ادا په کردار کښے هم دغه قسم مجبور او مخصوص معصومیت ځلیږی کوم چه د شمئ په کردار کښے بریښی - د "سا" "شمئ هم د "رسوا" "ادا" په شان تعلیم یافته او د مهذب سوسائټئ د ناستے پاستے او مجلس جوګه ځینئ وی - اوکه ادا شاعره وی نو شمئ هم د شعر د شاعرئ ذوق لری او هغه خان ګل ته خواست کوی چه هغے ته د غالب دیوان بنائی -

په اردو ناول نویسئ کښے دامراؤجان ادا د انفرادی خوبیانو په حقله بناغلے وقار عظیم ځپله تجزیه کښے وائی چه -

---

[1] شمئ ، سید رسول رسا ص ۱۰۷

"رسوا په امراؤ جان ادا کښې فلسفیانه فکر ـ نفسیاتي تجزیه ، ادبي او شاعرانه ذوق او فني ښائست په يو ښائسته ترتیب کښې رايو ځائې کړي دي او په اول ځل ئې په اردو ناول نګارئ کښې د فلسفې او شاعرئ ستر قدرونه سره غــــاړه ايستي دي ـ"[1]

او د ښاغلي رسا د فلسفیانه او شاعرانه فکر بخري هم د شمئ کودار نه ځائې په ځائې پورته کيږي ـ

"د روحاني فيض ضرورت زمونږ خلقو ته د عامو خلقو په نسبت زيات وي ـ ځکه خو د داتا ګنج بخش زيارت هم د جمعې په شپه زمونږ خلقو نه ډک وي ـ"

ښاغلے رسا د شمئ د کودار په ذريعه د معاشرے په دورنګئ او دوه پړيتوب باندے ځائې په ځائې ترخ طنز کوي او په دے ډول د ناول مقصديت او افاديت زياتوي ـ

"زه چه چرے هم د شاهي مسجد د نګو د نګو منارو ته اوګورم نو زما په زړهٔ يو عجيبه اثر کوي ـ زما په زړهٔ کښې څه نامعلومه او نابلده شان جذبات راولړزوي ـ داولے؟"[2]

او د دے وے جواب خان ګل دا سے ورکوي چه ـ

"داځکه چه تهٔ د ژوند واقعاتو په دے باندے کښې

---

[1] داستان سے افسانے تک ، وقار عظیم ، ص ۷۷ ، ۷۸ (ترجمه)

[2] شمئ ، سید رسول رسا ص ۲۴۸ ، ۲۴۹

کښینولے ئے ۔ ګنی د فطرت تقاضا د څه بل څهٔ ده ۔ دا ژوند
ستا مجبوری ده ستا رضا نهٔ ده ۔"

کله چه خان ګل دشمئ نه د ا تپوس کوی چه په دے بازار کښے دا دومره ښښتنے جینکئ څنګه راغونډے شوے دی نو دد ے یو تپوس په شا ناول نیکونکی دبے شمیره تپوسونو یو قطار ګولے وی او ددغے تپوسونو جوابونه بایډ چه دهر باشعوره او باضمیره پښتون سره وی خو مصنف ددے مقصد دپاره هم دشمئ خپله لهجه مناسبه ګڼلے ده ۔

"خلق د پیسو دپاره هر څهٔ کوی ۔ ښښتنے جینکئ لږے په رنګ جوسه اوکړهٔ دږهٔ د نوږو جینکو نه ښکلے وی او دلته د ښکلو جینکو خریداران ډیر دی ۔ په دے وجه خلق ئے په قسم قسم چلونو راولی ۔ اوچه یو ځل راشی ......... بیا چرته لاړے شی ؟"

او دشمئ ددغه سوال په شا دسوونو زرګونو تورسرو دبے ارزئ یو اوږد داستان پروت وی او بیا سمدستی بنا غلے رسا دخان ګل په ژبه په ټول پښتون قام باندے دطنز غشے چلوی ۔

" د پښتنو په علاقه کښے خو خلق ایله په شک هم په جینئ سرے وژنی ۔ او ښښتانهٔ خو په دے معامله کښے ډیر سخت دی ۔ نو ګورئ دا جینکئ دلته څنګه راشی ۔"

---

۱ شمئ ، سید رسول رسا ص ۱۴۹

۲ ایضاً ص ۱۵۰

او د شمئ په وجود کښے د عمرونو جمع شوی ذهنی تول په یو ځائے

دمغے تر حلقه پورے رااورسی او د مغے تراخهٔ چه دمغے دخوږے لهجے سره

حل شی نو په پسته ژبه دومره قسل رے اووائی -

" زهٔ به ددے څهٔ جواب ددکړے شم - دا خو دجینکو دپاره

دومره دشرم خبره نهٔ ده - څومره چه د پښتنو زلمو دپاره.

ددوئ دلته ناسته پاسته خو دغوئ شرم دے ۔"

د مفرور " ګلابئ " او د " شمئ " په کردارونو کښے دایو شان والے

رومانټلت خو شته چه دواړه د حالاتو په یرغل کښے دیوے داسے پیښے

سره ترلی شوی وی چه هغه دمعاشرے د اقدارو او اخلاقو په توګه

ناروا او ناخوښه پیښے وی خو په څپله څپله پیښه کښے اوڅپل څپل چاپیرچل

کښے ددے دواړو د کردار د انفرادیت او دغوئ دخود دارئ له کبله دلوستونکو

همدردئ هم د مغوسره مل وی - خو ددواړو په کردار کښے واضحه فرق داوی

چه ګلابئ په څپله پیښه فخر کوی او هغه جاری ساتل غواړی او شمئ

دد غے ماحول نه د تیښتے لار لټوی خو د تیښتے دو ورته نهٔ وی معلوم. هغه

په ذهنی لحاظ یو متحرک کردار دے او د حالاتو د سیلاب نه دوتو دپاره تر آخره

پورے پښے لاس خوزوی - خو ددے هر څه باوجود شمئ د حقیقت پسندئ لمن

له ګوتو نه غورزوی - هغے ته دا پوره پوره احساس وی چه

" مابه اوس کوم شریف پښتون په څپل کور کښے کښینوی

---

ﻪ شمئ ، سید رسول رسا ص ۱۵۰

ﻪ ایضاً ص ۱۵۲ ، ۱۵۳

...... اوکه څوک راباندے ترس هم اوخوری او په کور کښے
ے بې بې کړی نو چل عمر خوبه ئے په دار شی او خلق به ئے
په پېغورونو پېغورونو لیونے کړی ـ"

شمئ د خپل چاپېرچل د ترونه او د دغے ماحول د بد بویو نه د تېښتے او فرار لارے لټوی او د خان ګل په شکل کښے چه هغه ته د دنیا یوه ځریکه ځان اوښائی نو هغه د یو نوی او روښانه ژوند په لوری قدم نه اخستل شوروکړی خو ډیر په چل او ډیر په احتیاط ـ خو په دغے ماحول کښے د هغے د رشتو او ترون جړے دومره خورے شوے وی چه داسے په آسانه د هغے د پاره وتل ګران شی ـ د خپل چاپېرچل ترے د شمئ په پنجو کښے زو لنے شی ـ او د حالاتو د مجبورو په زنځیرونو کښے بند په بند تړلے د دے پاک روح د آزادئ تعبیر هم تش یو خوب وی ـ

"تیارهٔ زما ډیره بدی شی ـ زهٔ ټوله شپه د خپلے
کمرے باتئ بله پرېږدم ما ته په تیارهٔ کښے خوب نهٔ راځی
او دنیا را ته ژوند ښکاری ـ"

او دنیا دغه لیتکے او ژوند دغه علامت چه هغے ته د خان ګل په مینه کښے ځلیدلے وی په هغه وخت د هغے د یو زوړ عاشق افضل د لاسه فنا شی ـ څه وخت چه خان ګل او شمئ د یو شریک پاک او مقدس ژوند د ترونو تابیا اوکړی او شمئ هم هغے الموی انجام ته اورسی کوم چه د ګلابئ قسمت وو ـ

---

له شمئ ـ سید رسول رسا ص ۲۵۷

خوګلابۍ د خپل ضدي فطرت له کبله د خپل عاشق "عمرې" د لاسه مړه شي او د شمۍ د پاره د خپل مېرن خان ګل د قتل نه پس د ژوندۍ او سېډ څه جواز پاتې نۀ شي ـ هغه د خان ګل د قتل بدل واخلي او د خپلې وفا او پښتو ثبوت ورکړي او د هغې نه پس د خپل بې مقصده او بې منزله ژوند ټوله هنګامې د "راوي" درياب چپو ته اوسپاري ـ

# خودکشي

خودکشي د میاں سید رسول رسا هغه ناول دے چه په دے کښے د مفرور او شمۍ د تکنیک د روایت په عکس د کردارونو نه زیات په واقعاتو او پلاټ باندے زور اچولے شوے دے ـ د موضوع له رویه دا خالص د عشقیه رومانی طرز ناول دے او د ناولونو د هغې سلسلے سره تعلق لري کوم ته چه واقعاتي ناولونه ویلے شي ـ او د ناول د فن د نقادانو په خیال ․

" د ناولونو[1] دا قسم د ټولو نه ساده قسم دے ـ په دے کښے محض د واقعاتو یوه لړۍ په مخه روانه وي او ناول لیکونکے د واقعے سره واقعه انښلوي او د غه خوندور واقعات

---

[1] ناول کیا ہے ، ڈاکٹر محمد احسن فاروقی ، ڈاکٹر سید نورالحسن ہاشمی ص ۷۷

او پېښې د مرکزي قصې په دلچسپئ کښې د اضافې موجب شي."

د واقعاتو او کرداري ناولونو نه علاوه په عالمي ادب کښې داسې ستر او عظیم ناولونه هم لیکلې شوي دي. چې په هغې کښې د واقعاتو د اهمیت سره د کردار نګارئ اړخ ته هم خصوصي پام کړې شوې دې لکه په انګریزي ادب کښې د بناغلي ډکنس " مارټن چیزل وټ " او د بناغلي سکاټ " اولډ مارټیلیټي " د دې قسم ناولونو کښې د قصې اډانړه هم ډیره مضبوطه وي - د یوې واقعې نه بله واقعه سرچینې او په آخره کښې ناول په یوه ښکلي نتیجه ختم شي - خو د دې سره خوا په دې ناولونو کښې ځنې د اعلې پایې کردارونه هم یوټ ښکاري.

د غه بناغلي فیلډنګ "ټام جونس " کښې هم د یو مخصوص کردار کړه وړه او اهمیت د مختلفو واقعاتو او حالاتو په حواله په ډېر پېچلې شکل کښې راڅرګندېږي. (د بناغلي رسا په مختصر ناول سعروي کښې هم د ګلابئ د کردار د خصوصیاتو په راښکاره کولو کښې هم د دغه عمل زیات ښکاري)

د خودکشئ په پلاټ کښې د وه بناشته قصې خوا په خوا داسې ګنډې شوې دي چه د یوې بلې سره ډېر تړون وي او د دغې دواړو د تړون سبب د سرفراز کردار وي - سرفراز د هشتنغر د سیمې د یوې مالدارې کورنئ ملک وي - چې په اسلامیه کالج پېښور کښې سبق وائي او د سیل په غرض کابل ته تللې وي په واپسئ کښې ورته د "لنډه بند " په علاقه کښې موټر وران شي - او د غه واقعه د هغه د یوې بناشته کوچئ پیغلې میرو سره د ملاقات سبب شي - د سرفراز شاعر او رومانی فطرت د دغې ساده او صحرائي حسن سره په مینه کولو مجبور شي - او د عزونو د غه آزاده بناشته او

ترڅنګه چې موسیٰ هم د سرفراز د اثرناک شخصیت په دام کښې ونښتلې - او دوا ړه د یو بل د ملګرتیا پاخهٔ لوظونه اوکړل - سرفراز میرو ته د مینې د یادګار په دول خپله ګوته د ګوتمئ ) پرېښې دی او پېښور ته په دې امید راروان شي چه په راروانه پختنۍ کښې به د میرو دوی کره هم لکه د نورو کوچي قافلو په شان حمله راکوزېږي او میرو هم د سرفراز په دې لوظ باندې زړهٔ اوتړي -

" بس حمله چه تاسو راشئ زهٔ به د پلار ته غټه جرګه د ملایانو، میاګانو، سیدانو، سپین ږیرو او لویو لویو مکانو راولم او هر څه رنګه چه وی ستا بابا به راضي کړم - "[1]

او میرو هم هغه له تسله ورکړی چه .

" ځمه ژوند کښې یو ځل زړهٔ باتلی او چه زړهٔ یو ځل باتلی نو بیا ئې د خپل مینّن نه بې دګور خاورې جدا کولې شي - بل هیڅ څیز نه - "[2]

خو د نصیب چارې څه نورې اوشوې - سرفراز د میرو دوئ د راډسیدو نه مخکښې په شیبره تبه پرېوت - او چه د تپانګفا یټس زور ختمیدو نو د هغې اثراتو د هغهٔ حافظه د ومره زبیښلې وه چه د هغهٔ نه د تېر ژوند اکثر واقعات هیر شو او په دغو واقعاتو کښې د بد نصیبې میرو واقعه هم شامله وه -

---

[1] خودکشي . سید رسول رسا ص ۷۷

[2] ایضاً ص ۷۸

اوځه وخت چه د محراب ګل دوی ( د میرو پلار ) کوره د خپس په لمن کښې د اسلامیه کالج خواؤشا ته را ورسیدے او هلته ئې خپلې خیمې لګې کړے او میرو ډیرے ورځې پړله پسې د خپل مئین په بے سوده انتظار کښې واړوے نو د هغې په دنګس زړه کښې بے شمیره شکونو او وسوسو ځائے اونیولو ۔ خو د وسوسو نا امیدو او ناکامه حسرتونو دغه نه ختمیدونکے سلسله او س د دغې بښاسته تنکئ کوچئ پیغلې قسمت وو ۔ او دغلته د ناول دویمه قصّه شروع کیږی ۔

د ناروغتیا او کمزورتیا له کبله د سرفراز نه تعلیم پاتے شی او د لاهور دچکړ په دوران کښې د هغه ملاقات د خپل یو زوړ سبقی آشنا وقار نیازی سره اوشی ۔ د دغې ملاقات په نتیجه کښې د سرفراز د وقار د مصورے ، نوش ذوقه او تعلیم یافته خور صفیے سره دوستی جوړه شی او د دوستئ دغه رشته د واده په رشته کښې بدله شی ۔ د سرفراز د حافظې د کمزورئ باوجود د هغه په خیال کښې تیرهیر واقعات په لاشعوری طور کله کله غزونے اوکړی او د هغه په طبیعت باندے د بے چینئ غوټې ځې راځی ۔ خو د میرو څهره د هغه د شعور د پردے نه بیخی غائبه شوے وی ۔

نو د واده نه ډیره موده پس چه هغه بال بچه داره شی او یو څو عمر ته اورسی او یو ځل بیا چه د خپلې ښځې صفیے سره د کابل سیل ته تلے وی نو " ګلسته بند " د سیمے په هغه مقام کښې د دے په خیال ایسار شی چرته چه ئې د میرو سره ملاقات شوے وی ۔ او هم هلته په خوا کښې د زیارت د مجنون ملنګ بابا د خولے نه د میرو د قبر داستان واوری ۔ چاچه د سرفراز په انتظار کښې او د خپلې ناکامه مینې په پټ کښې ځان ځان خوړ کښې ځان لاهو کړے وی او اوس د هغې د بښاسته ځوانئ د خاوړو تش څلے پاتے وی ۔

ACKU

دغه شان د رښا صاحب د نورو ناولونو د "شمئ" او "مفرور" د هیروئن په شان د "میرو" کردار هم د تباهئ انجام سره مخامخ شي. خو ورومبنی دواړه کردارونه (شمئ او ګلابئ) د خارجي عواملو د لاسه دغې انجام ته اورسي. او میرو د خپلو داخلي کیفیاتو سره په جنګ کښې توره ډال او غورزوی او د خپلې مینې ناپوره ارمانونه او ناکامه حسرتونه هغه د مرګ ناترسه لاسو ته اوسپاري.

حقیقت دا دے چه په " خودکشي " کښې د واقعاتو شدت دومره سیوا دے چه د هغې په وړاندے د کردارونو د عمل او ارتقاء هیڅ ځـه ګنجائش نهٔ ښکاري. او دا سے معلومیږي چه واقعات کردارونه د ځان سره په مخه بیائي. او ناول لیکونکی د واقعاتو او کردارونو ترمینځه د فني سمجوتے کولو هیڅ شعوري زیار نهٔ دے کړے. خو د دے حقیقت باوجود هم خودکشي د خپلې خوږ ورے قصې او کوتلي پلاټ له کبله د شمئ او مفرور په نسبت د لوستونکو په نزد یو زیات دلچسپ ناول دے.

د میرو کردار یو هوار او ساده کردار دے. د یوے دا سے غرځنئ پیغلې چه هغه د دنیا د سود او زیان نه بے خبره فطرت په ارته بیسته لمن کښې لویه شوے یوه ساده باده جینئ وی. د سرفراز په لیدو هغه ځان له د تصور یو نوے کائنات آباد کړی خو د قسمت چارے د هغې د تصور دغه ماڼۍ سر د لاشے راګوزاره کړی.

د میرو په مقابله کښې د ناول د دویمې قصې هیروئن صفیه د ښارئ د ژوند او نوی تهذیب په هنګامو کښې لویه شوے یوه تعلیم یافته جینئ وی هغه د مصورئ د فن شوقینه او د راوچت ذوق او سپیځلو اطوارو میرمن

وی ـ دنوی طرز دډوند سره د نزدے والی باوجود هم دمشرقی روایاتو پابندی دهغې د فطرت لازمی برخه وی ـ د شوخئی او دنظر د پراختیا سره خوا په خوا دیو خاص قسم سنجیدګئ دهغې د کودار نه یو متوازن کودار جوړ کړے دے ـ

په لاهور کښے دمغوئی کره د استوګنے په اوان کښے په یوه موقعه صفیه سرفراز ته وائی ـ

" داخو واقعی دشرم خبره ده چه مونږ ځان ته پښتانهٔ وایو او د پښتو ژبه بنۀ نۀ راځی ـ زه اهم زرهٔ کیږی چه د نیکونو ژبه زده کړم خو دلته لاهور کښے څه موقع نشته ـ"

شاید چه صفیے داخبره په چالاکیا د سرفراز د زړهٔ ساتنے په خیال اوهغه ته په ذهنی توګه د نزدیکت په غرض کړے وی ـ خو کله چه دوئ "ډاسُن هال" ته لاړ شی او هلته د قبلئیز طرز په ګرا باندے صفیه دخپلے ناخوښئ اظهار کوی او سرفراز د هغې د چیرلو په خیال وائی ـ

" معلومیږی داچه تهٔ په ځنو ځنو خبرو کښے رجعت پسنده ئے او د زمانے دروح سره تلل نۀ غواړی ـ داخو دموجوده زمانے لوازمات دی ـ "

نو صفیه په دغه موقع دخپل متوازن شخصیت د اظهار ثبوت داسے وړاندے کوی ـ

---

۱ خودکشی ـ سید رسول رسا ص ۱۶۸

۲ همدغه کتاب ص ۲۲۹

" زما د رقص دفن نه نفرت نهٔ دے خو د انګریزی رقص
د خرافاتو نه ے نفرت دے - دا اوګوره - دا څهٔ حال دے
دے ته رقص وائی او که د فضولیاتو او خرافاتو دپاره محض
یوه بهانه ده - "[1]

اوس څو که د پلاټ په نیمګوړه چوکاټ کښے د صفیے کردار
هم یو نیمګړے کردار ښکاری ولے بیا هم هغه ته چه په ناول کښے د کردار کومه
برخه سپارلے شوے ده په هغے کښے د ژوند ، ښکلا ، شوخئ ، متانت ، شعور
او سلیقے ښائسته رنګونه په داسے توله راغونډ شوی دی چه دے کردار ته
ئے د یو خاص قسم جاذبیت ورښخلے دے -

سرفراز یو شاعر او عاشق مزاجه انسان دے - د ناول د پلاټ دا
کردار په دوؤ برخو یا دوړو کښے ویشلے شوے دے - یوه برخه د میں و سرګ
تړلے ده او دویمه برخه د صفیے سره - خو په بنیادی توګه سرفراز محض یو
جذباتی بنده وی او داسے ښکاری لکه چه د هغهٔ د ژوند مقصد بس د ښکلو
څیزونو او ښکلو محبوبو سره مینه کول وی - او د قدرت د مهربانو له مخه
هغه په دے حیثیت کښے وی چه د خپلے خوښے هر ښائسته څیز هغه حاصل
کړی - د سرفراز د فطرت دے اړخ ته ناول لیکونکی هم واضحه اشاره
کړے ده -[2]

" سرفراز فطرتاً عاشق مزاج وو او موزون طبع شاعر

---

[1] خودکشی ، سید رسول رسا ص ۲۲۹

[2] همدغه کتاب ص ۵۲

ACKU

پیدا شوے وو او هم په دغه وجه هغه د ورکوټوالی

نه بے مینہ توبه نهٔ وو پاتے شوے ۔"

خو څه وخت چه دغه شاوے واوے جمالیاتی تصورات د

یو مجسم حقیقت په شکل هغهٔ ته دمیړو په څهره کښے راوړاندے شی نو

هغه دځان سره وائی ۔

" ایسٹه اوس سم مینن شوے ئے ۔ تۀ اوسه دِ ټوټے مخرے

کولے ۔"

او دغرونو په چاپیریچل کښے چه دکوے مینے تخلیق کیږی د

هغے په مناسبت دبناغلی "رسا" رسا ذهن هم په هغه پس منظر کښے د زرکے

اوباز علامات راوستی دی ۔

" په دے کښے دغرهٔ له څوا نه یوهٔ زرکه والوته اوبورته

د آسمان نه وریسے باز راغوټه شو اوزرکه ئے اوچته په

پنجه کښے واخسته ۔"

سرفراز ته په دے واقعه کښے دچل عشق تصویر ښکاره شو

ځان سره ئے دا منطقی دلائل شروع کړل ۔

" دا باز دمیړه غیټے توره ستر کے دی او دا زرکه زما

دا نا قلاره زړهٔ ۔"

بیائے اووئیل

---

[1] خودکشی ، سیدرسول رسا ص ۶۱

[2] همدغه کتاب ص ۵۸

" نه خطا شوم - زما زړهٔ باز دے او د میړو زړهٔ
زرکه - دا زما باز زړهٔ د میړو په زړهٔ غوټه اووهله او
ټکه د زرکے ئے پنجو کښے اونیوله -"

او د بیسدیانئ هوسئ په خیالونو کښے ورک هم دغه سرفراز
چه کله د صفیے غونے داو چتے طبقے د تعلیم یافته جینئ مخے له راشی او د
هغے سره ئے جذباتی تړون جوړ شی نو دلاهوړ په شالیماړ باغ کښے د دغهٔ
د حسن وعشق تصوړات اوعلامات هم بدل شی۔

" څومره رومانی او تاریخی ځائے دے - څوک څهٔ خبر
دی چه هړو په دے ځائے چه اوس چرته موږ ولاړ یو
یوه ورځ شاه جهان او ممتاز محل هم د مینے او محبت په خمار
کښے مست د چاپیره دنیا د ښکلی منظرونو تماشا کړے وی -"

---

۱ خودکشی ، میاں سید رسول رسآ ، ص ۲۰۷

# ماموڼئ

ماموڼئ یو داسې ناول دے چه په هغې کښې د ایران د شهنشاهی دور د معاشرتی ژوند ډیره ښکلې عکاسی شوې ده. په دے ناول کښې ښاغلي رښا د پښتو د قصصی ادب د روایتی پولو او بریدونو نه اوړیدلے دے - او د پښتو ناول افقونه ئې د خپل مخصوص چاپیرچل نه ډیر بیرته د نوی ایرانی تهذیب د مرکز سره په ډیره فنکارانه طریقه نګولی دی - او دا زمونږ د ناول دارتقاء په سفر کښې یو اهم پړاؤ په ګوته کوی.

ښاغلی میاں سید رسول رښا څو کاله په ایران کښې د پاکستانی سفارت خانے په عمله کښې په یو اهم منصب باندے کار کړے دے او د هغې ځائے د شهنشاهی دور دا وچتے طبقے د معاشرتی او ثقافتی ژوند د طور طریقو سره نزدے او ژوره بلدتیا لری او د خپلو سپیځلو تجربو او سامو مشاهدو حاصل ئې د دے ناول په تنه بوده کښې اغږلے دے.

د ناول مرکزی کردار او هیروئن ماموڼئ په قام خټه یوه افغانئ پښتنه پیغله وی. پلار ئې د قالینونو یو اوچت بیوپاری وی او د ایران نه بهر په لویو لویو ښارونو کښې د دغه کاروبار خور وی. هغه د ډیرے مودے راسے خپل بال بچ د ماموڼئ د هغې مور او کشره خور) په طهران کښې دیره کړے وی او په خپله اکثر بهر وی.

ACKU

ماموني يوه ډيره ښائسته جينۍ وې او د نوې فيشن تهذيب کوم
اثرات چه د دغه وخت (۱۹۷۸ء خوا وشا) په ايراني ژوند باندې راخواره
شوې وو ماموني په هغې کښې ښه خوشته ښکاري ـ

د ناول هيرو ګل رحمن د طهران د پاکستاني سفارت خانې يو زلمې
افسر وي چه نوې نوې ئې ايران ته بدلي شوې وي ـ د ماموني سره د
هغه اولنۍ ليده کاته د شميران د هوټلونو په شاندار هوټل دربند
کښې کيږي ـ دغه د اوچتې طبقې د کسانو د ناستې پاستې او سيل سپاتې ځائې
وي ـ ماموني په ښائست کښې خپل ساري نه لري هغه ماډرن وې او د
نوې فيشن د رموزو سره ښه بلده او د هغې پرستاره وي ـ هغه يوه
اوچته ګړه ويده ونکي (ډانسره) هم وي او په لويو او سترو پارټو
کښې شامل زلمې د اشوق او ارمان لري چه د ماموني سره د ډانس جوړه
جوړه کړي ـ

ماموني ګريجويشن کړې وي او دغه وخت د ډانش کدې ادبيات
طالب علمه وي ـ خو داسې ښکاري لکه چه د اواره جديديت فيشن پرستي
او تصنع او نمائش د هغې د ظاهري پيکر په کرو وړو ورتېلې شوې وې
او په دې پيکر د ننه روح کښې چه کومه معصومه او پاکه امنه ماموني
پرته وي د هغې خوئ بوئ او فطرت د يوې سوچه پښتنې پېغلې وي ـ او د
روح او پيکر ترمنځه دا فاصله د ماموني په کردار کښې هغه تضاد
پيدا کوي چه هغه هم د هغې د ذات د پاره نفسياتي کشاله پيدا کړي
او په دغه دوجاله کښې داګير د هغې مئين ګل رحمن هم د هغې په حقله
د څه فيصلې کولو د قوت نه محرومه پاتې کړي ـ د ګل رحمن سره د

ACKU

مامونئ د نږدېکت او تعلق بنیادي وجه هم داوي چه هغه د طهران په نابلده ماحول کښې يو خارجي پښتون ذلمے افسر وي - او د پښتو ژبې او پښتنې ويښے سره مينه ، مامونئ سره د واره جدت پسندئ، دخپل فطرت يوه برخه ګڼړي او په دے خبره ديار کوي چه -

"مونږ د اصله د قندهار پښتانۀ يو خو اوس دا سے يو لکه ايرانيان -"[1]

او د ګل رحمن د دے خبرے په مرسته کښې چه -

"زما د خپلے ژبے نه په بله ژبه کښې خبرو بانده سود نه کيږي -"

مامونئ وائي -

"دا خو بالکل فطري خبره ده - خپله ژبه بيا خپله ژبه ده - خپله ژبه بنيادم چرته هير وے شي - مونږ ته نۀ ګورئ چه اوس دچا په شان ايرانيان يو - خو بيا هم خپله ژبه مونۀ ده هيره کړے -"[2]

خو د مامونئ موږ دا قسمه تأثر په بدل رنګ کښې بے د څه قسمه تضاد نه په ډير شدت سره وړاندے کوي - هغه د مامونئ په آزادئ او نوي روشونو بانده خفه هم ښکاري او اعتراض هم پرے کوي - خو دا سے معلوميږي چه په دے لړ کښې هغه دخپلے لوړ په طور طريقو د بندېزلګولو

---

[1] مامونئ - ميان سيد رسول رسا ص ۱۸

[2] همدغه کتاب ص ۲۲

ACKU

نه مجبوره ده -

" میلمه زموږ نه خو اوس د پښتو لارے چارے هیرے دی اوس موږ د خهٔ پښتانهٔ یو - چے د پښتو نوم راپورے دے - گورهٔ ! داجینئ څنګه بے پردے گرځی - موږ په خوئ بوئ کښے طهرانیان شوی یو - خو بیا هم دے وطن خلق راته خپل ښکاری -"[1]

او د ماموشئ د موږ مجبوریتیا د هغو جدیدو دویو او د بهرنی تهذیب د طور طریقو مجبوریتیا وی کومے چه اوس د طهران د ژوند یو معمول جوړ شوے وی - ځکه خو د غه د پښتنی احساساتو لرونکی او د خپلو زړو روایاتو پرستاره بی بی هم گل رحمٰن ته په خپل کور کښے د مشروباتو څښلو ست کوی - او د مشروباتو تشریح ماموشئ داسے کوی -

" د بیو مطلب دادے چه د رنګ کوئ اوکه نه -"[2]

او د نوی قبلٔشیٔن تهذیب په ادابو کښے دا عام د معمول خبرے وی - ولے د گل رحمٰن د ساده مزاج د پاره دا یوه حیرانونکے ښـدارهٔ وی - د ماموشئ خپل کردار هم دے نوی تهذیب د خوبو او خامو په حقله د متضادو نظریو ښکاره ښکاری - په عملی دول خو هغه تر غړئ غړئ د دغه تهذیب په چپو کښے ډوبه وی - خو په فکری توګه بیا هم د هغے په ځنوارخونو اعتراض کوی -

" زهٔ د بنځو د آزادئ قائله یم - خو د ص څین یو حد وی

---

[1] ماموشئ - سید رسول رسا ص ۲۵

[2] هم د غه کتاب ص ۳۷

دلته ښځې په مجلسونو کښې دومره شراب او څښي چه بيا
دځان د حاله نه خبريږی - هم دځان دپاره دشرم باعث
شی او هم د ټول مجلس دپاره ......... - زۀ دمغربی ثقافت
مخالفه نۀ يم - په مغربی ثقافت کښې هم ډيرے ښے خبرے
شته - خو دطهران ښار په حقيقت کښې دپيرس د معاشرے
بد نما نقل دے -"

خو ددے قسم خيالاتو باوجوده هم مامونئ دښځو دآزادئ مغه
حقوق استعمالوی څه ته چه هغې په خپله دپيرس د معاشرے بد نما نقل
وئيلے دے - هر څو که هغه په انتهائی شکل کښې نۀ وی وے بيا هم د
ګل رحمٰن غوندے بنده دبدګمانه کولو دپاره کافی وی -

دګل رحمٰن په شخصيت کښې مامونئ ته دپښتونولئ، خوش ذوقئ
پوهے او علميت خو بيا نے برخېں ے کيږی او په ډيرو ځينونو کښې دهغه
نه متاثره وی - خو کوم شے چه دمامونئ دمزاج سره جوړيښت سنۀ
خوری هغه ترڅۀ حده ددے غ سوسائټئ په مناسبت دګل رحمٰن رجعت پسندی
وی -

دزلمو هلکانو سره په آزادئ او بے باکئ ناسته ولاړه دهغوئ سره
ځنګ په ځنګ او غاړه په غاړه ګډا او نڅا او په يو ځائے په سمندر
کښې په نيم عريان لباس کښې لامبل داهغه ځيزونه وی کوم چه دهغه په
وطن کښې او دهغه د معاشرے دادابو او اقدارو له مخه انتهائی معيوب
ګڼړلے شی - او دکومو له خوا چه مامونئ ته ګل رحمٰن يو قدامت پسنده

ادرجعت پسنده انسان ښکاری خو ددے سره باوجود هم ګل رحمٰن د ښځے ذره ته د سړچانه نزدے وی او په چېلو دوستانو کښے د ایران د کابینے د یو وزیر ښاسته او "سمارټ" زوئے اغا شاهین زادے بانسے هم ښځه له فوقیت ورکوی ۔ او په څوځو ځایه ئے ددے خبرے ثبوت ورکړے دے چه د شاهین زادے غوندے کسانو سره ښځه محض د رسمی دوستانے او ساعت تیرئ تعلق شری ۔ ولے هم د ښځه د رسمی قسم دوستانه تعلقات هم د شرقی روایاتو په رنګ کښے درنګ شوی ګل رحمٰن په ذره کښے د شک او رقابت جذبات راوزیږوی ۔ او که ښځه چېل ذره له په دے قسم چالونو بانسے ډیره تسله او ډاډګیرنه ورکوی چه ۔

"ماموننۍ خوش اخلاقه او شریفه جینئ ده ۔ د یو لوئے او مالدار کور پښتنه پیغله ۔ د ښځے بے باکی او ازادی محض په طهرانی معاشره کښے د تربیت نتیجه ده ۔ ګنی د ښځے معصومیت د ښځے د خبرو او د ښځے د سړ حرکت نه ظاهر دے ۔"[1]

خو ولے بیا هم د ښځه پښتون فطرت دیو سے داسے پیغلے د عمری ملګرتیا تصور ته یو ډیر ی څوک چه ځان ته پښتنه وائی خو ډیر دو زدمو سره په شریکو پارتو کښے په ګډا او سندرو او د مغوئ سره په یو ځائے لمبلو کښے هم څه باک نهٔ محسوسوی ۔ او تر "یورپه" په یو ځائے ځان په میاشتو میاشتو چکرے نګوی ۔

اوکوم شکونه او وسوسے چه د ګل رحمٰن په ذهن کښے په ګنجلک

---

[1] ماموننۍ ۔ سید رسول رسا ص ۶۲

شکل کښې ناوُونه خوری هغه دماموننیٌ دډرامو، گل اکبر په ځمله ساده او بے باکه لهجه کښې په دے طرز وړاندے کوی ۔

"مطلب ے دادے صاحب ! چه دحاجی صاحب دا لونړه دیرهٔ بے باکه او ازاده دی او مشړه خوړ خوئے اوس پیغله ده نو دا دبد ناموسئ خبره ده پکار ده چه اوس پرده کوی او دسړو په مجلس کښې ناسته پاسته پریږدی ۔"

په علمی او ادبی بحثونو کښې ماموننیٌ او گل رحمٰن دواړه دیو بل نه د برې اوسبقت وړلو کوشش کوی ۔ خو ددواړو په نظریاتو کښې د یو شان والی او اتفاق سره دضد او مخالفت نخښې هم اوړه ښکاری ۔ د لاله زار په یوه مشهوره کیفئ کښې په دیوالونو ځوړند تصویرونو ته په کتو گل رحمٰن ځل دد عمل دا سے ښائی ۔

" داځنگه ځل دے چه ایرانیانو مصورانو اونقاشانو ته بس دغه یو مضمون خوند ورکړے دے ۔ یعنے د پیرئ عشق دعمرخیام درباعیاتو عکاسی ۔ بوډا شرابی او پیغله !"

اودماموننیٌ سره ددے ځواب داوی ۔

"که دومره هم دخیام درباعیا تو اوفلسفے دخیام د پیدائش په وطن یعنے ایران ته نهٔ وی نو بیا خو صرو خیام په خیام نهٔ وی ۔"

---

ك ماموننیٌ ۔ سیدرسول رسا ص ۲۷

ك همـــدغه کتاب ص ۹۴

ناول ليكونكى ځو ځايه د ماموني په حواله دګل رحمٰن په رومانى بے حسئ او بے ضرورته سنجيده دويه باندے هم تنقيد كړے دے. او ددے حقيقت د زباتوبو زيادتے كړے دے چه هغه د عمل د ميدان نه زيات د تصوراتو او د حقيقت نه زيات دجذباتو د نړۍ مسافر دے. او د غه څيزے ددے دواړو په مينځ كښے د فاصلے اصل موجب ګڼړے دے.

په تهمتر كښے چه دوئ په نوى طرز د رستم او سهراب ډرامه او ګورى نو د هغے په حقله د دواړو مخالف رد عمل هم دډوئ په حقله د دوئ د نظريو ډيره ښه عكاسى كوى. دګل رحمٰن رائے د دغے ډرامے متعلق داوى.

"د تفريح دپاره ښه وه. خو بازارى وه. د عاميانه مذاق څيز وو."

او ماموني لكه چه دا په ځنل ځان تيك ګڼړے وى.

"عاميانه مذاق څوك ووچه نندارګے عامو خلقو ته پيش كوله. عام بازارى تيټرونه د فلسفيانو د مذاق دپاره نهٔ وى. دا خو د عامو خلقو د تفريح دپاره وى او د عامو خلقو د ذوق او مذاق مطابق څيزونه پيش كوى."

"ستاځه خيال دے زهٔ فلسفى يم؟"

"كه فلسفى نهٔ نو عام سړے هم نهٔ. په هرځه كښے ځان ته يو مخصوص ذوق لرے."

"ستا دا ذوق خوښ دے؟"

---

له ماموني، سيد رسول رسا ص ۱۳۱، ۱۳۲

"ښه دے خو دومره سنجیدګی هم ډوش کښے نه وی ښه.

هر وخت د زړهٔ پاسبان چه عقل شی خو ډوشه بنیادم سته یو

نول شی ."

او دګل رحمٰن د زړهٔ نول په اصل کښے دهغه د پښتون دماغ نول وی . د ماموښیٔ لاثانی بناسُت دهغے عالمانه مجلس . په هر څیز کښے اوچت ذوق او مذاق او مینه ناک طبیعت داټول هغه څیزونه وو چه دهغهٔ زړهٔ ته پریوتـل خو دخودنماۍ په شوق کښے د نوی عصر د چنګو ښېښو کردارته د ماموښیٔ نزدیکت دغے پښتون ذهن په هیڅ شان له نهٔ شو قبلولے . او دغے تضاد دګل رحمان په شخصیت کښے یو نفسیاتی ولړ پیدا کړے وو .

او دغے نفسیاتی ولړ " شاهین زادے" دهغه په نظر کښے دیو رقیب په شکل کښے اودرولو . او د رقابت دغے روایتی جذبه دګل رحمان د کردار نه هغه لږ غوښے پټیک او زور هم اوشوکولو دکوم له کبله چه هغه تردغه وخته د ماموښیٔ په حقله په چُپله رویه کښے د توازن پیدا کولو په شعوری زیار کښے لګیا وو .

او دګل رحمٰن د پښتنی احساس خوږلن هغه وخت لمبه شی څه وخت چه په پارټیٔ کښے هغه د ماموښیٔ د پیانو سره د سندرے ویلو فرمائش پوره نهٔ کړی . او هغه په دغه ضد کښے دهغه د سترګو په وړاندے دټک محفل نه د شاهین زادے سره بهر روانه شی . اوګل رحمٰن دا خپـل توهین اوګڼړی .

په حقیقت کښے ماموښیٔ اوګل رحمٰن دواړه د خپل خپل فطرت له کبله د ډورے مینے د دریاب په بیـله بیـله غاړه باندے ولاړ هغه کردارونه

ACKU

دی چه هریو د بیل بیل طرز معاشرت او جدا جدا ثقافت نماینده‌ګی کوی د دوارو د فطرت او انا غوښتنه دا وی چه یو بل ځان ته راکاږی. خو په دوارو کښې په یو کښې هم دومره لچک نه وی چه په درياب پورے اوځی او د بل سره د صلحے او سمجوتے کوښ کوښش اوکړی. او په دے جنګ کښې ماموننۍ هم د خپلے مینے قربانی ورکړی او هم د ځان. او دغه شان په یو شکل کښې د "ماموننۍ شیرعالم" داولسی قیصے په شان د دے ناول ماموننۍ هم د خپل میین د شک د لاسه شهیده شی. خو دغے ماموننۍ د پاره د دنیا پیغور ورنه د خارجی عواملو په شکل کښې قاتلان شی او د دے ماموننۍ خپل داخلی کیفیات او د خود پسندۍ او انانیت جذبه د هغے د پاره د تباهۍ موجب شی.

بله دا چه د دے ماموننۍ غم لړلے انجام محض د یو کردار انفرادی المیه نه وی. دا د یو غیر او پردی تهذیب د ګلهو پرستارو المیه ده. د قیصے په انجام کښې د مرګ نه مخکښې ماموننۍ د مور په نامه خط کښې په خپله صفایۍ کښې ګل رحمان ته خپل زړه سپرد لے دے.

" بیبو[1] ! ورته وایه. زما د شاهین زاده سره هیڅ نه وو. خه چه وو تا سره وو. ما ته دیر پوهیو لے خو ته نه پوهیدے."

خوکه د ناول لیکونکی غرض د دے خط نه د خپلے هیروئن سره د دوستونکو همدردۍ حاصلول وی نو بیا هم شاید چه دغه همدردۍ

---

[1] ماموننۍ. میاں سید رسول رسا

د مامونټۍ دکودار نه زياتے دګل رحمٰن سره وی -

# ګل خان

تر اوسه پورے بناغلی شمس زمان غمژن درے ناولونه "ګل خان"، "امانت" او"رحمٰن کورونه" د پښتو ادبی پنګے ته ورغښلی دی - خو په دے درے واړو کښے چه دیو معیاری ناول کوم لازمی توکی په ښائسته او سپځلے طریقه په ګل خان کښے را ټول شوی دی هغه په ورپسے دواړو ناولونو کښے نه ښکاری -

ګل خان په کال ۱۹۶۶ء کښے ليکلے شوے او په ۱۹۶۷ء کښے چاپ شوے دے او زمونږ دمعاشرتی طرز په ناولونو کښے شاید چه دا وړومبے ناول دے چه د پلاټ او قصّے تنه بوده ئے د پښتنی کلی وال چاپیرچل سره تړلے شوے ده - او دے ناول دځنی نورو خوبو سره دټولو نه جوته خوبی دکلی والے معاشرے اواولسی ژوند ساهو عکاسی او سپځلے منظرنګاری ده -

ناول چه په کوم ساده او فطری ماحول کښے ليکلے شوے دے - دهغے د واقعاتو اوتفصیلاتو په حقله دبناغلی غمژن مطالعه او مشاهده ډیره ساهو او حقیقی معلومیږی - سوچه او ښائسته ژبه او د اسلوب او بیانږ انږ لا ښکلے انداز هم دغمژن دیک يو ځوکند وصف دے - دکلی وال چاپیرچل سره خوا په خوا دښارے د ژوند سره د ترلو واقعاتو او دهغے ژوند په بیان کښے هم ناول ليکونکی پوره فنی مهارت ښودلے دے -

ددے ناول پلاټ په ځېل موضوع باندے یو موړ او بشپړ پلاټ دے او دمقصدیت او رومانیت یو ښکلے ګـډون دے - خو ددے حقیقت باوجود په ناول کښے په فلمی انداز ځنو روماني جوړوسته بے ضرورته اهمیت ورکول یو غیر فطری عمل ښکاری او په طبیعت کښے څه لږ غوندے دروندوالے پیدا کوی -

دموضوع او مقصد له خوا په ګل خان کښے دغلطے او صحیح پښتونولئ او دیو نالوستی او تعلیم یافته پښتون ترمینځه فرق په ډېره اثرناکه طریقه دښودلو زیار شوے دے -

دناول په پلاټ کښے دیوے مرکزی قصے د تن نه نورے ضمنی قیصے هم راځیږی خو داټولے قصے او واقعات دیو بل سره یو منطقی ربط او تړون لری - دواقعاتو د برېیل په شان په ګل خان کښے دکردارونـــو هم یوه اوږده لړئ دشوږو نه تر آخره پورے روانه وی خو متاسفاً بناغلی غمژن دکردار نګارئ په اړخ دومره توجه نهٔ ده ورکړے څومره چه پکار وه - د ناول په اهمو کردارونو کښے دمرزا احمد خان، نادرخان ملک، عالمخان پروین، زرینه، پښیمنه، بدرئ، ګل خان، ګلاب او یـو څو نور نومونه راځي - خو دکردار نویسئ دفن له رویـه چه په دے ناول کښے کوم کردارونه مکمل کردارونه ښکاری هغه دمرزا احمدخان، عالمخان، پروین او ترڅه حده د نادرخان ملک کردارونه دی -

ولے دحیرانتیا خبره داده چه دګل خان ( دکوم کردار سره چه د ناول نامه تړلے ده ) په کردار باندے بناغلے غمژن ډیر هوار او اوږه راتیر شوے دے - او دناول دکتونه پس ډیر په آسانه دا اندازه

لګیدے شي چه که ددے ناول نامه ارو مرو دیو مرکزي کودار په نوم بناکیدل ضروري وو نو هغه نوم د احمد خان مرزا کیدے شو. ځکه چه ددے ناول په پلاټ کښے له هرے زاویے نه د مرزا شخصیت د ټولو نه ځرګند بریښي.

دګل خان قصّه دګلدرے د بناښته او شادابے سیمے د مرزا احمد خان او د هغهٔ د مد مقابل ملک نادرخان ترمنځه د ترېګنئ نه شوع وکیږي دشین غر احمد خان یو نیک خصلته دینداره ، امن پسند ، مینه ناک او تعلیم یافته پښتون وي - او د هغهٔ په مقابله کښے د چنار غر ملک نادرخان یو جټ ، ضدي ، حسدي او شرپسند انسان وي -

ګل خان د مرزا د جاښے اد ناظر وي او ګلاب د نادرخان ملک چلیکار وي او د خویونو او فطرتونو کوم فرق او تفاوت چه د دواړو خاندانو ترمنځه موجود وي - هغه فرق په دواړو ذیلدارانو کښے هم لیدے شي.
نادرخان څه د چل فطرت او تربیت له رویه او څهٔ د ګلاب د لمسونو له کبله بے ځنے بے بهے په هر محاذ د مرزا مخالفت کوي خو د مرزا معصومیت. صفائیت او تدبر په هره موقع د ملک د حسد او ترېګنئ په اور باندے سړے اوبه توېوي - د نادرخان ملک ایکی یو زوئے عالم خان د انجینئرنګ کالج لوستونکے وي. او د چل پلار د ترېخ خوئ او ذیلی طبیعت له کبله ترڅلوره کالو پورے کلي ته نځ نه راوړي او په بنار کښے په خپله سرائے کښے دیره وي - عالم خان او د احمد خان مرزا بناښته او حیاداره لور ذرینه د یو بل سره خاموشه مینه کوي خو عالم خان د ذرینے نامه هم ځکه په خوله نهٔ شي اخستے چه هغه ته د مرزا په حقله د پلار د رویے دیره بنهٔ

ACKU

انداز ه وی.

دنادرملک د جاشیداد بدمرغه او بدزړے کارنده ګلاب تش په ده سبب نادرخان دګل خان وژلو ته جوړ کړی چه دګل خان دایماندارئ او مشقت په وجه داحمدخان ذمکے آباده او شادابے وی او ډیر فصل کوی او دهغهٔ دیے حسئ او بے ایمانئ له کبله د نادرخان پټی شاړ پراتهٔ وی. درقابت دغه جذبه دګلاب دلاسه دګل خان غونډے یو نیک او بے ازاره بنده دقتل موجب شی.

او دګلاب سازشی ذهن دګل خان دقتل تور د هغهٔ په خواخوږی او معصوم باداړ مرزااحمدخان پورے کړی او ددغے غم او ویرے له کبله دګل خان کونډه بدرئ، لور پشمینه او زوئے ګل اعظم خپل کور کلی پریږدی او در په در پردئ مزدورئ او چاکرئ کوی.

عالم خان یو ښکلے شاعروی او د "مخمور" تخلص کوی او دهغهٔ د چوتی یاد اسلم پروېز هم د شاعرئ شوق کوی. دا ښارے ذلیے د عالم خان سره په پوهنتون کښے د ډاکترئ سبق وائی او دعالم خان سره ئے د مینے داحال وی چه دکوم ستر پرده هم ترے ماته کړی.

او اسلم پرویز "ناشاد" چه یوځل عالم خان سره کلی ته لاړ شی نو هلته یوه ښائسته پیغله اووینی او په اولنو کتو کښے دهغے په مینه کښے بندی شی. دغه پیغله دګل خان لور پشمینه وی تراخره پورے پروېز ته (او عالم خان ته) معلومه نهٔ وی چه دغه جینئ څوک وه. داقیصه ډیرے پلیټے اوخوری او ځائے په ځائے ددے قیصے سره سره ناول کښے نورے قیصے هم ملګرے شی خو بخام ئے داوی چه دګل خان

قاتل گلاب دیوے ځنګلی پرے د لاسه هلاک شی ۔ د دغه ملګرے لائے ګوجر د غره داګوزار شی ۔ او نادرخان ملک د یو خطرناک مرض خوراک شی ۔ (او دا ټول داسے واقعات دی چه د دے بنائسته ناول د پلاټ او نتیجے اثر د زیاتولو په ځائے کموی)

د مرزا احمد خان د بے ګناهئ ثبوت د نیا ته ښکاره شی ۔ عالم خان او زرینه اسلم پروین او پتمینه سره یو ځائے شی ۔ او د ګل خان زوئے ګل اعظم ته د اعظم خان ملک لور دلبرجان واده شی ۔ او د مرزا او عالم خان له خوا د ګل خان د ټبر سره د هر قسمه ښیګړے او پس زوئی نه پس دا تجویز هم وړاندے شی چه

"که د ګل خان په قبر یوه ښکلے مقبره تعمیر شی او هغے کښے یوه مرمرینه تخته باندے په لسو ټکو د هغه حالات اولیکلے شی او د ګل خان د یادګار په طور په ګلدره کښے یوه مدرسه پرانستلے شی ځکه چه پښتون دپاره لوئے ضرورت د تعلیم دے۔"

خو د ناول لیکونکی د دے دومره کوشش باوجود هم چه هغه د ناول په انجام د ګل خان نوم ژوندے ساتل غواړی دا خبره هیڅ ذړه ته نه پریوځی چه آخر د دے ناول نوم ارومرو ګل خان وے شو ۔ ځکه چه په ګل خان کښے د ګل خان نوم تش د نوم ترحده ژوندے ښکاری او د ګل خان کردار یو مړی کردار وی خو بنائسته پریشان خټک په دے لړ

---

له ګل خان ، شیر زمان غمزن ص ۳۰۲

کښې د ناول ليکونکي د غرض او مقصد تشريح او مرسته په دې ډول کوي.

" د مړي گل خان نوم د نيکو په زور ترا بده ژوندے پاتے شي او د قاتل گلاب ځړيږے او تبښتوي - اوس نو په دے څوک نهٔ پوهيږي چه د گلاب د ژوند نه د گل خان مرگ افضل دے - مرگ خو په هرحال کښې د راتلونکے دے نو بيا چه بنده د نادر ملک غوندے ارماني مري نو د احمد خان مرزا په شان مطمئن د وے پورېږے نهٔ کړي."

د گل خان په کردارونو بانډے د بحث نه اکهاهو دد ے ناول د منظرنگارئ او د هر ماحول په سمي د هغې د تفصيلاتو او جزئياتو په حقله د ليکونکي د زوراورے مشاهدے ستائنه په بے ځايه نهٔ وي.

د ناول په ابتدائي برخه کښې د گلدرے د سيمے د قدرتي ښکلا په منظرکشئ کښې د ليکونکي د فکري کرابت او ليکاوي انداز ه ددے ورے غوندے ټوټے نهٔ لگيدے شي.

" د گلدرے د توئ دوا ره ډډے غرونه شنهٔ او رنگين دي - ځائے په ځائے پر د د يارو، کاچلو، سره سوپ، کنډل برج، رنځړو، شاتي خو نهٔ تيتماک او ځيړئ ځنگلونه او د ځنگلي ميوے دانے د بوټو او زېلو جنگئ ولاړے دي. د ښنکاوئ ديارس نيم زره فټه اوچته څوکه چه لنډي سيند

---

[1] گل خان، شير زمان غمژن سرېزه پريشان خټک ص ب-ج

[2] گل خان، شيرزمان غمژن ص ۵

نه برده په څوارلسم میل شین غر او چنار غر یو کوی د دیرو
داوروله کبله دوانو نه پاکه ده ."

دعالم خان په کمره کښې د بنکاره شوق ځناورو او مارغانو د سرونو
او پوستکو په حقله د عالم خان په ژبه ځینې دوست پروین ته مختلف قسم
معلومات او تفصیلات د بناغلي غمژن دغه قوت په ګوته کوی . د لوښت
په حقله هغه پروین ته د ځینو معلوماتو خزانه په دا رنګ راسپړی .

"د قدرت د بنکلا دا نمونه نه صرف د حسن او بناستت
نمائش دے بلکه د غیرت او حریت د عزت او وقار یو سبق
هم دے . پروین ! دا بنکلے مارغهٔ چه ځنے خلق ئے د مرغ زرین
په نامه پیژنی او چتو مسکو واوریښو غرونو کښې استوګنه کوی .
واورے سره سره کوزیږی او خیژی . یو قسم کا ږے خوری
او دوانو کښې شپه تیروی ."[1]

د ګل خان په کردارونو کښې د ټولو نه اهم کردارونه هم
ډیرلښ پاتے او نامکمله کردارونه معلومیږی . او دا سے بنکاری چه
دغه لنډ پاری کردارونه د سفر په اوږده لاره باندے د ډیرے
ستوماتیا له کبله راپریوځی . او په مینځه لاره کښې پاتو نبلی او یا ختم
شی . په دغو کردارونو کښې د ګل خان کردار د ټولو نه موزون مثال دے
او ورپسے د عالم خان ملګرے زرینه او د پروین معشوقه پشمینه هم راځی .
دغه کردارونه اګرکه په قصه کښې تر آخره پورے ژوندی کوی . ولے بیا هم

---

[1] ګل خان ، شیرزمان غمژن ، ص ۲۱

دهغوئ په فنی ژواک باندے ناول لیکونکی څهٔ خاصه توجه نهٔ ده
ورکړے .

د ناول په ټولو کردارونو باندے د مرزا احمد خان کردار خور ښکاری
او هغه د شروع نه تر آخره د مصنف د توجه او پام مرکز پاتے شوے دے.
مرزا چه په کوم شکل کښے په ناول کښے موږ ته مخامخ کیږی هغه ددے
کردار ارتقاء یافته شکل دے . د غه وخت هغه د پنځه پنځوس کالو عمر ته
رسیدلے وی . په سپین مخ ئے سپینه غونډئ اولسنړه بډیره ښکاری . او
په سپینه ټوپئ د ململ پټکے تړی . پنځه دیرش کاله اګاهو یو ښکلے
ذلے وو . تر لسمه ئے سبق ویلے وو او د هغے وخت احمد خان یو مستانه
او هوائی ذلے یا دیدهٔ . او د ناول لیکونکی په الفاظو کښے

"دهغه د چارو دلاسه د هغه ماتے مور په سرئے
نیزه آسمان را ټیټ شوے وو ."

خو ناڅاپه په دغه دوران کښے هغه د شپے په خوب کښے یو بزرگ سرے
اولید او د دغے بزرگ په نصیحت د احمد خان په ژوند کښے یو انقلاب
راغے او ټولے الټے غلطے ئے پریښنودے .

احمد خان د پلار د مرګ نه پس د شین عش د سر ختیزے غارے
د ټول جائیداد مالک شو . هغه د حکمت او فلسفے کتابونه هم اولوستل
او د هغه په ذاتی لائبریرئ کښے د فقهے، حدیث فلسفے او تاریخ نه واخله
د شعر و ادب پورے هر قسمه کتابونه موجود وو . او د دیر لیک لوست
په وجه د علاقے په خلقو کښے په مرزا مشهور شو . احمد خان مرزا د
خان نه خان او د عالم نه عالم وو او په کوم د نته او دکوم نه بهر به

ACKU

هغه د اوچتو اخلاقو او په خپلو کښې د مينې او ورورولئ د ژوند تيرولو په حقله مثلې او بحثونه کول .

د هغهٔ د ستر شخصيت او سپځلي تربيت په رڼا کښې د هغهٔ ايکی پوهه لون ذرينې هم په کور کښې قرآن پاک په معنو او وسيلو او د پښتو اردو او فارسئ ژبو ديک لوست نه علاوه ئې د شعر او ادب سره هم علاقه پيدا شوه .

د مرزا په کردار کښې د ديو خاص قسمه پړ اختيا ، رمئ او لچک په وجه هغه د هر چا د سترګو تور او د زړهٔ ټکور وو - هغه د پښتو په روايتی کو تهلی او سنتخ ماحول کښې هم تردے حده پورے آزاد خياله وو چه خپلے لورته ئې د خپلے خوښے د مل اختيار ورکړے وو او چه څه وخت د عالم خان په حقله د زرينې د جذباتو په بنکالو پوهے شو نو عالم خان ئې ځان ته د را جختولو پوره پوره زيار او کاږلو - خو د نادر ملک بے مقصده ضد او ذيل د هغهٔ د نيکو ارادو مخ نيوے کولو - مرزا تردے حده نرم مزاج او دوست وو چه د خپلو مخالفينو له ارخه چه پړے د طعنو او پيغورونو د اقسم له غشی وريدل - چه هغه ويريو ونکے دے او بے پښتو کار وسه کوی - خو د مرزا په نزد د پښتو تصوّر بدل وو او د مخالفينو د کړ ســے روے په جواب کښے به د هغه رد عمل دا وو -

"که ئې دا څوک وائی چه مرزا د پښتو پوزه پريکړه - نو هغه به د پښتو بدل مطلب اخلی - او زهٔ بدل - په دے تاسو زړونو ته هيڅ قسم له خفګان مهٔ راولئ - خپل طرف ســـه

---

له ګل خان ، شير زمان غمژن ص ۱۲۶

کوشش کوئ چه دلاس او ډېر نه مو څوک آزار اونهٔ موی[۲]۔

...... احمد خان مرزا د مضبوطے عقیدے اوسترے حوصلے څښتن دو - او د ازمیښتونو ...... مقابله به ئے په روڼ تندی کوله - دګل خان د قاتلانو نه د بدل اخستو رواجی طریقے هم د هغهٔ په وس کښے وے خو هغهٔ ته د یو سړی په سر کښے دخاندانونو دشمنی په سر اخستل بے سوده او غلطه چاره ښکاریده - دے هرڅه ته ئے ساه اونږده کړه او قدرت مجرمانو له په خپله سزا ورکړه - بل خواۓ دګل خان د مرګ نه پس د هغه د خیلخانے سره په دے شان پښتو سرته اورسوله چه هغوئ پېږے به ے اوګرځید داپید اۓ کړل او دګل خان بچو لهۓ په خپل جائیداد کښے برخه ورکړه - داحمد خان مرزا په کردار کښے بناغلی غښړن د حقیقی پښتو او پښتونولئ دروح برښنا ښئلے ده -

د نادرخان ملک کردار د مرزا د کردار عکس او ضد دے - په هغهٔ کښے د خود نمائ ، توبګنئ ، شرفساد ، حسد او بے ضرورته ذیل هغه وارخیونه داتول شوی وو کوم چه د رواجی پښتو د غلطو او ناخوښوار خوتو نمائندګی کوی - هغه یونالوستے او جاهل انسان وو - او دګلابی غونډے دخوشامندګرو او بد فطرته کسانو په وینا به ئے ځان په غړیدلو سترګو کندے ته ورګوزارولو او ددغے بنیادی خامئ له کبله هغه د ژوند په منړه کښے هم په هر ډګر د مرزا نه وروستو پاتے وو - او دغے احساس د احمد خان مرزا غونډے روغ نیتے او بے ضرره بنده هم د هغه کږو سوچونو ته دیو دشمن په څیر کښے راوپاندے کړے وو - او د هغهٔ د دوستئ او عزیزولئ په نرمه رویه پورے به ئے خندا او ملنډے کولے چه دا د پښتون د شان سره نهٔ ښائ

د نادرخان د جتانه مزاج د ذیل دا حال وو چه په کلونو ئے د خپل ایکی سس زوئے جدائی ته غاړه کېښوه خو د مرزا د لور سره د هغه واده ته جوړ نه شو - د هغه د ناسته ولاړے کړو وړو او لهجے نه د یو مکمل بحاصل انسان تصویر وړاندے کیږی - خپلے ښځے سره د عالم خان او زړینے د واده په موضوع د خبرو اترو په موقع وائی -

" ولاړ کافر لور ـــه - ژبه دِ نهٔ ده بیاتی ده چه خبرے ته ے پرے نږ دے ...... - مرزا هم څه سړے دے هغــه خو د پښتو پوزه غوځه کړے ده - وږی به ترے زمــا دهقان او شوکوی او جرم به هغه منی -"

د تعلیم په حقله د هغه خیالات داوی -

" زما هلکان بد ی شی چه سبق اووائی او کله د چینکو ئے ستوکی غور کړی وی - مور پــلار ترے هم هیر شی - او دلته ستا په بانړه کښے چینکئ سبق وائی چه صبا هــره یوه د خپلے خوښے میړهٔ پسے ســروی -"

او د غه ناپوهـــه ذیلی او فولادی انسان هغه وخت ویلی شی کله چه په ناعـلاجه مرض پریوځی او د هغهٔ د سترګو په وړاند ـــے د هغه د ډ ے وران کاری شیطانان قــدرت خپل لړزوونکی انجام ستــه اورسوی او چه مرګ د نادرخان ملک په سر او دریږی نو هغه خپل تقصیر

---

[۱] ګل خان ، شیر زمان غمژن ص ۶۰

[۲] هـــــــم د غه کتاب ص ۱۲۱ ، ۱۲۲

اوځي ـ خو په خپله دهغې سزا نه پخ نهٔ شي کوم چه دهغهٔ دکردار دفطري انجام دغوښتنو مطابق وي ـ

په ناول کښې دذلمي کول په نماښنده کردارونو کښې دعالم خان او اسلم پروين برخه ډيره لجوته رنګينه اوډوسنډي برخه ده ـ عالم خان په روايتي طرز کښې ددے ناول رومانوي هيرو دے ـ او په اولنۍ پيژندګلو کښے موږ دکالج په مشاعره کښې ديو طالب علم شاعر په حيث وينو ـ په دغه مشاعره کښې عالم خان ځمخور په خپل ښائسته کلام باندے ډير داد بيا موي او هم دغه مشاعره داسلم پروين ناشاد سره دهغه دتعلقاتو بنياد شي ـ

دنادرخان ملک دايناړين زوئے په سيرت اوطبيعت کښې دخپل پلار نه بيخي بدل وي ـ دکلي وال ماحول اودخانۍ دفضاځنې عادتونه اوخويونه په فطري ډول دهغه سره ترلي وي لکه دښکار شوق او د نوکانو ساتل ـ خو دهغه شاعرانه فطرت دهغه په طبيعت کښې درومانيت اوجمالياتي ذوق سره ديو مخصوص ډول سنجيده والے اوتنهائي پسندي هم پيدا کړي وي ـ او په دغې رويه کښې ددزرينے سره دناکامے مينې هم لوئے لاس وي ـ

دعالم خان شاعرانه مزاج اوشائسته شخصيت چه دخپل پلار دضدي فطرت اوسپورے ستغې روئے سره برند شي نو په دغه تصادم کښې دهغه دپاره ډيرے ذهني اونفسياتي کشالے پيدا شي ـ اودهغې په نتيجه کښې مور پلار اوکورکلے هر څه شاته پريږدي ـ او په ښار کښې خپله سرائے کښې دتنهائي قيد ته ځان اوسپاري ـ دعالم خان خودداري

دهغه نه هم یو ښدی ذلمے جوړ کړی خو دهغه د غیرت او پښتو تصوّر د پلار نه بېخي جدا وی . د ملک نادرخان کردار دهغه په وړاندے یو ناخوښه کردار وی ولے بیا هم په پښتنی معاشره کښے چه د پلار او زوے ترمینځه د حیا او ادب کوم بریند تیاکلے شوے وی په هغے باندے د کلام اړولو چرته هم ګواښ نهٔ کوی - د ذړینے مینه هغه د ژوند سرمایه ګنړی خو د پلار د خواهش او مرضئ خلاف هغه د مینے قسمه قدم پورته کولو د پاره تیار نهٔ وی او د لوغړنے مینے واړه تاؤ په صبر خاموشئ او استقلال په خپله سینه دننه تیر وی - د هغهٔ زړهٔ د رازونو یو داسے ژور سمندر وی چه د "پروین" غوندے نږدے یار ته هم د ذړینے د مینے راز نه ښکاره وی .

عالم خان یو دوست پروره پښتون ذلمے وی او د پروین په شکل کښے چه هغه یو خوا خوږ ے او اخلاص مند ملګرے بیا موی نو تر آخره پورے د هغهٔ سره پخه یارانه اوشړی . تر دے چه د واړه داوسیدو د پاره په یو ځائے بنګلے هم جوړے کړے . دهغهٔ د پښتونولئ تصوّر تر ډیره حده د احمد خان مرزا سره مشابهت لری - او هم له دے کبله چه څه وخت مرزا د ګل خان زوے ګل اعظم له په خپل جائیداد کښے د برخے ورکولو اعلان اوکړی نو عالم خان هم د ګل اعظم د خور او د پروین د چنغلے ، پشیمنے برخه په ځان اومنی .

داسلم پروین ناشاد په شکل کښے بناغلی غمژن د پښتو ناول نویسئ په میدان کښے یو نوے او دلچسپ کردار را وړاندے کړے دے . د بنادیو داوسید ونکو په حقله عموماً د کلی وال ماحول داوسید ونکو

ACKU

نظریه داوی چه هغوئ بنهٔ انسانان وی خو یا خهٔ دوستان نهٔ وی۔ خو پروین هغه بناړے دوست وی چه په یارانه کښے ډ عالم خان نه هم یو ګوته وړاندے روان بنکاری ۔ او دا ے معلومیږی چه فطرتاً هغه د سوچه کلی والے معاشرے مخلوق وی او په تیره کښے په بنارکښے زیګیدلے وی۔ هغه یو شاعر وی او د شاعرانه مزاج څښتن وی او د بناړ ے د هنګامو نه زیات د ګلدرے په خاموشه بناڼست ځان وژنی ۔

د عالم خان په شان د هغهٔ زړهٔ هم دیوے کلی والے جینئ په زلفو کښے بندی شی خو دیره عجیبه خبره داوی چه په بنار کښے لوئے شوے دا تعلیم یافته او د ډاکټرئ د کالج په بے شمیره رنګارنګ حسن لروسکو جونو کښے ګرځی په ظاهره دا بے پروا قسم زلمے دکلی وال بناڼست د یوے نښدارے نه دومره متاثره شی چه د داستانی طرز دشهزاده په شان د لیونتوب ترحده ورشی ۔ او په کلونو کلونو د دغے بے نومه بے نشانه لیلی په تصوّر کښے سرګردانه ګرځی ۔ او د هغے نه زیات دلچسپ اتفاق داوی چه د مخور د معشوقے زړینے په شان د ناشاد صیب خیالی معشوقه پشمینه هم شاعره او خپلی خوولے ددے خامو باوجود هم داسلم پروین ښاشاد کردار یو ژوندے او خوند ور کردار دے ۔ او د عالم خان سره د یارئ په رشته کښے چه هغه د مینے ، اخلاص او پښتونولئ کوم تار داتهینګ کړے وی ۔ هغه په ذهن یو خوشګوار اثر پریږدی او دا د بناړے او کلی وال ژوند د تعلق او تړون په لوری یو بناښته او سودمن تکل دے ۔

دګل خان په زنانه کردارونو کښے زړینه یو داسے کردار دے چه هغه په محسوس او غیر محسوس انداز کښے د لوستونکو توجه ځان ته راکاږی ۔

زرینه دمرزا احمدخان پښاګُستته اوناز وله لوروی خو دهغې تربیت خپل ستر پلار په دادود کړے وی چه په هغې کښې د درنو اخلاقو او حیا پت او غیرت خویونه کمال ته رسیدلی وی - زرینې ترڅه حدٔ پورې لیک لوست هم زده کړے وی - دشعر و شاعرۍ سره هم مینه لری او "درحمن بابا ، خوشحال خان ، حمید ، علی خان اونورو پښتنو شاعرانو ډیر شعر ونه ورته یاد وو -"

او شاید ددے غه شاعرانه ذوق اثر وو چه په درسته کلاڼه کښې هغې دعالم خان غمخور خیال له په خپل زړهٔ کښې ځائے ورکړے وو - زرینه ښکلے هم وه او ډیر مالدار او مخورین پلار ایکی یواولاد او د هغهٔ د جائیداد وارثه هم - دخوا ؤ شا معتبرانو مکانو ورپسې تنړئ شلولے خو مرزا احمد خان دهغې دوادهٔ حق هم دهغې رضا ته سپارلے وو ځکه چه د غ هوښیار او تجربه کار پلار دخپلې لور په فیصله او انتخاب باندې پوخ باور لرلو -

او سره ددے چه زرینې ته دعالم خان دپلار ملک نادرخان دغلطے روئے او دخپلې مینې په لار کښې دخنډونو او مشکلاتو پښهٔ اندازه وه وله یا هم دهغې حساسه زړګی او غیرتی مزاج چه یوځل خپل ځان دکوم مل د تصوّر سره تړلے وو دهغې نه په شاکیدل ورته دپښتو نه خلاف خبره ښکاریده او دیت او وفا په لار کښې ے هرے قربانئ ته ځان سپارلے وو -

---

لے گل خان ، شیر زمان غمژن ص ۳۲

زړینه په اولسی او اجتماعی توګه هم یوه عیرتي او باشعوره ځنیځی وی او څه وخت چه د پښیمینے د بے ګناه پلار د قتل خبر واورې نو مغه په خپله ملګرے باشے ننګ اوخوری ټوپک ته لاس کړی او د مرزا احمد خان مخے له راشی ۔

" بابا ما پریږده چه د ګل خان بدل واخلم "

او چه مرزا ورته د صوش او مصلحت خبره وراشے کړی نو د زړینے د کودار راستی او بے باکی په دا سے پرانستی انداز کښے ځان ښائی ۔

" باباجی ته به دے پے هم مسئلے ګورے چه د ګلاب مرګ روا دے که نه ۔ زهٔ درته وایم چه د ګلاب د وژلو حکم یو کتاب کښے هم نشته خو زهٔ ئے نن وژنم ګل خان ته نهٔ شے کتلے ۔ زهٔ به ئے ګورم ۔ "

---

له ګل خان ، شیر زمان غمژن ص ۱۸۹

ځه همدغه کتاب

## نوے کول

نوے کول د ساغر اپریدی ناول دے ـ ښاغلے ساغر د پښتو افسانے یو پیاوړے لیکوال دے او په افسانه کښے د خپل مخصوص طرز ښتن دے ـ په خپل اولنی ناول کښے ساغر د نوی کول د زلمو د ځنو معاشرتی او نفسیاتی کشالو د عکاسئ ډیار کړے دے ـ

نو د دے ناول په پلاټ کښے د قصے او واقعاتو له ډډے څهٔ ښکاره اوتړلے فنی او تکنیکی ترتیب او تنظیم نهٔ ښکاری ـ او ټول واقعات په داسے هنګامه خیز او حادثاتی ډول مخے له راځی او داسے بے ربطه په مخه زغلی چه په مخے کښے د کردارونو په حقله هم څه واضحه نقشه په ذهن کښے نهٔ جوړیږی ـ اوکه د دے ناول د غونډ پلاټ نه څه د کار خبره راوځی نو هغه دا ده چه ښاغلی ساغر په ډیر جذباتی انداز کښے یو خوا ته د موجوده نسل د زلمی تعلیم یافته او مغرب زده کول په بے لاره شوی کردار بانـدے تنقید کړے دے او بل خوا ته هم د دغے مسئلے د حل دپاره هم په دغو زلمو (او پیغلو) کښے داسے کسان رامخکښے کوی چه هغوئ د خپلے طبقے د ملګرو د رهبرئ دپاره په اخلاقی او کرداری توګه د ښتینی اسلامی او پښتنی ثقافت ماډلے (نمونے) شی ـ او ادب سره سره د پښتنو د قبائیلی او رواجی طرز په معاشره کښے چه د ځوانانو په جائزے فکری

او معاشرتي آزادۍ بانده د زورځيالو مشرانو له خوا کوم بنديزونه لګيدلي
دي د هغې غندنه او مخنيوے هم اوشي .

ددے ناول ټولهم کردارونه د معاشرے د دروچتے منځنۍ او نيمې خوږې
طبقے سره تړون لري او دا سے ښکاري چه د ښاغلي ساغر " موسے کول" هم
د دغے مخصوصے طبقے په بريدونو کښے راګير دے .

د ناول اولنۍ روماني جوړه جاويد او سيما د ميډيکل کالج لوستونکي
وي جاويد د يو ے ستړے او مالدارے ايډيډي کورنۍ ځلمے وي او د سيما پلار
قادر په فوځ کښے جرنيل وي - او د زلمي ورور د مرګ نه پس سيما د مور پلار
ايکي سر اولاد وي - چه د يونيورسټي ټاؤن په يوه عاليشانه بنګله کښے استوګنه
کوي او د نوې ماډل په مرسيډيز بينز کښے چکرے وهي - د کالج په يوه ډرامه
کښے د جاويد داداکارۍ او د هغهٔ د شخصيت نه د متأثره کيدو په نتيجه کښے د
سيما او جاويد تعلق جوړ شي - او چه يو ځل دوئ د وارډ ډيسپنور صدر ته
په واپسۍ کښے د يونيورسټۍ اړخ ته په خپل مرسيډيز بينز کښے رارواں وي
نو په يو بل ګاډي کښے ناست کسان په دوئ ډزے اوکړي - د غه کسان د دوئ
د کالج يو ملګري سليم د اګاهو نه په سړکو کښے اخستي وي او په موقع د دوئ
مدد له ځان رااورسوي خو د هغې نه مخکښے د بدمعاشانو د لاسه سيما د جاويد
د بچاوي په کوشش کښے په ګولۍ اولګي او په سوک ځيږه کښے جاويد
هم زخمي شي .

د سليم په مرانه جاويد له مرګه بچ شي او سيما په چيا پرده کښے
هسپتال ته اورسولے شي او د دغے واقعے نه پس سليم د جاويد او سيما تړلے
لګرے شي او په ناول کښے د هغهٔ د تورے ، مړانے او ځوانۍ دې د کارنامو

یوه نۀ ختمیدونکے سلسله شوروشی ـ جنرل قادر او دمغۀ بیگم ته د سلیم په شخصیت کښے دخپل ځوانی مرګ فوځی ـ بچی عکس اولیدے شی او مغوئ ـ ځان ته راندوے کړی ـ او په دے نودهم خوشحاله او حیران شی چه سلیم دیو پولیس جرنیل زوئے وی ـ په جاوید او سیما باندے حمله کوونکے په حقیقت کښے دبناد دیو نوموړی خان بهادر زوئے امجد وی څوک چه د خپل جرم په الزام کښے په حوالات کښے بندی شی ـ

د نوی کول دسپین پوستو (سوشل) بدمعاشانو په طویله سلسله کښے د میډیکل کالج دیو زلمی پروفیسر جبار نامه هم راځی او د مصنف په الفاظو:

"په سیما پسے په اسویلو کوونکیو کښے دجبار اسویلی دټولو نه اوږدۀ وو ـ"[1]

د ناول په اولنئ برخه کښے دپروفیسر جبار کردار بے ضرورته او بے مقصده دومره غور زیدلے ښکلے شوے دے چه دعقل او شعور د خاوندانو سرونه ورته دشرم نه ټیټ شی ـ

(او شاید چه دغه دے ناول د اعتراض جوګه برخو کښے دټولو نه اهمه برخه ده) او هم دغه جبار چه دخپلو ناز یبا حرکتونو له کبله دخپل شاګرد سلیم دلاسه وهل او خوری نو دمغه نه پس سمدستی داسے بدل شی چه د مصنف دننګیالو او باتوراتو په صف کښے دسلیم سره څنګ په څنګ روان شی ـ او د شیطان نه فرښته شی ـ داسے ښکاری چه لکه دسلیم دمغه دے دنیا ته راتګ هم خاص دمعاشرے او نوی کول د اصلاح په غرض وو خو دغه پرېوتی حرکتونه ئے محض دخوړے دخوند د بدلولو په خیال کول ـ

---

[1] نوے کول ، ساغر افریدے ص ۵۶

جاوید او سیما دوارہ د وادۀ منصوبه اوتړی خو ددوارو په منځ کښې دجاوید د پلار تیراه وال هوډ ولاړ وی - هغه دځل مشری زوئے یعنې اقبال (چه اتفاقاً دجنرل قادر اے ډی سی هم اوخیژی) په شان په کشری زوئے جاوید هم دا ظلم کول غواړی چه هغه دځلو اړیدو نه دهر وادۀ اونۀ کړی - خوداهم دسلیم کارنامه وی چه جاوید دمشری ددوړ په شان د پلار درواياتو په وړاندے توره وال نۀ غورزوی او پلار د ځل ضد نه واړوی - اودناول په عوسټو سلاتې کښې دمصنف له خوا دځلو کردارونو سره یوه اشنا که اومقصدی واقعه او رویه معلومیږی.

ددے ناول دویمه مهماتی برخه په "مری" کښې شوروکیږی چرته چه جاوید، سیما، سلیم او جبار دسیل په خیال دیره شوی وی خو سلیم دځلے "جیولیټ" پری په مینه کښې اونښلی او د مختلف قسم بے شمیره معرکو اومقابلو نه پس دهغې په حاصلولو کښې بریالے شي - په دغه معرکو او درزغوبل کښې جبارهم دځل شاګرد سلیم سره اوږه په اوږه جنګیږی.

د ناول خاتمه په کالج کښې په یو اوږد خصوصی تقریب باندے اوشی او دهغې غرض داوی چه دصوبے ګورنر د نوی کول نمائنده زلمی او پیغلے (سلیم او سیما) له انعامونه ورکړی -

ښاغلے حمزه شنواری ددے ناول په حقله ځل تأثرات داسے ښکاره کړی دی -

"ددے ناول اګر بیکر بعضی دیوے مختصرے طویلے افسانے [له] دی چه د ناول په کالبوت کښې ځائے کړے شوی دی - اسلوب

---

له نوے کول - تبصره ص ح - ط

ځې د فلمي قصې غوندې دې او چا ئې هم دے - ځکه چه د نوي کول په حقله ده چه اکثر پېښې يان دی او جنګ جګړې د خدا ئې نه غواړي -"

خو د دے حقيقت نه انکار نۀ شي کيدے - چه په نوي کول کښې د ساغر منو نے با شعوره او حقيقت پسنده اديب د ضرورت نه زيات فلمي او غير حقيقتي انداز ځپل کړے دے - په پلاټ کښې د واقعاتو او حادثاتو ناقصه او غير فطري ترون د دے ناول څو سپځلو کردارونو خصوصًا د سليم کردار ته ډېر نقصان رسولے دے - او دغه بناسته او مقصدي کردار هم د تصنع او تکلف په رنګونو کښې داسے ډوب ښکاري چه د لوستونکو د همدردۍ او دلچسپۍ د ځپلولو په ځائے هغه يو د توقو ځيز شي - او د جاسوسي او مهماتي طرز د ناولونو په شان د نوي کول مصنف هم د ځپل ميرني سليم د مرانے د عکاسۍ د کارنامو ښودلو په غرض په زور زياتي داسے بے خرته ډېرے موقع او ماحولونه (Situations) پيدا کړے دے چه بے حده غير فطري او د مبالغے نه ډک معلوميږي - په نوي کول کښې د بناغلي ساغر کردار نګارۍ ته بناغلي مراد شنواري د ناول په سريزه کښې له يو بيلے زاوئے نه هم کتنه کړے ده -

"سرۀ د دے چه دۀ ځپلو کردارونو ته د سوچ او حرکت پوره پوره آزادي ورکړے ده خوځائے په ځائے مونږ داسے محسوسوو - لکه د کردارونو شا ته ساغر په ځپله ولاړ وي او کله ناکله د ځپل زړۀ آواز د کردارونو په خله لوستونکو ته رسول غواړي -"

---

۱ نوے کول ، ساغر اپريدے - سريزه مراد شنواري ص يط

# پښتو ادب کښې د ډرامې ارتقاء

په پښتو کښې ډرامه هم د ناول او افسانې په شان په روانه صدۍ کښې زيږيدلې ده - او تر اوسه چه کوم تحقيق شوے دے د هغې له مخه د ښاغلي عبدالاکبر خان اکبر "درے يتيمان" د پښتو اولنۍ ډرامائي زيار گڼلے شي - دا ډرامه د اتمانزو د آزاد سکول د کلينزے په دستوره کښې په کال ۱۹۳۷ء کښې سټيج کړے شوه - د دے ډرامے رنگ اصلاحي وو او په دے کښې په پښتني معاشره کښې د خانانو د زور زياتي او د هغه وخت د ځنو نام نهاده مذهبي عالمانو د رياکارۍ او د وړ پړيقے روے خلاف په ډير ساده خو ښتيني او مؤثر انداز کښې آواز پورته شوے وو - درے يتيمان هم د هغه اصلاحي تعميري او انقلابي ادب د زنځير يوه کړۍ ده کوم چه د نوؤ سياسي او اولسي تحريکونو په پس منظر کښې د شلمې صدۍ د شورو کيدو سره په پښتونخوا کښې ساه اخستې وه - د ښاغلي رضا همداني په الفاظو -

"پښتو ادب او معاشرے کښې داوړومبئ تسويدي عملي او منظمه ډرامه ده - د دے پښتو ډرامے آواز ترکړے

---

له قند مردان ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء ص ۲۶

لرے لاړه - هر چا چه دا خبره واوريده - نو يقه خوله

يئوے حيران پاتے شو چه هلکه د پښتو ډرامه! پښتو سټيج!

او پښتانهٔ اداکاران!

خو دا خبره دروغ نهٔ وه مفروضه نهٔ وه گپ نهٔ وو -"

وے دا خبره هم په خيال کښے ساتل پکار دی چه په پښتو کښے د ډرامے دا تصوّر څهٔ غوره ټپه او په حادثاتی ډول زيګيدے نهٔ وو- د پښتو داولسی قصّو او رومانی مثنويانو په کرو وړو او تنه بوده کښے د مودو راسے د ډرامائی عمل ، ډرامائی پيښو ، مرحلو او مکالمو روايت په غير محسوسه طريقه بانسے داروان وو - خصوصًا زمونږ په مقامی اولسی رومانونو لکه آدم خان درخانئ ، موسٰی خان گل مکئ - مومن خان شيرينئ دے شهئ او داسے نورو قصّو کښے ځائے په ځائے بے شميره حسِن باقی او لړزوونکے ډرامائی نشـدارے - کيفيتونه او کردارونه ليدے او محسوسولے شی -

د پښتو شاعرئ په کلهمو اصنافو لکه ټپه ، چاربيته ، نيمکئ او بدله کښے دسوال اوجواب په طرز داسے ډرامائی حالتونه او مکالمات ترغنه کيږی چه په مغو کښے په اکثرو په غير منظم شکل کښے د ډرامے مينه ماتيږی -

نوموړے شاعر او ډرامه نګار ښاغلے عبدالله جان اسير په دے مقله ليکی چه -

" د پښتو ټول ژوند ډرامه ډرامه دے - دغه وجه
ده چې د پښتو په شاعرئ کښې دسوال ځواب په طرز باندې
ډیرے چاربیتې ، لوبې او نیمکئ موجودے دی - زهٔ منم چه
په پښتو کښې د "شکنتلا" غوندے نا ټکونه تهٔ دی لیکلی
شوی - خو چه دچا ژوند ټوله ډرامه وی هغوئ په ډرامو
لیکلو ته څه توجه کوله -"

هم دغه وجه ده چې د پښتو ډرامے دشوی و نه تر داوخته
په شپیتهٔ کلن دور کښې چه څومره ډرامے لیکلے شوے دی - په هغے کښې
اکثریت دداسے ډرامو دے چه هغه په څه نه څه شکل کښې د پښتون اولس
د اجتماعی اولسی ژوند سره اړه لری - او دغه ډرامے د فنی ښکلا او تکنیکی
باریکو او اړوپیچ نه زیاتے دخپلے معاشرے دعمومی پیښو اوکشالو ښتینی
هنداره ښکاری - دډرامے د پلاټ دودے دپاره چه دکوم بنیادی تصادم
(conflict) او برسندو حالاتو ضرورت وی - هغه په پښتنی معاشره کښې
په قدم قدم پیښیږی - دډرامائی عمل دپاره چه کوم بنیادی مواد
پکار دی هغه زمونږ دژوند په ټوله تنسه بوده کښې اخښلی شوی
دی - او کوم کردارونه چه دخپلو ناهمواره فطرتونو په زور دغه
عمل په مخه بیائی زمونږ داولسی ژوند هر دویم وګړے ددغه ناهمواره
کردارونو په جثه کښې ځان ښائی -

پروفیسر پریشان خټک په خپله یوه اردو مقاله پٹھان اور

---

لے قند ډرامه نمبر ۱۹۶۰ ص ۲۲۷.

ډراما کښې پيکې -

" ڈرامہ کے متعلق ارسطو کا یہ عقیدہ ہے کہ انسان کا وہ فطری ذوق جوشعر کا باعث بنتا ہے دو چشموں سے سیراب ہوتا ہے - ایک تو تفاخر سے جوکہ باپ دادا کی بڑھائی اور عظمت کے تأثر کا نتیجہ ہوتا ہے جو رزمیہ اور فخریہ اشعار کا محرک بنتا ہے - دوسرا غیب جوئی اور نکتہ چینی کا وہ انسانی طبعی میلان جس سے ہجو پیدا ہوتی ہے - رزمیہ اشعار سے ٹریجیڈی بنتی ہے اور ہجو کے اشعار سے کامیڈی -

اگر پشتون معاشرے کے ملی رجحان کا بغور مطالعہ کیا جائے - تو معلوم ہوگا کہ اس سوسائٹی میں یہ دونوں چیزیں بدرجہ اتم موجود ہیں - یہاں قبیلوں کی زندگی کی وجہ سے ہر قبیلہ کا فرد آباؤ اجداد کے کارناموں پر نازاں رہتا ہے اور دوسرے قبیلے کی برائی میں حتی الامکان کوشاں ہیں - یہی وجہ ہے کہ یہاں پر عجیب و غریب ضرب الامثال اور محاورے بن گئے ہیں - جو کہ آج بھی زبان زد عام و خاص ہیں - لہذا یہاں جو بھی واقعات رونما ہوتے ہیں ان میں تفاخر اور ہجو دونوں کے پہلو انتہا پر نظر آتے ہیں - "

ښاغلی پريشان خټک چه د پښتون اولس د اجتماعي او قبائلي تفاخر او بدلائي کوم خصلت ته اشاره کړې ده هغه په انفرادي ډول کښې هم د پښتون وګړي د فطرت يوه لازمي برخه ده - او دلوئي ، برائي او تنخصي انا دغه تيرۀ احساس هر يو پښتون د ژوند په يوه نه يوه مرحله د ډرامې د يو کودار په څير وړاندې کوي - په منظم او وقتي شکل کښې د ډرامې

---

له قند اردو ڈراما نمبر فروری مارچ ۱۹۷۶ء ص ۱۳۴ - ۱۳۵

درواج نه اگاهو د یونان ، هندوستان اویورپ غوښے په پښتو نغواکښے به هم سندرغاړو ، مجلسیانو ، نقلیانو او توقمارانو د ډراماټی طرز تو تے لوبے او تماشے اولس ته وړاندے کوے .

او په کو موورځو کښے چه د پښتو اولنئ ډرامه لیکلے شوه دهغے نه مخکښے د شلو نځویشتو کالو راسے زمونږ په سیمه باندے د ناویشلی هندستو مشهورو تجارتی تیهټری کمپنو د اردو ژبے بے شمیره ډرامے سټیج کړے وے - او مزوری خبره دا چه د عام اولسی د شوق او ځلے سره سره زمونږ دیکوالو ذوق او ذهن هم د خپل وخت ددغه اردو ډرامو نه اثر اخستے وی - په دے لړکښے د پښتو ډرامے داولے دورے د یو ستر لیکونکی او پیاوړی شاعر بناغلی امیرحمزه خان شنواری دابیان د پام او توجه جوګه دے .

" زما څپـلـه مشاهـده ده - چه ماورومبی ځل کوم وخت د سټیج ډرامه " یهودی کی لڑکی " اولیده - نو دهغے او د هغو قصو په تاثر کښے څهٔ دومره ډیر فرق نهٔ وو - کوے چه ما د رباب سره د قبائلی عـلاقے په حجرو کښے اوریدلے وے . د سټیج ددغے ډرامے اثر نکوټی ځکه زیات وو چه پـه هغه کښے ژوندی لوبغاړی ماته مخامخ په کار بوخت وو . په دے وخت کښے به زما عـمر اوولس اتلس[۱۸] کاله وو - او زهٔ طالب علم وُم - او زهٔ داویلے شم چه زما ادبی استعداد

---

له قند ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء ص ۲۱۵

هم دغه ډرامے اوخوزولو ۔"

او د دے حقیقت نه انکار نهٔ شی کیدے چه د بر صغیر د نورو علاقو اوډبو په شان په پښتو نخوا او پښتو کښے هم د ډرامے رواج ته د غه تیټری کمپنو لارے هوارے کړے د کومو سره چه په دے سیمه باندے د شلمے صدئ د شورو کیدو سره سم لګیدلے وو ۔ په اول ځل پیښور ته په کال ۱۹۰۲ء کښے "الفریډ" نومے کمپنی راغله او دلته ئے د ډرامو ابتداء اوکړه .

" دا ټوه ډیره لویه او شانداره کمپنی وه - دخیرانتیا خبره داده چه پیښور ته راتللو نه په دے اولنئ کمپنئ کښے یو نامتو اداکار چه ګلزار خان نومیدهٔ د پیښور وو - په دے بنا که مونږ ګلزار خان ته د پیښور اولنے اداکار او وایو نو بے ځایه به نهٔ وی ۔"

او په دغه پسے د بهرنو او مقامی تیټرونو یوه اوږده سلسله شوروشوه - چه هغه تر هغے پورے روانه وه کله چه د فلمونو یرغل راغے او د غه تجارتی کمپنو سره ئے د ډرامے د شوق او سټیج د رواج خاتمه هم اوکړه - د تجارتی کمپنو د خاتمے نه پس په پیښور کښے په شوقیه انداز په محدوده پیمانه ځینے ډراماتی کلبونه جوړ کړے شول - چه په هغو کښے ذیات لاس د هغو اداکارانو ، ټیکونکو او تکنیک کارانو ووکوم چه د تیټر سره پاتے شوی وو ۔

په دغو ډراماتی کلبونو کښے د بناغـلی دیوی د ته "بهجن منډلی"

---

۱ تند ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء ص ۵۱

او د سید سعید شاه غافـــل " افغان ډرامیټک کلب " زیات مشهور دی.
د دغو کلبونو سره خوا په خوا د اسلامیـه کالج او اېډوارډز کالج پېښـــور
ډرامیټک سوسائټئ، هم ډیادولو جوړه دی - خو لکه څنګه چه به د دغـه
وخت ډراماتی کلبونو . تیـتر په روایت کښې د اردو ډرامې پیش کولے . د
کالج دغو ډراماتی سوسائټو دخپل تعلیمی چاپېرچل په سمې د انګریزئ
ډرامو ته زیاته توجه ورکړے وه .

او د ښاغلی خیال بخاری د څېړنے له رویـه .

" خو د پېښور په دغه قسم سټیج باندے چه ماتے[۱]
ذکر اوکړو د پښتو یوه ډرامه هم نه ده پیش کړے شوے ."

پروفیسر افضل رضا په خپل کتاب ډرامه کښې لیکی چه...

" د کال ۱۹۳۰ء خواوشا میاں عبدالرزاق اسلامیه کالج[۲]
پېښور کښې د " فقیر بزرګ " قصّه دجنت ماتړئ د ډرامے په نوم
سټیج کړه ."

او راقم الحروف ته هم د ښاغلی میاں سید رسول رسا په حواله دا معلومات
ترلاسه شوی دی . چه میاں عبدالرزاق هم په دغه اوان کښې د " خانک جارو " په
نوم یوه ډیره شانداره او مقبوله تفریحی پښتو ډرامه د اسلامیه کالج پېښور
په جیمس یونین هال کښې سټیج کړے ده .

هم په دغه حالاتو کښې او د اردو تهیټر د یواوبل د روایت په اثـر

---

[۱] قند مردان ډرامه نمبر ۱۹۶۰ ء ص ۶۱

[۲] ډرامه د تاریخ - تنقید او فن ) افضل رضا - دویم چاپ ص ۹۴

او تسلسل کښې د پښتو اولنۍ ډرامه "درے یتیمان" هم سټیج کړے شوه چه اولس ورته په وازکومی هرکلے اووے.

د ښاغلی اکبر په "درے یتیمان" پسے چه دکومے ډرامے ذکر راځی هغه هم د هشتنغر د سیمے داوسیدونکی ښاغلی امیرنواز خان جلیا "درد" ده. دا ډرامه په کال ۱۹۳۰ء کښې لیکلے شوے وه او هم په دغه ورځو کښې سټیج کړے شوه.

ددے ډرامے موضوع د هغه وخت د انګریزی استعمار د ظلم زور خلاف د ذپلی اولس د پاڅیدلو جذباتو نه تاویږی. دا ډرامه په باړه (چارسده) کښې سټیج کړے شوه او په اداکارانو کښې ئے د خدائی خدمتګار تحریک نوموړی غړی شامل وو.

په "درد" کښې یو خوا د خوار اولس د بے اوزئ ډزونه دږدونکے نقشه وړاندے شوے وه او بل خوا د انګریز سرکار د بے رحمه او بے ضمیره حاکمانو په رویه باندے بے باکه تنقید شوے وو - له دغې کبله د ډرامے د لیکونکی سره سره د ډرامے کارکوونکی او پیش کوونکی هم په جیل کښې بندی کړے شول او مقدمے پرے اوچلولے شوے.

د ښاغلی رضا همدانی داوینا ډیره درسته معلومیږی چه.

"درد د سیاسی ډرامو وړومبنے نقش وو."[1]

د اصلاحی او نیم سیاسی ډرامو په دغه دوره کښې چه په کتابی شکل کښې کومه اولنۍ ادبی ډرامه مخے ته راغله هغه د ښاغلی عبدالخالق خلیق

---

[1] قند ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء ص ۲۷

"شهیده سکینه" وه . د دې بنیادي خیال دیوې داسې پښتنې میرمن د
کردار نه چاپیریږي څوک چه د پښتو او رواج د بندیزونو او قاعدو او د
یو جاهل او بې ضمیره ورور ناکردو هم د چل پلان د میراث نه لاس په سر
کړه او هم ئې د ښځې د کور نه بې کوره کړه .

بناغلي خلیق دویمه اصلاحي ډرامه "خوږ ژوندون" په کال ۱۹۳۹ ع[1]
کښې اوليکله .

"دا ډرامه اول په پښتون رساله کښې په قسطونو او بیا
په کال ۱۹۳۹ ع کښې په کتابي شکل کښې چاپ شوه . په خوږ ژوندون
کښې د اولسي ژوند د راتلونکي وخت یوه تصوریه په تمثیلي انداز
کښې وړاندې شوې ده . کله چه به دنیا بدله وی او د ژوند
موجوده نقشه به بیخي په بل رنګ وی او په دغه تصوراتي
انساني ریاست (utopia) کښې به د بنیادمو کردار هم دینې
محبت او اخلاص په رنګونو کښې خوشت وی .

د پښتو ډرامې په تاریخ کښې د اقسم له خیال یقیناً چه یوه
نوې تجربه وه .

د بناغلي خلیق د "شهیده سکینه" او "خوږ ژوندون"
تر منځه چه په کتابي شکل کښې د پښتو کومه ډرامه راغله هغه د قاضي

---

[1] خوږ ژوندون ، عبدالخالق خلیق دویم چاپ ص ۲

رحیم الله "نوې روښنی" ده - دا ډرامه په کال[1] ۱۹۳۷ء کښې اوليکلې شوه او هم په دغه کال په اول ځل چاپ شوه -

نوې روښنی د خپل وخت په جدت پسنده او زاړه خياله زلمو باندې يو لوئې طنز دې هغه زلمی چې د علم او تعليم د اصل جوهر نه محرومه پاتې شی او د دولت په پړيوانئ کښې ترې د ژوند په اوړه رنګينو کښې د عقل او شعور لارې خطا شی -

د پښتو ډرامې په دغه ارتقائی دوره کښې د ښاغلی محمد اسلم خان خټک دوينو جام ديو انقلابی حيثيت جوګه ډرامه ده - دا ډرامه زموږ د ډرامې په تاريخ کښې ديو کلاسيک او سنګ ميل مقام لري -

په بنيادی توګه دا ډرامه د ريډيو د پاره ليکلې شوې وه خو چه وروستو په کتابی شکل کښې چاپ شوه نو د سټيج د پړدو - ايکټونو - ننداره او تر ډيره حده پکښې د نورو فنی لوازمو خيال هم ساتلې شوې وو - دا ډرامه په کال ۱۹۳۵ء

---

[1] ښاغلی رضا همدانی د قند مردان په ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء کښې په خپله مقاله کښې د دې ډرامې د ليک کال ۱۹۲۸ء ښودلې دې او ښاغلی افضل رضا په خپل کتاب ډرامه کښې هم دغه روايت سر دوباره کړې دې - خو د نوې روښنی د دويم ايډيشن ۱۹۵۸ء په انتساب کښې مصنف په خپله هم د ډرامې د ليک کال ۱۹۳۷ء ليکلې دې - او هم په دغه ايډيشن کښې د مصنف فاضل زوئې قاضی هدايت الله د عرض حال په ابتدائی جمله کښې صفا ليکلی دی چه "دا نوې روښنی زما والد مرحوم په کال ۱۹۳۷ء کښې ليکلې وه -"

ACKU

کښې ليکلې شوې ده. او په هغه وخت کښې ددې اصلاحي ډرامې د غرض او مقصد په حقله ښاغلي مولانا عبدالقادر خپله رائې داسې څرګنده کړې وه.

" مصنف[1] چه د پښتنو د نفسياتو نه پوره واقفيت لري او د دوئي د قتل د وجوهاتو نه ښه خبر دې. هغه په دې ډرامه کښې هغه خاص حالات ښکلي دي. په کوموچه قتلونه کيږي."

د وينو جام کښې په پښتني معاشره کښې د مرګ ژوبلو، مقدمه بازو، ډم بازو غلطو رسمونو رواجونو او د هغې په نتيجه کښې دورانو چارو، غلاګانو او ډاکو په حقله ډيره ښکلې او ساه وعکاسي شوې ده. په فني توګه هم ددې ډرامې اثر او اهميت زمونږ د ډراماټي ادب په ارتقاء کښې ډير ښکاره او جوت دې. دې ډرامې په حقيقت کښې زمونږ د ډرامې په کړو وړو باندې تر موده موده چپل نهٔ وراښيدونکي خاپي پريښودل وے د وينو جام د اصل مصنف قضيه لاتراوسه پورې هواره شوې نهٔ ده - او اکثر خلق داګمان کوي چه دا ډرامه ښاغلي عبدالکريم مظلوم ليکلې وه.

په دې لړکښې ښاغلي رضا همداني د پښتو ډرامې په حقله په خپله يوه مقاله[2] کښې ددې ډرامې اصل پلاټ د هغې دوړ دانګريز ګورنر مسټر ګرفتهٔ سره منسوب کړې دې.

د ښاغلي رضا په خيال

" د مسټر ګرفته په ايماء او پلاټ باندې قمر سرحدي

---

[1] د وينو جام ، اسلم خټک ، ص ۷ ، ۸

[2] قند مردان ډرامه نمبر ۱۹۶۰ ص ۲۸ ، ۲۹

اردو کښې ډرامه اوليکله چه نوم ئې "کټورې بھرخون" وو۔ د دې ډرامې پښتو سټوری اسلم خټک اوليکله او هم د دوی په هدايت عبدالکريم مظلوم مرحوم ورله د سالم۔ مکمل او يو ے اعلیٰ اومفيد ے ډرامے ډول ورکړو چه نوم ئې "د وينو جام اېښودے شو۔"

او هم په دغه لړ کښې د ښاغلی مظلوم زوئے ښاغلے مختيار احمد زاهد په خپله مقاله " زما پلار او پښتو ډرامه " کښې خپل تاثرات داسے څرګند وی۔

"مظلوم په رښتيا هم مظلوم وو۔ ځکه چه د دهٔ په لولوړ شاهکار د بل چا نوم اوشو - او پښتو ادب کښې موږ يو داسے وګړے هم د ډرامه نګارو صف کښې اوليدو چه ډرامه نګار نهٔ وو۔ نهٔ ئې مخکښې چرته لوړ ډراماګانې تخليق کړے وو۔ او نهٔ ئې د دغے خپراتي ډرامے نه پس بله ډرامه اوليکلے شوه - مظلوم د پټيدو سرے نهٔ وو هغه په خپلو تخليقاتو کښې ډېر ليدلے کېدے شو۔ د هغهٔ طرز بيان کښې انفراديت وو او هم دغه وجه وه چه کومه پياله د هغه په وينو ډکه شوے وه هغه دينا اوپيژندله - دينا په جار اووے چه دا د بل د جګرخون دے۔"

او د ښاغلی مختيار احمد زاهد د دے وينا تائيد او مرسته نن سبا د پښتو داړه باشعوره لوستونکی او محققين کوی۔ چه د ژبے بيان او اسلوب ترحده دا ليک هم د ښاغلی عبدالکريم مظلوم کيدے شی۔ دا ممکنه ده چه بنيادی قصّه د ښاغلی اسلم خټک وی او دا هم کيدے

---

ۓ قند مردان ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء ص ۲۲۹

شي چه د پلاټ په جوړښت او د ډراماتي تشکيل کښې بناغلي خټک د خپلې مطالعې په رڼا کښې د بناغلي مظلوم سره لاس کړے وي - خو ددے نه انکار نۀ شي کيدے چه د کردارونو په جوړښت او د غوړيدو او د مکالمو ډيے او لهجے نه علاوه د نظم په برخه هم د بناغلي مظلوم د اسلوب تاپه صفا ښکاري.[1]

د "وينو جام" په يک کښې چه دمره چا فکري او قلمي زيارونه شامل وي خو د پښتو د ډراماتي ادب په برخه تګ کښې ددے ډرامے د سرزوښې او اهميت يوځان له او جُدا مقام دے.

ددے ډرامے اولسي مقبوليت او شهرت زموږ يکونکي په سنجيده ګئي سره د ډرامے د يک په خوا را اوګمارل - او هم په دغه کال (۱۹۳۵ء) او دغه موضوع باندے د بناغلي عبدالله جان آسي "درس عبرت" د پښتون اولس دسترګو دوړاندے شو.

درس عبرت هم د وينو جام په بنيا دونو خټلے ديوال ښکاري.

" خو دا ديوال چرته نيغ چرته کوږ او چرته دومره اوږد پلن او تاوړاؤ

---

[1] د ليوه يعني غلطه او ناپسند دعوه دا ځکه چه بناغلي محمد اسلم خان خټک دا ډرامه په انګريزۍ کښې د بلډي کپ (The bloody cup) په نوم هغه وخت ليکلے وه چه دۀ په اکسفورډ (لندن) کښې سبق وئيلو - د خټک صاحب يو بل کتاب دګل مستي په نوم چاپ شوے دے. په کار دي چه په هغۀ دا دعوئ اوشي چه قاضي عبدالحليم اثر صاحب ليکلے وو خو نوم يے خټک راغے.

(پريشان خټک)

[2] پښتو ډرامه کښې د اصلاح رنګ محمد اعظم اعظم، پيښور يونيورسټي جنرل ۸۴ - ۱۹۸۳ء ص ۸۵ - ۸۶ -

شي چه پوره د محبوبے قلا ترے جوړه شوے ده - د يومرکزي پلاټ سره څوا په څوا دومره ضمني پلاټونه اوواقعات کړشي چه اصل واقعه اومرکزي پلاټ د ميځ نه بے دركه شوي دي خو سره ددے فني چامو هم د ډرامے بنيادي مقصد په ځائے ولاړ دے - او هغه داولسي بنيګړے اصلاح اوپه معاشي او معاشرتي خرابو باندے دتنقيد او دد غے خرابو د لرے کولو په زياں اوکوشش باندے تماميږي۔"

ددرس عبرت دويمه برخه په کال ۱۹۵۶ ء کښے ډيلا شوے ده: او دد غے برخے اکبر سکر اوکرۀ وړۀ داولنئ برخے نه بيخي بدل ښکاري - ددرس عبرت په دغه دويمه برخه کښے د جميل او نسيم په کردارونو د نوے زمانے دچل ول تيکئ او فريب رنګونه ختلي دي - جميل د يوسياسي رهما او نسيم د يو روحاني پير په جامه کښے ساده اولس تيکي اولوټي او دهغوئ د سادګئ او بے علمئ نه پوره پوره فائده اخلي -

درس عبرت (خصوصًا اولنئ برخه) په ډيرو خبرو کښے د ويښوجام سره شريک دے - او د ويښوجام اثرات پرے سواږۀ ښکاري - وے بياهم ددے ډرامے د اصلاحي او تعليمي ښيګړے او افاديت يو خپل ځائے دے اوپښتوډرامه ليکونکو چه داولسي معاشرے د اصلاح او د معاشرتي اقدارو د سپيځليتيا په لړ کښے کوم زنځير ته ګوتے اچولے وے درس عبرت ددغے زنځير يوه اهمه کړئ ده -

د پښتو داولنئ ډرامے "درے يتيمان" د خالق عبد الاکبرخان اکبر "جونګړه". د پښتو ډرامے په دغه اصلاحي او تعميري پسکر کښے يو نوے رنګ شامل وی - د اکبر د قامي اوانقلابي شاعرئ په شان دهغه په ډرامو کښے هم د انقلابي روح انګازے محسوسيږي - جونګړه په کال ۱۹۲۵ ء کښے

اوبیکلے شوه - هم په دغه کال ستیج شوه او بیا مخ کال له چاپ شوه - دد ے ډرامے مرکزی خیال داولس په معاشی زبون حالتٔ او طبقاتی کشمکش باندے بنا شوے دے - زودادی اوفتی خوبونه زیات په جونګړه کښے اولسی او سیاسی شعور څلانده بنکاری - او د غلام ژوند او غلامانه ذهنیت په نتیجو باندے یو ترېخ طنز دے -

د پښتو ژبے نوموړے نثر لیکونکے او افسانه نګار ماسټر عبدالکریم د جونګړے په حواله د ښاغلی اکبر د ډرامو په حقله لیکی چه -

" که شکسپئر او کالیداس دانګریزئ او سنسکرت د ډرامو
بابا آدم ګنړلی شی نو پښتو ژبه هم فخر کوی چه د عبدالاکبرخان
غونډے ډرامه نویس ورله په ګوتو ورغے -"

خو حقیقت دادے چه د ښاغلی اکبر په ډرامو کښے د ډراماتی حسن نه زیات داولسی شعور، اصلاحی سوچ، اوانقلابی فکر ډیوے روښانه ښکاری د پښتو ډرامے په دغه اصلاحی دوره کښے د ښاغلی ایس اے رحمٰن کاکاخیل ډراماتی زیادونه هم دچا نه وروستونهٔ دی او دا ذکر به هم بے ځایه نهٔ وی چه د کال ۱۹۳۵ ء نه پس چه د ریډیائی ډرامے شورو اوشوه نو دایس اے رحمٰن نوم هم دشمیر په مخو څو لیکونکو کښے شامل دے چا چه په باقاعدګئ سره د ریډیو دپاره ډرامے اولیکلے - د ریډیائی ډرامو تفصیلی ذکر په کتابی ډرامو پسے راروان دے -

د ښاغلی رحمٰن " نیمګړے خوب " په یوشکل د پښتو اولنئ رومانی

---

له جونګړه - عبدالاکبرخان اکبر، کره کتنه، ماسټر عبدالکریم ص ۳۰

(عشقیه) ډرامه ده . د ډرامې د مصنف د وینا مطابق نیمګړې خوب اول ځل په کال ۱۹۳۹ء کښې د "پلارۓ زۀ یم" په نوم په څو پرکونو کښې په پښتون رساله کښې چاپ شوې وه . او د رسالې د پښتو نه ډیره موده پس بیا په کتابی شکل کښې د نیمګړی خوب په نامه چاپ شوه - د دې ډرامې مرکزی پلاټ هم خو رومانی دې ولې بیا هم په دې کښې د پښتنی معاشرې د ځنو غلطو دودونو دستورونو ډیره ښکلې عکاسی شوې ده - او د ښاغلی عبدالخالق خلیق په الفاظو کښې -

" دا ښکلې خو یوه رومانی قصّه ده مګر د پښتون عاشق او پښتنې معشوقې کردارونۀ دومره پاک او اوچت ښو دلې دې چه سړه د جذباتو د ناپایاو سمندر د حیا او شرافت لمن ته دلاس نه ښوئیدلې نۀ ده ."

په دغه کتاب کښې د "نیمګړی خوب" نه علاوه دوه ورې ډیریاتی ډرامې "عملی" او "پښیمانه" هم د سوچه پښتنی چاپیرچل د ځینو پیژواکه او ناړامه کردارونو ډیره ساهو ترجمانی کوی .

په نیمګړی خوب پسې د ښاغلی رحمٰن بابله ډرامه "اور او اوبۀ" په کال ۱۹۶۰ء کښې چاپ شوه - په اور او اوبۀ کښې د نیمګړی خوب مصنف د نوی دور د ماحولی او فکری غوښتنو په سمی هم د موضوع په توګه او هم د تکنیک په لحاظ پرمخ تګ کړې دې -

---

[1] نیمګړې خوب ، ایس اے رحمٰن کاکاخیل ، ص ۳

[2] نیمګړې خوب ، ایس اے رحمٰن کاکاخیل تبصره د عبدالخالق خلیق ص ۷

موضوع که هر څو هم هغه د پښتنی چاپیرچل د زړو جګړو اوکشالو موضوع ښکاری خو (Treatment) او جوړښت ئے جدا دے۔ په ډرامائی عمل کښے ئے تیزی او د واقعاتو په رفتار کښے ئے چستی ښکاری او د اصلاح رنګ ئے د پلاټ او کردارونو په حواله د علم روایتی طرز نه ډیر نوے او جدا دے۔

په اور او اوبه ئے سمه د دے ډیکونکی دریمه ډرامه تربور[۱] (عرف ذیبا) په کال ۱۹۶۱ء کښے چاپ شوه - د دے ډرامے کرېګه وړه "اور او اوبه" سره ډیر مشابهت لری - او فاضل پروفیسر حافظ محمد ادریس د دے ډرامے په حقله خپله فاضلانه رائے داسے څرګنده کړے ده -

" په دے ډرامه کښے ے یوه خبره داهم اولیدو چه نه یکښے مجنون شته او نه لیلی - سره د دے چه هم پکښے مجنون شته او هم لیلی - خو د مصنف قلم دومره سابانه دے چه یوه خوړ داکتاب خپل وروړته او روکے شی - او یو زوے ئے د خپلے موړ په مخکښے لوستلے شی ۔"

د پښتو ډرامے د ارتقاء په دغه لړۍ کښے د ښا غلی عبدالکریم مظلوم د ډیر یائی ډرامو مجموعه " څهرے " هم یو ډیر اهم مقام لری داکتاب د ډیرے مودے راسے نایاب دے - خو د ښاغلی مظلوم زوے مختیار احمد زاهد د قند مردان پښتو په ډرامه نمبر (۱۹۶۰ء) کښے د خپل نو موړی پلار په فن باندے چه په خپله مقاله کښے کوم تفصیلی بحث کړے دے - د هغی له رویه څهرے د کال ۱۹۲۵ء خواؤ شا چاپ

---

[۱] تربور، ایس اے رحمان کلا خیل پیښندګلو د حافظ محمد ادریس ص خ

شوے وو ۔ او په دغه کتاب کښې شپږ ډرامے شاملې دے ۔ چه تفصیل ئې دا دے۔

"پښتون شاعر ۔ باسی پیے ناڅ ۔ وکیل ۔ بیمه ایجنټ، توږبلا

او یوه بله ډرامه چه نوم ئې مانه هیر شوے دے ۔"

ددے لسو دیرو یاڅ ډرامو او پیلاټونه او مرکزی کردارونه تردے

نژدے ټول په تفریحی او مزاحیه رنګ کښې دی ۔ ولے دقیمې او مقصد اړخ ئې

هم برقیره دے ۔ موضوعات ئې متنوع او دخپلې زمانې په مناسبت ډیر نوی او

دلچسپ دی او دپښتو ډرامے دیکونکو دپاره دلارښودنې کار کوی ۔

دعبدالکریم مظلوم یو فکاهی تمثیل "ادبی جلسه" دقند په ډرامه نمبر

کښې دپښتو ډرامے داولنو نقشونو په لړ کښې دتبرک په دوی چاپ شوے دے

او په دغه تمثیل کښې مظلوم درحمان بابا روح دموجوده زمانے دشاعرانو په

یوه جرګه کښې ښکلے دے او په تمثیلی انداز کښې ئې دنوے او زړے شاعرئ دموازنې

ډیر خوندور او مقصدی ذیار کړے دے ۔ دخپل وخت په مناسبت داهم زموږ

په ډرامائی ادب کښې یوه نوے تجربه وه ۔

دآزادئ نه پس زیاته توجه ددیږو او وروستو دټیلی وژن ډرامے ته

ورکړے شوے ده ۔ خو بیاهم چه په کتابی شکل کښې کومے ډرامے چاپ شوی دی۔

---

[1] پروفیسر افضل رضا په خپل کتاب ډرامه کښې په ص ۵۲ دڅهرے د

ډراموشمیر یوولس ښیلے دے ۔ چه هغه درست نهٔ دے ۔ او شاید چه

بناغلی رضا دخپلې څیړنې داتوپه هم دبناغلی رضا همدانی په هغه

مقاله باندے بنا کړے وی کومه چه دقند په ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء کښې

د "بادب با ملاحظه" دسرخط لاندے چاپ شوے ده ۔

په هغو د ذکر وړ ډرامې دادي ـ

د میاں سید رسول رسا ـ رنګارنګ ګلونه (ډیالوګي ډرامې)

اودډوش دوزخ

د رشید علي دهقان ـ دس و تعویـن (د جاسوسي قسم ډرامه نماناول)

د اشرف مفتون حیدر (ډیالوګي ډرامې)

د محمد افضل رضا دبے ارزۍ کچکول توره چه تیریږي

رستم او سهراب (ترجمه)

د مبارک سلطانه شمیم نوے سحر (څه برخه)

د زیتون بانو هنداره (څه برخه)

د ډاکټر بخت روان اصحاب کهف (ترجمه)

د محمد اعظم اعظم لټے (څه برخه مزاحیه ډرامګۍ)

د ډاکټر بهاالدین مجروح ځان ځاني بنامار (د فلسفیانه موضوع تمثیل)



ACKU

# ریډیائي ډرامه

دا د پښتو ادب خوش قسمتي وه چه په کال ۱۹۳۵ء کښې په پېښور کښې د
ریډیو څانګه پرانستې شوه - او د تقریرونو، مضامینو، ټوقو ټکالو، سندرو
نظمونو او معلوماتي پروګرامونو سره ډرامې هم د ریډیو د پیش کولو او
اورېدونکو یو مستقل ضرورت شو - دغه شان زمونږ د لیکونکو پام هم د
ډراماټي ادب د دې نوي قسم اړخ ته راوګرځېده څه ته چه ریډیائي ډرامه
ویلې شي -

له نیکه مرغه دا د پښتو ادب د نوې ځوانۍ هغه موسم وو چه پښتنو
لیکوالو د ډرامې صنف اړخ ته خصوصي توجه ورکړې وه او په عام اولس کښې
هم د ډرامې د کتو لوستو او اورېدو شوق پیدا شوې وو - او په دې کښې هیڅ شک
نشته چه د پښتو ډرامې د غوړان د بحالۍ ابادۍ له ریډیو د ټولو نه غټه
پښتي ورکړې ده - د ټیلي وژن د رواج او راتګ نه اګاهو خواؤ شا پنځه
دیرش کاله کښې یواځې د ریډیو چپو په باقاعده ډول د پښتو ډراماټي شعور ته
وده ورکړې ده - او دا روایت ئې په منظم شکل کښې مخ په وړاندې بوتلې
دې -

د ریډیو د ډرامې د لیکونکو مجبورۍ او پابندۍ د سټیج او کتابي

ACKU

ډرامو په نسبت نورے هم سوا وے او په يولسنۍ او محدود وخت کښے بے نالېدلی د آواز په وسيله د اورېدونکو سره رابطه او په مؤثره طريقه ځيل غرض او د زړهٔ آواز ترمخو رسول يقيناً چه يوه نوے فنی او تکنيکی تجربه وه.

خو د ريډيائی ډرامے په شوروکښے د اسے ذهين او باشعوره ليکونکی دے ميدان ته راوړاندے شول چاچه د ځپلو تخليقی صلاحيتونو په زور د ډرامے د دے نوی شکل په تکنيکی باريکو بانديے ډير زر برے بياموند - د ريډيائی ډرامے په اولنۍ دوره کښے چه کومو ليکونکو د پښتو ډرامے په سنړه سترګه کښے برخه واخسته په مخو کښے د عبدالکريم مظلوم نامه په سر کښے راځي - په دے لړ کښے بناغلے امير حمزه خان شنواری ليکي -

" ماڻه په ۱۹۳۵ ء کښے په وړومبی ځل يوه ډرامه ليدلے اوليکله - په دے کال د پېښور په سيکرټريټ کښے د آل انډيا ريډيو بناخ پرانستے شوے وو او اسلم خټک ئے انچارج افسر وو. په دے زمانه کښے عبدالکريم خان مظلوم د پښتو پروګرام بے کړهٔ وړهٔ کښے د يوے پلے کړے وے - مظلوم هغه سړے وو چه د ټولو نه اول ئے ريډيائی ډرامه ليکلے وه -"

د عبدالکريم مظلوم نه پس د ريډيائی ډرامے په دغه اوله دوره کښے د امير حمزه شنواری - داؤد شاه برق - او سمندر خان سمندر نامے ډيرے ځلانده دی - او په تيره تيره بناغلی حمزه او بناغلی سمندر د ريډيو ډرامے له هم د معيار او هم د مقدار په توګه زيانه وده ورکړه.

---

ل قند ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء - امير حمزه شنواری ص ۲۲۱، ۲۲۲.

اودا دواړه ترډېره وخته دچل فن استاذان ګڼل کېږي ـ

دپښتو د ریډیائي ډرامو عمومي دورانیه به د نیمې ګینټې څخه وو شاوخو دبناغلي حمزه په روایت . . . .

"البتّه کوم وخت چه د ویښو جام ډرامه نشر کېده نو دوه دوه نیمې ګینټې وختونه اخستي وو او دمخې دپاره خاص منظوري اخستې شوې وه ـ"

دښاغلي مظلوم د ریډیائي ډرامو مجموعه "ډګرونه" په نامه چاپ شوه ـ دا د ریډیائي ډرامو اولنۍ مجموعه وه چه ذکرئې وړاندې راغلې دی ـ

دریډیائي ډرامو په دویم دور کښې چه کومو پښتنو لیکوالو معیاري ډرامې اولیکلې په هغو کښې دښاغلیو میاں سیدرسول رسا، میجر ایس اے رحمٰن، رضامومندي خیال بخاري، اجمل خټک، رشید علي دهقان، اشرف مفتون، عبدالله جان مغموم، شوکت الله اکبر، بېګم اے داؤد، عبدالله جان اسیر، ایاز داؤدزی او مراد شنواري نامې دیادو وړې دي ـ

په دغه دوران کښې په مختلفو موضوعاتو لیکلې شوې څنې معیاري او یادګاري ډرامې دادي ـ

دامیرحمزه خان شنواري ـ ډرنده ګړے ـ ګمان دایمان زیان دے ـ د سرو کوټه ـ نوے دنیا ـ

دایس اے رحمٰن ـ نیمګړے خوب او عملي

---

لے قند ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء ـ امیرحمزه خان شنواري ص ۲۲۳

د سمندر خان سمندر - یتیم - سوړ پېزوان - تورخور او چماله

د میاں سید رسول رسا          د سقراط مرګ - سودائی - پېریان

د رضا مهمندی          مېره مور

د ایاز داؤد زی          بشکلا

د رشید علی دهقان          ماڼګے او د ځوانئ خوب

د خیال بخاری          د تورے وارث او تورد ے اوشهئ

او د بیګم اے داؤد          داو چے خان

دریمه یائی ډرامے په رو انه دوره کښے بے شمېره نوؤ (او نړو) لیکونکو په نوی طرز او جدید و خطونو د ډرامے په ډول سنګار کښے برخه اخستے ده.

د نوی دور په مشهورو لیکونکو کښے د څنو نامے دا دی -

قلندر مومند ، سیف الرحمن سّید ، طاهر بخاری ، عمر ناصر محمد افضل رضا ، سعدالله جان برقؔ ، محمد همایون هما ، مختیار احمد زاهد ساحر اپریدے ، نثار محمد خان ، نثار مظلوم ، ولی محمد خلیل ، ګل افضل خان یونس قیاسی ، محمد نواز طائر ، ارباب عبدالودود ، محب الله شوق ، مبارک سلطان شمیم زاهده حلیم قریشی ، سیده ناز جاوید ، ذکیه حلیم ، او محمد اعظم اعظم -

د ریډیو په وسیله باندے چه د نورو ژبو نه کومے سترے او مشهورے ډرامے پښتو ته را واوړیدے په هغو کښے زیاتے مشهورے دا دی -

اسیر هوس          اردو نه ترجمه          حمزه شنواری

خوبصورت بلا          اردو          حمزه شنواری

صلاح الدین ایوبی          اردو          حمزه شنواری

| | | |
|---|---|---|
| اوتهيلو | انګرېزي | رضا مهمندی |
| امير تيمور | انګرېزي | رضا مهمندی |
| خواب مستي | اردو | سمندرخان سمندر |
| انارکلی | اردو | عمر ناصر |
| د قرطبې قاضي | اردو | لطيف وهمي |
| د پسوږ مټي مسافر | اردو | لطيف وهمي |
| اوتهيلو | انګرېزي | سراج خټک |
| د وينس سوداګر | انګرېزي | سراج خټک |
| ميکبته | انګرېزي | سراج خټک |
| هملټ | انګرېزي | عقاب خټک |
| شکنتلا | اردو | عقاب خټک |

## د ټيليويژن ډرامه

دا يو منلې شوې حقيقت دے چه د باقاعده سټيج او تهيټر په غير موجودګئ کښې زمونږ د ډرامے په وړاندې تګ کښې د ريډيو برخه د ډېر چا نه سيوا او جوته ده - خو د ريډيائي ډرامے د ټولو نه لوئے کمے دا دے چه په دې کښې ډېر څه د آواز د ناليدلے دنيا سره تعلق لري - او د ډراماتي عمل وارو دار مدار د ليدو په ځائے په اورېدو باندې وي - او د کردارونو د کړو وړو، حرکاتو سکناتو او عملي نندارے په ځلو سترګو د کتو په ځائے د ليکونکي د تخيل ليک او بيان د قوتونو سره سره د ډرامے اورېدونکي هم ډېر څه خپل قوت متخيله ته په سپارلو مجبور وي - او هغه سود پرے نهٔ کېږي څنګه

چه تماشبین په سټیج باندې یوه ډرامه وینې اوګورې اوخوند ترې پورته کوي .

داورېډیو سره دلیدو دغه کمې تر ډېره حده دټیلي وژن پرده پوره کړلو په کال ۱۹۶۵ء کښې زمونږ په وطن کښې دټیلي وژن پروګرامونه شروع شو - او په کال ۱۹۶۹ء کښې د ټي - وي په پرده باندې په اول ځل د پښتو ډرامه هم اوځلیده د ټیلي وژن نه اګاهو په سلوري پرده (سینما) باندې ډېروړاندې په کال ۱۹۳۵ء کښې د ښاغلي امیرحمزه خان شنواري لیکلې شوې فلمي ډرامه " لیلیٰ مجنون " د ښاغلي رفیق غزنوي په کاوشونو پښتون اولس ته وړاندې شوې وه خو دغه قصّه هم په دغه ځائې پاتې شوې وه .

خو دټیلي وژن ډرامو درواج سره پښتو ډرامې یو نوې ژوند بیا مونځ .

" په کال ۱۹۶۹ء کښې د راولپنډۍ اسلام آباد ټي - وي سنټر نه د پښتو ډرامې ابتدا اوشوه - د پښتو دااولنۍ ټي ، وي ډرامه "خپل پردي" وه . دا د اردو ډرامې "کانچ کاګلاس" ترجمه وه چه هدایت الله خان ایدوکیټ پښتو ته رااړولې وه."[2]

په دې لړ کښې د کال ۱۹۸۳ء تر آخره پورې د راولپنډۍ اسلام آباد ټي وي سنټر نه بې شمېره پښتو ډرامې پیش کړې شوې - چه

---

[1] قند ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء

[2] ډرامه افضل رضا ص ۱۵۷

ACKU

چه موږ ورته ډرامګۍ ویلے شو ځکه چه دا دے ډرامو دورانیه پنځویشت منټه وه او په دومره کم وخت کښے دیو مکمل او معیاری ډرامے تصور کول ډیر ګران دی۔

د ټي۔وي د ابتدائي دورے په ډرامو باندے د ریډیو د ډرامے رنګ ډیر سور وو۔ خو د وخت د تیریدو سره زموږ لیکونکو په تکنیکی توګه د ټي۔وي د مخصوصو ضروریاتو او فنی غوښتنو په رڼا کښے ډرامے لیکل شروع کړل۔ د راولپنډۍ اسلام آباد د سنټر نه پیش کیدونکے د پښتو آخرئ ډرامه د محمد اعظم اعظم "مسته نیستی" وه او په کال ۱۹۸۶ء کښے چه د پیښور سنټر ځانله جدا پروګرامونه شروع کړل نو د هغے نه پس د سلسله وارو اوږدو ډرامو د رواج سره د پښتو ډرامه لیکونکو ته د خپلو صلاحیتونو د ښودنے پوره موقع په لاس ورغله۔ خصوصًا په ډرامه کښے په بشپړه پیمانه باندے د کردار نګارۍ کوم کمے چه تر دغه وخته زموږ د ټي وي (او ریډیو) په ډرامو کښے محسوسیده هغه په دغه سلسله وارو ډرامو کښے پوره شو۔

په دے کښے هیڅ شک نشته چه ریډیو په پښتو کښے د ډرامے د روایت په ژوندی ساتلو کښے یو شاندار کردار تر سره کړے دے۔ خو دا حقیقت هم په خپل ځائے ولاړ دے چه د ټي وي پردے د ریډیائي ډرامے آواز غلے کړو او په تیرو پنځلسو کالو کښے چه ټیلیویژن ډرامه څومره په وړاندے تلے ده د ریډیو ډرامه هم په خپل ځائے ولاړه ښکاری۔

د ټیلی ویژن کتونکی او اوریدونکی هم د مختصرے دورانئ (چه د پښتو د پاره د هغے وخت پنځویشت منټه دے) د ډرامګو په نسبت په سلسله وارو ډرامو کښے زیاته دلچسپی اخلی۔ او د ښاغلی افضل رضا دا وینا ډیره درسته ده چه۔

ACKU

"په عامو ډرامو او سلسله واره ډرامه کښې بنیادی فرق[1] د قصې د فراختیا او وسعت وی . د کښته نیمې عامه ډرامه په یو واری دابتدا عروج او خاتمې په ترتیب ختمه شی . و لې د سلسله وارې ډرامې هم تهوک ځان ته د واقعاتو تسلسل او تعطل لری . چه د ډرامې د مجموعی قصې سره پوخ تړون لری او کتونکی په دے مجبوره وی چه د تعطل او استواء او خوند له مخه د بل تهوک انتظار اوکړی ."

خو د دے نه علاوه هم دسلسله وارو او یو دو ډرامو د ټولو نه زیات اهمیت په دے نکته کښې بړینبی چه د ډرامے کردارونه پکښې په سالم او بشپړ شکل کښې متعارف شی او د کوے ډرامے کردارونه چه په حقیقی ډول کښې د چل چا پېرچل ساهو عکاسی کوی (چه په ټغې کښې دادا کار برخه هم لوئے (ثر لری) نو ځکه کردارونه کلی په کلی ، ښار په ښار او کوڅه په کوڅه په اولس کښې داسے مقبول شی چه خلق ئے چل دکوی کلی بنسـیان گنړی او ځائے په ځائے دعوئ خبرے کیږی .

دټیلی وژن درواج سره ذموږ ډیرو سترو او زړو لیکونکو قلمونه د لاسونه او غورزول او نبسټا نوی او زلمی ډرامه لیکونکی میدان ته راغلل او د ډرامے د دے نوی صنف په لړ کښې ئے کامیاب او زړهٔ پورے زیارونه اوکاږل .

په پښتو کښې د ټی . وی د پاره اولنئ سلسله واره ډرامه د بنــاغلی

---

[1] ډرامه - افضل رضا ص ۱۶۳

سید رسول رسا په ناول " خودکشي " باندې بنا شوې ډرامه " ورکې لارې" وه - دا په کال ۱۹۷۵ء کښې په لسو قسطونو کښې پیش کړې شوه او ډرامائي تشکیل ئې محمد اعظم اعظم کړې وو - بناءًعلیٰ افضل رضا په خپل کتاب ډرامه کښې په دې لړ کښې لیکي چه -

" هسې خو د پښتو د سلسله وارو ټي - وي ډرامو ابتدا د پېښور ټي وي سټېشن نه په کال ۱۹۷۵ء کښې د"ورکې لارې "نه شوې وه - ددې کامیابه تجربې ئې په کال ۱۹۷۷ء کښې د محمد اعظم اعظم "د روښانه تېرې" نومې ډرامې نه اوشوه - دا یوه کامیابه سلسله وه چه پښتو ورته ډېر په درنه سترګه اوکتل - په دې کښې لیکوال د پښتنې معاشرې هغه خرابئ په ګوته کړې کومو نه چه پام ګرځول ډېر ضروري وو - او خلق ئې د هغو تېرو نه د راوېستلو کوشش اوکړو کومې چه په ظاهره روښانه ښکاري وې په اصل کښې ګورې تېرې وي -"

د روښانه تېرې نه پس چه په مختلفو موضوعاتو زموږ ډرامه لیکونکو کومې سلسله وارې ډرامې اولیکلې شوې - هغه دادي -

## محمّد افضل رضاؔ

| | | |
|---|---|---|
| نوې منزل | دولس قسطه | ۱۹۷۸ء |
| احساس | دیارلس قسطه | ۱۹۷۹ء |
| تتې ډیوې | لس قسطه | ۱۹۸۱ء |

---

ډرامه - افضل رضا ص ۱۷۶

مشال — دیارلس توکه — ۱۹۸۲ع

## گل افضل خان

لارے لاروے — دولس توکه — ۱۹۷۸ع

نقش شهزاده — نهه توکه — ۱۹۷۸ع

گرداب — دیارلس توکه — ۱۹۸۳ع

## سعد الله جان برق

ورے — دیارلس توکه — ۱۹۷۷ع

باور — دیارلس توکه — ۱۹۷۸ع

## خالق داد امید

بندونه — دولس توکه — ۱۹۸۴ع

## نثار محمد خان

زول او دیوه — دیارلس توکه — ۱۹۸۰ع

## نور الله نوید

برېښنا — څوارلس توکه — ۱۹۸۵ع

## محمد همایون هما

تنده — دیارلس توکه — ۱۹۸۵ع / ۱۹۸۶ع

## محمد اعظم اعظم

ورکے لارے — لس توکه — ۱۹۷۵ع

دوبنا نه تیرے — شپاړس توکه — ۱۹۷۷ع

سوری او ستوری — اتلس توکه — ۱۹۷۹ع

ناموس — شل توکه — ۱۹۸۰ع

زولنے — شپږ ویشت توکه — ۱۹۸۲ع / ۱۹۸۳

# پښتو ډرامه او کردارنګاري

## چاپ شوي (کتابي) ډرامې
## شهيده سکينه

په کتابي شکل کښې د پښتو اولنۍ ډرامه "شهيده سکينه" کښې مرکزي کردار يوې داسې پښتنې جينۍ سکينې دے چه په روايتي پښتني چاپېرچل کښې ئې سترګې غړولې وي هم په هغې کښې لويه شي او په هغو روايانو پورې ئې ځان تړلے وي او هغه روايات ئې او خوري.

خو په دے مرکزي کردار باندے د بحث نه اګاهو د سکينې د پلار حاجي صيب او د هغې د ورور ظريف خان تذکره ضروري ده - د حاجي صيب کردار په حقيقت کښې زموږ د ډرامے په تاريخ کښې د خپل طرز اولنے کردار دے - هغه د يوې ختيځے او پښتنې کورنۍ يو سپين روبے، خود داره او محنتي غړے وي - چه په خپلو متو او مشقت باندے د ګېټې قائله او په خپلو پښو ولاړ انسان وي - د ډرامے په شروع کښې هغه خپله پېشنه کلي په دا رنګ کوي -

"بنځه[1] رم ياد دي چه د ظريف د مور واده رم جوړ کړو نو ما سره

---

[1] شهيده سکينه - عبدالخالق (دويم چاپ) ص ۲

توے څلورکم اتیا دوپئ نغدے او زیات نه زیات د دیرشو روپو مال ے په همئ کښے وو ...... ملاے او ترله په لوئے سړک کښیناستم .... همت ے کاوۀ - فضول خرځ نۀ وَم - تر دے ورځے او رسیدم چه لاړو غریب شریف هتي وال - او لاتر د دولس سوه جریبه ځمکے زمکے او ځان له دکلی مالک -"

د حاجی صیب د دے بیان نه دا څرګندیږی چه هغه یو ایغ نیغ صاف ګویه بنده وو او د هیڅ قسمه د کمترئ یا د برترئ په احساس کښے راګیر نۀ وو - هغه د مشرقی معاشرے په اقدارو مئین او د زړو خیالاتو او روایاتو پرستار وو - د جینکو د تعلیم په حقله د هغه نظریه دا وه -

" دا چه اوس خو اکثرے د کور کار خدمت کوی - د بچو پرورش کوی - ډوډئ پخوی - جامے وینځی - ځائے جارو کوی - بیا خو به توے لیونیانے شی - په دے کارونو به ورته ځان بد لیدے شی - خو دیا به ے خاوند د کور کار خدمت کوی او یا به ے د کورونو نظام وران شی"[1]

او حاجی صیب سره د چنل شرافت قابلیت او نیک زړۀ توب د چنل ستغ مزاج او روایت پرستئ له کبله هغه کردار تر سره کړی چه نتیجه ے د هغه د نیکے او اشرافے لور سکینے بتامئ شی - د سکینے د ساده مزاجئ نه زیات د هغے په بربادئ کښے د هغهٔ بے تعلیمه ماحول هم لوئے لاس وی په کوم کښے چه هغه لویه شوے وی او د دنیا د سود زیان نه بے خبره د چنل چالاک او بے سره وروړ طیفخان په خبرو تیر وځی -

---

[1] شهیده سکینه ، عبدالخالق خلیق (دویم چاپ) ص ۱۶

ACKU

حاجي صيب چه د خپل زوے د ناکړدو نه ذره ساتے شي نو صغه د ے ته هم جوړ شي چه تول جائيداد په خپله لور يے او يکي خو سکينه په چپله سادګئ د پلار د فيصلے خلاف هر څه خپل يد فطرته ورور ظريف خان ته او سپاري۔

د حاجي صيب کردار د مولوي نذير احمد د ناول "توبة النصوح" ردکوم ترجمه چه دد غه وخت نه وړاندے په پښتو کښے شوے وه) د "نصوح" د کردار سره زيات مشابهت خوري ۔ خو د "ظريف" کردار د "کليم" په مقابله کښے زيات بد دے ۔ حاجي صيب په چپله هم د نصوح هومره قدامت پسنده خو نه وي و لے بيا هم د ظريف په حقله د صغه رويه څه ډيره د تدبر او فراست رويه نه ښکاري په دے حقله چه صغه ريکي يو ډوډۍ ښځه کاله د کوره غائب وي نو دے ئے هډو تپوس نه کوي او د يو هيونو په ځائے ورسره لګه د نصوح ترس ساتي او هم د صغه په رنګ ئے د جائيداد نه د عاق کولو تابيا او کړي ۔ او د سکينے په وکالت چه کله ظريف له بخښنه ورکړي نو سره د ډيرے يوهے بيا هم په خپل مال کښے په ډوش د نود د برخے د بيلولو څه قانوني بندوبست نه کړي ۔

په شهيده سکينه کښے ظريف يو داسے بد طينته، خود غرضه او جاهل انسان ښئلے شوے دے چه د صغه په کردار کښے سيوا د بدو نه بل هيڅ ښے نه ښکاري ۔ صغه د خپلو ناپاکو خواهشونو د پوره کولو په غرض اول د کوره غلا کوي او بيا بهر هم غلا غلطو ته لاس اچوي ۔ ترجيله لاړ شي او چه راخلاص شي نو په چل او تيګئ د خپلے وادۀ شوي خور کالي خرڅ کړي او په صغے باندے کور وران کړي ۔ او څه وخت چه هم د سکينے په کوشش او مرسته د پلار د تول جائيداد او مال حال مالک شي نو بيا د صغے خور د سر د سيوري د پاره د صغه په کور کښے ځائے نه وي د چا نه چه هم دد غے ورور په سر د خاوند

کورپاتې شي -

او په عیاشو او د مبارزو کښې ډوب دا بې ضمیره انسان څنګه وفادارې خور

له داسې ریښتیا جواب ورکوي -

" په[1] ما دخځه حق دې - زما د کوره واده شوې وې لور خور

خرڅ شوې ځاروې وي ."

او د پلار د مرګ نه پس څنګه لاچارې بوډۍ مور له دا قسم پیغور ورکوي -

" ډېرې[2] دجمع کړې دي - اوس هم زمانه درسره ډېرې

روپۍ دي - هر څه د په لاس وو ."

او د ظریف د دغې ظالمانه روش له کبله په دومره مال حال کښې دغه

ضعیفه مور او بې اسره خور د نګېدلې کړیدلې د مرګ غېږ ته لاړې شي.

د ظریف کردار د هغې خاوره و نه جوړ یو مثالی کردار دې - په چا کښې چه

هره د هیڅ قسمه انسانی همدردۍ ، شرافت ، مینې او پښتو درک نه لګي.

د سکینې په کردار کښې بناغلي خلیق د یوې داسې مجبورې او بې ځ بې

لښتنې ښځې د بربادۍ داستان دنیا ته وړاندې کړې دې څوک چه زموږ په

روایتی معاشره کښې هره ورځ د زیاتې خورو دلاسه هلاکیږي او شهیدیږي

هغه یو بې وسه لور وي چه د حاجی صیب غوندې شریف باشعوره او ذمه وار

پلار هم بس ترد غه د هغې د مستۍ منلو ته تیار وي چه لو یه یې کړې واده

یې کړي او بیا ترې بې غمه شي .

---

[1] و [2] شهیده سکینه ص ۹۳

ACKU

هغه یوه بې ځایه او بې توانه ښځه وی چه خاوند ترې لاس واخلی
نو ځې شړی او بله ښځه اوکړی .

هغه یوه ډېره ساده او ښه له ښځه وی چه د خپل ورور
په مینه کښې تر دې حده پورې ځان لاهو کړی چه د خاوند نه په پټه خپل ټول
کالی د لطیف غوندې فریبی له په لاس کښې ورکړی . خپل دا ځ پرې اوشندی او
خپل کور ورسره وران کړی .

خوکله چه د دې دومره قربانئ په بدل کښې د هغې ژوند په دارشی او د
تمامئ انجام ته مخامخ شی نو دومره توان هم پکښې نهٔ وی چه د ظلم خلاف احتجاج
اوکړی او چه د پلار په کور کښې ځې هم د سر پټولو ځائې پاتې نهٔ شی . نو مرګ
د ځان پرده اوګرځی . د دې ډرامې د پلوټ نه لویه خوبی په سوچه او روانه ژبه
کښې د مکالمو ده . دا سې مکالمې چه د کردارونو د وجود سره سمون او برابرې خوری
خو په ځنې ځایونو کښې مکالمې دومره اوږدې شی چه هغه د ډرامې د فن له رویه
مناسبې نهٔ معلومیږی او د عام حقیقت نه هم لرې ښکاری . خو د دې ړو فنی خامو باوجود
هم "شهین سکینه" چه په کوم مقصد لیکلې شوې ده هغه مقصد تر سره کوی او د
باشعوره لوستونکو پیام دې اړخ ته راګرځولو کښې کامیابه ښکاری چه د لور خود
حق په قانونی شکل کښې منل زمونږ د معاشرې یو بنیادی ضرورت دې .

د اصلاحی غرض نه علاوه دې ډرامې پښتو ادب کښې د دا سې کردارونو
تعارف هم اوکړلو چه ورستو ځې زمونږ په ډرامه کښې یو مستقل روایتی حیثیت
خپل کړلو .

# نوې روښنی

د قاضي رحیم الله د دې ډرامې مرکزي کردار "آزاد" چې یوې مړې
او شته منې کورنۍ زیږې وي چه د چل پلار حاجي محمد خان د ډېر ارمان او کوشش
باوجود هم بې تعلیمه پاتې شي او د "شهیده سکینه" د حاجي صیب په شان د نوې
روښنی حاجي صیب هم په دې باره کښې یو بد نیصیبه پلار وي او د ظریف په شان
آزاد هم د پلار دولت په عیاشۍ او د مبازو بانډې الوزوي. هغه هم په ظاهرداري
چل ولی بناشت او زیباښت او لباسي یسنه بانډې مئین وي او څنګه چه ظریف
د نرګس غونډې ماډرن جینۍ په ولقه کښې او نښلی داسې آزاد هم د یوې بازاري
ښځې فیروزه په دام کښې کښیوزي.

د ظریف پلار د هغهٔ په مړې او خور او عورزینې او د آزاد د لاسه د
مړې سره د هغهٔ پاک لمنه بي بي ... اد هم دربه دره شي.

خو د نوې روښنی آزاد د ظریف خان په مقابله کښې یو زیات واضح او د
نوي استان وران کارې دې. د دې کردار په جوړښت (اوورانولو) کښې د
رحمت غونډې خو شکو او خوشامدیانو، خود غرضه دوستانو لاس هم شامل وي.
د دغې دوستانو په لمسونو آزاد د خپلې آزادۍ دا مطلب واخلی چه
هغه نهٔ د نورو په عزت سرپه کوی او نهٔ په چل. او خپلې بنائسته او اشرافه
ښځې له محض په دې وجه طلاق ورکوی چه هغه د آزاد د خواهش د پاره ځان
ماډرن، کول او بې پردې کول نهٔ غواړي. د غه پښتنه میرمن دې ته تیاره نهٔ
وي چه د دغې دیسي انګریز د پاره د ځان نه میمه جوړه کړي. او شمشاد چه

د خپل عصمت او روایاتو ټین کلکه کړی ئو د هغې په صله کښې ئې آزاد او شرق او فیروزه نومے یوه بے حیا چالاکه او فریبی ښځه د کور میرمن کړی - فیروزه د آزاد کور جاړوکړی او د هغهٔ نه اوتښتی - شمشاد په یوه حادثه کښې د یو نیک زړی پادری او د هغهٔ د میم صیبے لاسو له ورشی - هغوئی ئې په لوړ واخلی د ډاکټرئ کورس پورے اوکړی او آزاد په داسے زخم کړم شی چه د شمشاد په لاسو کښې مړشی او خپل انجام ته اورسی -

آزاد د ورکوالی نه څه فطرتاً او څه د ښاربستروب له کبله د سبق نه زیات په الټو غلطو کښې خوښ پاتے شی - او د هغهٔ د نیک خصلته پلار په وینا " څنګه ئې چه ځی تور دے داسے ئې زړهٔ هم تور دے :" د پلار د مرګ نه پس خو آزاد یعنې آزاد شی - د بے علمئ او جهالت نه زیات د دولت زیاتوالے هم د هغهٔ د کردار په ورانولو کښې لویه برخه اخلی -

هم د دغې دولت کشش د رحمت غونډے بدمعاشان د هغهٔ نه راتاؤ کړی او د شراب او شباب په رنګینو کښې ئې داسے ډوب کړی چه د هغهٔ په سترګو باندے پردے راشی او د خپل پردی او ښو او بدو د تمیز نه اوځی -

رحمت هغه کردار دے کوم چه زمونږ د معاشرے د پاره د یو مستقل زحمت په شکل کښې په هره زمانه کښې موجود وی - د رحمت غونډے کسان د آزاد غونډے نوسیتو دولت منډو ذلمو په ذهنونو د ګونړی په شان ټګیا وی او د هغوئی د هوش او سوچ ټول ورونه بند کړی -

د آزاد د بے لارے کولو د پاره هغه عجیبه قسم دلیلونه او منطق وړاندے کوی -

"مخ پېتې ښځه هم لا خدائے ښځه پیدا کړې ده. مسټر آزاد دے خلقو عیش اوکړو. موږ به هم وایو چه زموږ ډوډون دے دا ښځه څنګه خپل خاوند سره روانه ده. دا لښې لښې جله ورسره څنګه خوند کوی. ته به وئے چه دچین ماچین ښاپیرۍ ده. که نور خلق ئے وینی اووائی چه ګوره څومره ښائسته ښځه ده. نو په دے څهٔ اوشو دا خو دے صفت دے."

او آزاد باندے دا قسم خبرے خپل اثر کوی او رحمت ته وائی چه زما د زړهٔ خبره دِ اوکړه او رحمت دومره چالاک وی چه د آزاد په ذهن کښے راپورته شوی بخری باندے په ډیر چل او استاذئ تیل اچوی-

"دا سے خبرے نو د لویو خلقونه شروع کیږی. ته ئے شروع کړه نو نور خلق به ستا نقل ضرور کوی. ارمان دے چه زما ښځه ښائسته کنړه تماشا به ئے ورته ښیلے وه."

او آزاد ته د لوئی او برترئ په دغه تصوّر کښے دومره کشش ښکاره شی چه هغه د خپل چاپیرچل او زمانو د روایاتو خلاف بغاوت اوکړی او د رحمت په لمسه خپله سترمنه چادره او ښائسته ښځه د دنیا ننداره ته د ښهر راویستلو نیت اوکړی او چه هغه د آزاد د دے جنونی خیال او ارادے د مرستے کولو نه انکاری شی نو د هغې نتیجه طلاق شی-

---

[۱] نوے روښنی، قاضی رحیم الله، ص ۶۶

[۲] ایضاً ص ۶۹

د آزاد کردار د دے ډراے یو ناخوښے کردار دے خو د پښتو ډراے د ارتقاء په لړ کښے داکردار دخپل ډونډ ، کشش او دلچسپئ ثبوت ځائے په ځائے ورکوی.
او قاضی رحیم الله د آزاد کردار په جوړښت کښے خصوصاً دیوے مخصوص لهجے او د هغهٔ په مکالمو کښے دمتل او محاورے د برجسته استعمال خصوصی التزام ساتلے دے . لکه په یوه موقع چه شمشاد ( د آزاد ښځه ) هغهٔ ته د نصیحت په دود وائی .

" د مالــدار رسړی هر څوک ملګرے وی - دخدائے دپاره
دخوار او خلقو نه وا اوړه ."[1]

نو د آزاد جواب دا دے وی .

" ته ځ خوب هم وینے او معنے ئے هم ورکوے . زهٔ چاسره
ګرځیدلے یم که هسے راباندے الزام لګوے ."[2]

یا چه رحمت په ورومبی ځل یوه بناکسته ږمه د هغهٔ په وړاندے او دروی نو هغه خپل رد عمل دا سے ښائی .

" زهٔ چه بناکسته ښځه اووینم نو د خدائے قدرت راته
رایاد شی - موږ هم لاکوره ونو کښے ښځے کښینولی دی . نهٔ ئے فیشن
نهٔ ئے نزاکت ، نهٔ ئے ادا - نو داهسے ویښتهٔ خو سکا نو هم ړیښی دی."

د آزاد نه علاوه په "نوی روشنی" کښے دیوے غرق موږ په شکل کښے د زینب او دیوے حیادارے او حوصله منده پښتنے میرمن په څیر د "شمشاد"

---

[1] نوے روشنی ، قاضی رحیم الله ص ۵۸
[2] ایضاً ص ۵۷

کردارونه په ډېر حقیقي ډول کښې پېش شوي دي . خصوصاً د آزاد دکردار په تشکیل کښې د ډرامې غرض او مقصد په ډېر ښکلي انداز کښې ترسره کېږي کوم ته چه ښاغلي مولانا عبدالقادر په خپل تعارف کښې اشاره کړې ده .

" دنفس[1] مضمون په مقابله به زه صرف دومره اووایم چه د پوښتنو قام دجرګ لاسه چه قامونو کښې څومره انحطاط راځي . نورو ښنې[1] ددغې انحطاط يوه واضحه نقشه ده .

---

# دوېنوجام

دښاغلي محمد اسلم خان خټک ددې ډرامې د نوي و توکو خوبو نه زیاته اوجوته خوبي دموضوع او ښائسته کردار نګاري ده . دا کردارونه اګر که د نامو ناموېږي د مثالیت په رنګونو کښې ډوب ښکاري ولې بیاهم دومره حقیقت سره نږدې دي چه د ډرامې د کردارونو نه زیات د ښنتنو دکورکلي ليدلي کتلي بنديان ښکاري او سره ددې چه په څنو ځایونو کښې ددې کردارونو په رغونه کښې د مبالغې رنګ صفا بريښي ولې بیاهم ددغې کردارونو اهمیت، ښائست شان او رونق په خپل ځائے موجود دے .

د ډرامې دواړو سترو او اهمو کردارونو د پاره مصنف دعقو د سیرتونو

---

[1] نوے روشني ، قاضي رحیم الله ، تعارف ص ط

او خصلتونو په مناسبت هغه شان نامے هم موزوره کړی دی او دغه یو کردار د نامے نه د هغه داصلیت او فطرت اندازه هم لګی - لکه فساد میرخان د فسادونو سرد ے - افت خان او شر محمد اجرتی قاتلان او مفروران دی - لرے د دروغو په ګواهیٔ څل بیګناه تربور د پهانسئ تختے ته خیژوی - خوشامدے او ویرانے د فساد میر خوشاتهاری او غومیان برخی دی - نیک عالم - سربلند او افضل خان د ښلو نامو په شان د ښکلو پیژګلو او ستره خصلتونو خاوندان هم وی -

حق نواز یو حق پرسته او با اصوله نا بیداری وی - خودکمال خبره داده چه هم دا یو ځینړی کردارونه په ښلو مثالی ستو کښے هغه ښکلا کشش او جاذبیت لری څهٔ ته چه بناغلی ای - ایم فارسټر د چارلس ډکنس غونډے ناتوناول نویس د مثالی کردارونو په بحث کښے اشاره کړے ده -

په تیره تیره ددے ډرامے د مرکزی غړی فساد میرخان کردار چه په کومو ډولو رنګونو کښے پیش شوے دے - د هغه نه یو لافانی کردار جوړ شوے دے. هغه کردار چه پښتنی معاشره بے پکښنے تر پیړو پیړو د ښلو ناموارو ظلم زیاتی جهالت، غلطو دودونو دستورونو او د هغے د خرابو نتیجو عکسونه او ځسونړی با بونه ګوری -

"ډوینو جام" د فساد میر د کونړ ذهنیت او ناموارو شخصیت دکړ یچونو او تیندکونو داستان دے - د ډرامے په شوروکښے مونږ داکردار په څل ارتقاً یافته شکل کښے موجود وینو .....

د هغه پلار امان خان مرګی حاله په کور کښے زیږی کوی او فسادمیں

---

ASPECTS OF THE NOVEL *E. M. Forester*

په جوړه کښې د ډېرو تماشې ته ناست وي - او څه وخت چه دغه ترږور افضل خان د امان خان په وړاندې د فساد میں د دې د روټې شکایت اوکړي او په دغه بدر د اوواڼي نو دا د فساد میں د "انا" په ځیږه چښېړه شي او د مغ په نتیجه کښې افضل د فساد میں دلاسه مړ شي - او هم دغه یوه واقعه د دې ډرامې د پاره د یوې خونړۍ سلسلې بنیاد شي -

په دغه یو قتل باندې د دروغو د ګواهۍ د پړدې اچولو زیار د وینو جام ده یرو بیګناه بندیانو له وینو ډک کړي او د قتلونو یوه نه ختمیدونکې لړۍ شو ره شي - څه ته چه بناغلي مولانا عبدالقادر د کتاب په سریزه کښې په دې الفاظو کښې ګوته نیولې ده چه .

"پښتون د قتل کولو پوره استاد دې - مصنف چه د پښتنو د نفسیاتو نه پوره واقفیت لري ...... دغه په دې ډرامه کښې هغه خاص حالات ښکلي دي په کومو چه قتلونه کیږي "

د دې ډرامې غونډ واقعات او کردارونه د فساد میں د کردار نه چاپیره[۶۶] چورلي او فساد میں به کیدې شي چه په خپل فطري شکل کښې دومره ظالم او جابر نه وي څومره چه د یراني او خوشامدي غونډې تیار خورو ، چغل خورو ، بدمرغو او ناړامو ملګرو دلاسه شو - د هغوئ شیطاني منصوبې او سازشونه د فساد میں د وجود انسان مړکړي او هغه د یو مکمل شیطان په جثه کښې د خپل چاپیرچل د تباهو او بربادو ذمه وار شي - د نشو تماشو او عیاشو په لوري سفر کښې د یراني او خوشامدي د فساد میں خان نه څو کامه وړاندې روان وي او هغه په ځان پسې

---

[۶۶] د وینو جام ، سریزه د مولانا عبدالقادر ص ۷-۸

داکاږي - دجوارۍ پړونو ته فساد مېن هم ددوۍ په "ترۍ" اوملسه ورځې او د ملتان غونډے جعل سازو پړيانو دلاسه هم ددے ځېلوسرو په صلا تېلے شي. اوچه دبے خوته عياشو اوبربادو په تېس کېنے دجاټپداد نه لاس اوونيځي نو بيا شوکو او ړاکو ته لاس داچوي چه دهغې په ټر کېنے بے شمېره مرګ ژوبلے اوکړي او آخر انجام ئے داشي چه په ځېله هم دپانسۍ تختې ته اوخېژي - هله ئے شرګے اونمړېږي اود ځېلو ظلمونو اوجرمونو اقرار اوکړي - دغه وخت فساد مېن ديوداسے شکست خورده سپاهي په شان ځوړند سر ولاړ وي - چاچه د ژوند بے مقصده جنګ بائيلے وي اوځېل ځان ورته يو داسے شيطان ښکاري چه دلاسو پښو نه تړلے شوے وي -

نو دانسان نه د شيطان جوړېدو پورے په دے اوږد سفر کېنے چه کومو کسانو ځېل ځېل کردار ادا کړےوي هغه کردارونه دوينو جام کېنے يوپه يو په ګوته شوي دي - دديراني اوخوشامدي غونډے خودغرضه چاکران "دشرمۍ" او "ترمۍ" غونډے مجرمان دلرې دولتي اوختېږي غونډے ددروغو ګواهان د ملتان غونډے ټګان اود قارون غونډے سودخوارهٔ سپمان - داوارهٔ شيطاني عناصر چه راجمع شي نو د فساد مېن نه هغه ځناور جوړ کړي چه د بے شمېر بېګناه مظلومانو وينے توئے کړي - دهغوۍ بڅے کونډے اوبچي ئے يتيمان کړي - او د معاشرے دبے حسۍ اوبے شعورۍ په وړاندے قانون هم بے لاسو پښو ولاړوي او فساد مېن او دهغهٔ برېځې چه ځېل انجام ته رسي نو ډېرے خونړئے رنګے کړے وي -

په دے ډرامه کېنے په اول ځل ځنے داسے کردارونه هم وړاندے شوي دي چه تر دغه وختهٔ ئے دمونږ په ډرامه کېنے پېش نه کړے شوے. ځکه

د سودخور سیټ قارون کردار - یا د غیبي شاه فقیر کردار - د وینی جام کښې غیبي شاه فقیر ځائې په ځائې د یونانی ډرامے د مجلس د روایت په دود سینه کوی داخلاقو درس ورکوی او ددے ډرامے بدکردارو او بد عملو غړو ته دعغوی د ناکړدو په وجه د راتلونکی سزا او بربادئ خبر دارے ورکوی - لکه فساد میر آفت خان او دیرانے وغیره چه د مکرم خان په کور ډاکه اوغورزوی او د ظلم انتها اوکړی او دوئ واپس روان وی نو د غیبی شاه فقیر آواز راشی -

روان دی دنیا نه ځوانان ځنګه ځنګه
شو پاتے هر چا نه سامان ځنګه ځنګه
دهر یو فرعون دپاره موسیٰ دے
فنا کړل قدرت ظالمان ځنګه ځنګه

او فساد میر دغه وخت د ځان سره وائی -

"دا آواز خو ما ډیر ځله اوریدلے دے -"[1]

خو دا سے ښکاری چه دغه آواز د فساد میر د ضمیر نه راپورته کیږی چه هغه پرے ځان کوڼ کړے وی او هغه وخت ئے ستر ګے اوغړیږی چه د پانسئ په تخته ولاړ وی او د خپلو ظلمونو او ګناهونو ډیرونکے خیرے ترے راتاؤ شی -

---

[1] و [2] دوینی جام ، اسلم خټک ص ۹۵

## درس عبرت

دوینو جام غوندې په دغه ډرامه پسې سمدستي بیکلې شوې ډرامه درس عبرت هم په پښتنې چاپیریال باندې جوړه شوې ده. په دې ډرامه کښې هم د ټولنې دغه ناوړه دودونو باندې غندنه او ورباندې د مقدمې . د دروغو ګواهۍ . پیشه ور ګواهان، کوچنۍ کوچنۍ غرضونه او لالچونه او د هغې په نتیجه کښې غټې تباهۍ د درس عبرت تنه بوده هم رغوي . خو د اولس د نام نهاده مشرانو او با دا رانو دلاسه په ناپوهه وګړي او بې تعلیمه عوامو باندې لوبې کول او د هغوی د ناپوهۍ نه غلطې فائدې پورته کول . د پښتو او غیرت په نامه هر یو بې پښتو چار کول او د اخلاقو په جامه کښې هره بې اخلاقه چلول دا هغه موضوعات او اړخونه دي چه د"درس عبرت" او "دوینو جام" ترمینځه ګړښنه را کاږي .

او دغه موضوعات خصوصًا د "درس عبرت" په دویمه برخه کښې چیړلې شوي دي . د درس عبرت اولنۍ برخه په هغه دور کښې لیکلې شوې ده دکوم سره چه شهیده سکینه ، نوې روشني او د وینو جام تعلق لري . او په دغه برخه د وینو جام پوره سور او خور بنکاري . او د واقعاتو په شان د دې برخې کردارونه هم نږدې نږدې د وینو جام په رنګ کښې رنګ دي .

د جوارګرو پړونه او د ډمو ډیرې هلته هم دې او دلته هم شته د غلطې پښتو او د دود دستور د پوره کولو د پاره مقدمې . د هغې د پاره جعلي ګواهان او د مقدمو د خرڅونو د پاره د سود خور سیټ په ولقه کښې راګیرېدل

په دواړه ځایه یوشان دی -

د"قارون سیټ" کردار په درس عبرت کښې "چوفی لعل سیټ" ته سپارلے شوے دے او په دواړه ځایه د سودخورو سیټانو دلاسه د مجبور او ناپوهه اولس داستحصال عمل په یو رنګ جاری وی -

د ویښو جام کښې چه د معاشرے دوړان کارو او د مغوئ دوړانو چارو او ظلمونو د نتیجو د خبردارئ د پاره کوم کار د غیبی شاه پسی نه اخستے شوے دے، دغه فریضه په درس عبرت کښې فرښتے سرته رسوی -

د فرښتو کردار په درس عبرت کښې داوسے پردے داوسے ننداره سنه شوے وکیږی او په یو شکل کښې د دراے د موضوع او مقصد پیش منظر هم د مغوئ په ذریعه کیږی - او د فرښتو په ژبه

" اوله - که څوا مغوئ د خدائے تابعداران وو نو ن د شیطان ملګری دی - څکه چې ئے د خدائے حکم منه - ن مغوئ رواج پیے زغلی - لسه داچه د دغه قوم کښې غلا غلتی - داکے او قتلونه عام رواج دے -

دویمه - توبه استغفار دا لا کوم قوم دے -

اوله - دایو قوم دے چه پښتون ورته وئیلے شی - څه چه دے علاقے ته راپو ځم او دغه خلق ته ځه په چله اووینے ۔"

او چه څنګه څنګه د دراے واقعات په مخه زغلی - دا فرښتے په دغو واقعاتو او حالاتو خپله تبصره جاری ساتی -

---

له درس عبرت ، عبدالله جان اسیر ، ص ۱۲ - ۱۳

په خپسے نهٔ پرېږ دی ګردش ے دآسمان ژړوی
ما د ربتاه برباد حالت ښ د افغـــان ژړوی
تا د رواج په منګښے پرېښو د و قرآن کريم
قوم د افغان ے د مذهب نه روګردان ژړوی

د درس عبرت " فرښتے " دويښوجام د "غيبی شاه پیر" غونډے د
دراے په واقعاتو اوکردارونو باندے په تنقيد تبصره صبرنهٔ کوی - معنوی
دډراے په انجام کښے په خپله هم دکردارونو په خپس په ډرامه کښے عملی برخه
اخلی -

رچه هغه د فطرت نه بيغی خلاف عمل معلوميږی -)
دا فرښتے د سيشن عدالت کښے د مقدمے په کاروائی کښے دګواهانو فرض ترسره
کوی او د هغے نه پس آسمان ته ځیژی -

د درس عبرت په دويمه برخه[2] کښے د جميل او نسيم کردارونه د انفرادی طرز
کردارونه دی - دا دواړه مهذب فرادان (ښکان) وی چه ساده او ناپوهه اولس
په خپله خپله پس ايه کښے لوټی او د معنوی د جذباتو او عقيد و سره لوبے کوی -
جميل د يو سياسی ليــډر په شکل دعوامو د مفادو او بشيګړو په نوم خپل
غرضونه ترسره کوی او نسيم د يو پير په جامه کښے د ساد[3] اولس د ناپوهئ نه فائده[4] اوچتوی - او دغه
دواړه په خپل خپل انداز کښے د خلقو د عقيدت او سادګئ صدقه چلوخپلو جيبونو ته ځنږوی -

---

[1] درس عبرت ، عبد الله جان اسير ، ص ۱۲۰

[2] د درس عبرت دويمه برخه د اولے برخے نه څه دېرش کاله پس په کال
۱۹۵۶ ء کښے د نوو حالاتو په رڼا کښے ليکلے شوے ده .

# جونګړه

د پښتو د اولنی ډرامه لیکونکی ښاغلی عبدالاکبر خان اکبر جونګړه (د مظلوم دنیا) په کال ۱۹۲۵ء کښې چاپ شوه - دا ډرامه د ښاغلی اکبر د "خدائی خدمتګار" (۱۹۳۰ء) د سلسلې دویمه کړئ ښکاری -

جونګړه د دغه نومړی لیکوال او انقلابی شاعر د انقلابی افکارو یوه پلوشه ده او

" د معاشرتی انقلاباتو د ضخیم کتاب هغه ورق دے چه ښاغلی عبدالاکبر خان بابا ډیر په فنکارانه انداز داغستے[1] او ډیر دلچسپ تمثیل په شکل کښې ئے ښاغلو لوستونکو ته وړاندے کړے دے ."

په دے کښې شک نشته چه د مقصدیت او افادیت له رویه جونګړه یو اهم مقام لری - خو متاسفاً د تکنیک له مخه موږ دے ډراماتی زیاتره د زیاتو نه زیات یو نیم سیاسی او اصلاحی فیچر وئیلے شو. ځکه چه په دے کښې نه څه مرتبه قصه شته، نه پلاټ او نه څه ښکاره منظم او کوټلی کردارونه - د کردارنګارئ په لړ کښې دده ډراماتی فیچر واحد یو کردار دا سے دے چه هغه زموږ د ډراماتی ادب د کرداری ارتقاء په لړ کښې د تن کړے جوګه ښکاری - دغه

---

[1] جونګړه دویم چاپ، عبدالاکبر خان اکبر
دوړاندے په حقله محمد نواز طائر ص ۳۳

ACKU

کردار د سود مل دے ۔ دجوسنگړے سود مل هم صغه سود خور بنړیا دے کوم چه دوینو جام کښے د قارون اوپه درس عبرت کښے دخونی لعل په نامو راغلے دے. او داهم د دغه روایت یوه کړئ بشکاری ۔

# نیمګړے خوب

دا یی اے رحمن کاکا خیل ددے ډرامے مرکزی خیال اوپلاټ رومانی دے ۔ اوددے ډرامے هیرو ایاز ته موږ د پښتو ډرامے اولنے رومانوی کردار وئیلے شو ۔ ددے ډرامے اهمیت او انفرادیت هم په دے کښے دے چه ډموږ ډرامے په دغه اصلاحی دوره کښے په نیمګړے خوب کښے په اول ځل دمعاشرے د اصلاح دمقصد سره خوا په خوا د مینے محبت رومان پروره مساله هم کښے شو ے ده ۔

ډرامے هیرو آیاز یوتعلیم یافته ځلمے وی چه د خوړ په غاړه یو بنائسته پیغله شاهښو له ورایه اوویـنی او د هغے د مینے په تصوراتو کښے ډوب شی - او په دغه تصوراتو مینه کښے د ځان اوجهان نه بے خبره شی - خو ولے بیا هم د پښتنی معاشرے درواياتو په وړاندے سرښکته کړی او د موره پلار په خوښه د بلقیس سره واده ته غاړه کیږدی - د غه واده ایاز د خپلو جذباتو او احساساتو مرګ کنړی خو د مور پلار د اطاعت ملغلره ماتول ورته د پښتو په مذهب یو لو یـه ګناه ښکاری ۔

د شاهښو سره د ایاز تخیلاتی مینه ترمرګه مرګه پورے ملګرے وی او په حقیقت کښے ایاز د چناونو د نړئ یو داسے مسافر وی چه د عملی ژوند تیوے لارے

کودرے ترے خطا شوے وی ۔ دهغهٔ ژوند دورکو خوبونو په تکل کښے تیند کونه خوری او انجام ئے داشي چه په خپله هم دمرګ په نیمه خوا خوب اوده شي او د هغهٔ بدنصیبه ناوے بلقیس هم دهغهٔ ددغے خوبونو تاترین ته ورکوزه شي.

دآیاز ډرومانیت او تصوریت خلاف دهغهٔ ښځه بلقیس په دے ډرامه کښے دیوے پښتنے میرمن دکردار ډیره ښائسته نمونه وړاندے کوی ۔ داپښتنه ښځه دخپل خاوند په مینه او غم کښے د شمعے غوندے سوزی اودخزان دپاڼے غوندے زیړیږی او ژړیږی ۔ خو دښتن دبے خیالئ او بے استغفائئ ګیله ئے چرته هم په خوله نهٔ راځی ۔ دهغے دحیا ، صبر ، پت او شرافت داحال وی چه دایاز غوندے تصوراتی او ناخبره بنده ته هم دهغے دویس زیلے څوانئ احساس وی۔

خو دبلقیس دکردار هم دغه خوبیانے دهغے دخوشحالو په جهان اوراوګوی اوآیاز یوه ورځ بلقیس ته په ډیره سادګئ او بے پاکئ وائی۔

"ستا دے شرافت زهٔ دومره داړه کړے یم چه نن درنه
یو داسے سوال کوم چه که ستا په ځائے څوک بل څوک وے نـو
شاید چه خله ے ورته نهٔ وے بوره شوے ."

اوبیا ایاز هم ددغے شرافت په داړ دخپلے ښځے په وړاندے د شامنو سره دخپلے مینے داستان بیان کړی ۔ دیوے ښځے دپاره دخاوند دخپلے نه داقسم خبره اوریدل دګولئ دګوزارنه کمهٔ نهٔ وی ۔ خو دغه ګوزار هم بلقیس په خاموشئ او صبر په زړهٔ تیرکړی تردے چه هغه مرګی حال شي او

---

لے نیمګرے خوب ، ایس اے رحمٰن کاکاخیل ص ۱۳۳

ACKU

په دغه حال کښې څپل خاوند ته وائي چه

" ته هغه جینئ واده کړه ."

د "نیمګړے خوب" سره تړلے په دغه کتاب کښې د بناغلي رحمان دوه لنډے ډیدیائي ډرامے "عملي" او "پښیمانه" هم شامل دي. چه د پښتني چاپیرچل د څښ کردارونو ډیرے ساهو او ږوندئ نمونے وړاندے کوي. په "عملي" کښې د صمد خان په کردار کښې د هغو بے تعلیمه کلي والو د بربادئ او بد قسمتئ داستان بیان شوے دے چه د نشو دلاسه د دنیا د ژیست روزګار نه اوځي. د هغوئ تجربے څوانئ د چرسو په لوخړو کښې تحلیل شي او آخر انجام ئے مکمله تباهي وي.

په "پښیمانه" کښې د مراد خان کردار هم د صمد خان (عملي) په شان وي. چه د فضول خرڅو او عیاشو د پاره د پلار نیکه مزکے خرڅوي او په آخر کښې د پولئ پرق ته کښیني. خو د هغه وفادار ښځه مریم تر آخره وخته پورے د څپل بے ډواکه اوبے ضمیره څښتن خدمت په پرانستے تندے کوي.

---

## اُور او اُوبه

---

د ایس اے رحمان کاکا خیل په دے ډرامه کښې د پښتنو خاندانی تربګنو او تربورولئ د روایتي انداز خلاف یو نوے او تعمیری حل بیان شوے دے. دلاورخان د څپل تربور صمد خان دلاسه داوبو دوړ په جګړه کښې قتل شي او صمد خان په دغه جرم کښې جیل ته لاړ شي. خو د دلاورخان تعلیم یافته

زوئے فریـدخان دخلقولمسے او د دښمنئ خیال شاتـه اوغورزوی او د صمدخان دکور او تور سرو خدمت او حفاظت خپله ذمه واری اوکړی .

دصمدخان ناکاره زوئے دخپل بد عملئ په نتیجه کښے دبل چا دلاسـه مړشی دوصمدخان چه دجیل نه راخلاص شی نو فریـد خان ورله مرکلی تـه لاړ شی او دپلار قاتـل تـه ور ترغاړه وځی - او د دښمنئ درواياتو دغه زور بت په هغه وخت توټـه توټـه شی څه وخت چه صمدخان فریدخان سره دخپلے سـور کلفاے دوادهٔ اعلان اوکړی.

د اولسی بـکیړو اوخانـدانی دښمنو دخاتمے دپاره دپښتنی معاشـرے د روایـتی مزاج خلاف داحل پو نوے حل معلومیږی اوپه دے کښے دنوی دور دتعلیم یافتـه زلمو دپیـځلی ذهنیت اونوی شعور هغه آواز جوت ښکاری د کوم نما ئندګی چه د فریدخان په کردار کښے شوے دہ -

او د ښاغلی فضل حق شیدا په خیال

" دقصّے[1] داخاتمه په هغه پښتنو ته عجیبه ښکاری کوم چه ورور، عزیز اوتربور په نهٔ څه خبره وژنی - بدل اخستل ورته لوئے ننګ غیرت او پښتو ښکاری اودد ے هیڅ پرواه نهٔ کوی چه دے قتلونو اوبدلونو پښتانهٔ څومره تبـاه او برباد کړل - مصنف ورته د فریدخان اودهغهٔ دخپلے کلفاے په کردار کښے د ژوندیوه نوے نظریه پیش کوی - "

---

[1] اوراو ادبهٔ ، ایس اے رحمٰن ، مقدمه ص ۱۰

# ترבور

دا ایس اے رحمان په دے ډرامه کښے هم د مخصوص پښتنی ماحول او پښتون مزاج په حواله دځینو داسے کردارونو د فطرتونو مصوری شوے ده چه هغه د يو بل سره په تقادم دی - دا تقادم په حقیقت کښے د "نوی" او "زوړ" او د "غلطے" او "دروغ" پښتو تر منځه تقادم دے - د ډرامے پلاټ په يوه ساده او هواره واقعه باندے جوړ شوے دے خو د برندو او متضادو کردارونو په وسيله په دے ساده پلاټ کښے د دلچسپئ عنصر زیږیدلے دے -

د ډرامے هیرو جهانزیب یو پیلا لوستے او روشن خیاله زلمے وی - د هغهٔ ترله زیبا د وړوکوالی نه د هغهٔ په نامه شوے وی او د دواړه د یو بل سره د مینے جذبات هم لری - خو د زیبا لوچه - بے سره او بے تعلیمه ورور سردار خان د میر اجان غونډے چغلی خورو او پساتی مشرانو په لمسه هیڅ بے هیڅه په پښتنی هوډ کښے د دے رشتے نه انکار اوکړی - هغه خپله خور د ځان غوندے یو شرابی کبابی خوماله داره دوست میرباز خان له ورکول غواړی -

د غه شان "تربور" د تربور په روایتی انداز کښے د هغه کردار عکس شی کوم چه د "اور او اوبهٔ" د فوبه خان په شکل کښے وړاندے شوے دے - خو جهانزیب په دے ډرامه کښے هم هغه کردار ترسره کوی کوم چه د "اور او اوبهٔ" نوے ډرامے هیرو فوبه خان ادا کړے وی - هغه او د هغهٔ پلار سعید خان د رواجی پښتو په عکس د سودار خان د غلطے فیصلے په وړاندے په صبر او خاموشئ توره ډال اوغورزوی - جهانزیب هم د مینے جذبات قابو کړی - او هم د پښتو

خو حالات په ځپله داسے پلټه وخوري چه د سردارخان د لاسه هم هغه میرباز خان
او وژړے شي چانه چه هغه د زیبا د ودولو تابیا کړے وی .

د تنګسیا او مشکلاتو په دغه وخت کښې جهانزیب (او د هغه پلار) د سردار خان
او د هغه د مور او خور د اوکیس نه او امداد ته راځغلنې شي . او سردارخان چه د تره
او تربور دغه رویه اووینی نو په ځپلو کړو پښیمانه شي . هغه ځپل ته لاړ شي او
زیبا او جهانزیب سره یو ځائے شي .

په دے عام غونډے پلاټ کښې د سردارخان کردار دخصوصی توجه جوګه
کردار دے . ډرامه لیکونکی هغه یو داسے جاهل زلمے ښئلے دے چه د
فضولو دوستانو او وړانو عادتونو له کبله د ځپل جائیداد نه لاس اووینځی . او
د تربورولئ له ضده ځپله خوی په غرض لوسترګو د میرباز غوښے لوچه، جوارګر
او شرابی انسان ته حواله کولو ته غاړه کیږدی . خو څه وخت چه هغه د "زرداد"
د خولے نه د پیغور واوری چه هغه ځپله خوی په شل زره روپئ قرضه کښې میرباز
له ورکول غواړی نو د دے ناکاره او بے ضمیره انسان پښتو هم راویښه شی او په
دے پیغور باندے هم د زرداد سر خور کړی او هم د میرباز .

د تربور په کردارونو کښې د دے یو کردار نه علاوه بل یو هم داسے کردار
نه ښکاری چه هغه د لوستونکو په خیال کښې څه ځان له واخلی ، (انفرادیت او ځپل
شناخت لری ولے بیا هم د ډرامے د ټولو کردارونو کړه وړه ، لب ولهجه ، ناسته ولاړ
او حرکات سکنات د ځپل ځپل فطرت او ماحول مطابق ډیر د ښتینے معلومیږی . او د
پیاوړی لیکوال او پوهاند پروفیسر حافظ محمد ادریس په ټکو کښې ......

" دټربوړ ترتیب د دوستو سره تعلق لري - ماورته د رقابت
په سترګه کتلی دی - خو داول نه تر آخره پورے دهرکردار خصوصیتونه
دهغې په بره ختل ، بیا دهغې راکوزیدل - ټول په ځائے ځائے دی -
هرکردار هغه قسم کاروونه کوي او په هغه لهجه کښے خبرے کوي
کومه چه دهغهٔ دپاره مقرر ده - "

---

# دژوند دوزخ

---

د میاں سید رسول رسا نامه زمونږ په هغه ډرامه لیکونکو کښے را ځی
چاچه د ریډیائی ډرامے په ابتدا کښے په باقاعده ډول چېل ادبی زیارونه
کاږلی دی - د رسا صیب د دغو ریډیائی ډرامو یوه مجموعه د "رنګارنګ ګلونه"
په نوم چاپ شوے هم ده -

"دژوند دوزخ" د بناغلی رسا هغه علمی او ادبی زیار دے چه زمونږ
په ډرامائی ادب کښے یقیناً چه د یو ے نوے اوسودمنې تجربه حیثیت لري -
دژوند دوزخ په تمثیلی انداز کښے د انسانی ژوند د آغاز او خاتمے په
حقله یوه فکری او د بصیرت نه ډکه مطالعه او تجزیه ده -

دد ے تمثیل دوه برخے دی - په اولنئ برخه (طربیه) کښے د بنیادمو

---

له ټربوړ - ایس اے رحمٰن کاکاخیل ، پیښندګلو ص خ

د اولنئ جوړے (حضرت ادم علیه السلام او بی بی حوا) دجنت نه مزکے ته د سفر او دیو ارضی او انسانی ژوند دآغاز قصّه په ډیر ښکلی ساده او خوږ ورتمثیلی شکل کښے وړاندے شوے ده.

او په دویمه برخه (المیه) کښے دهغے بربادئ او مکملے تباهئ نقشه پیش شوے ده. کومه چه دانسان دعقلی ارتقاء او مادی (سائنسی) ترقئ په نتیجه کښے دهغهٔ د ځنله لاسه دوریم عالمی او ایټمی جنګ په شکل کښے راغلے وی. دایټمی جنګ دغه تباهی دیو وطن یا یوے علاقے پورے محدوده نهٔ وی. دهغے په ولقه کښے کروړه نړئ او کلهم انسانیت راګیر شوے وی. د جنګ ددغے تباهئ په نتیجه کښے دوارړه عالمی تهذیب جنازه وتلے وی او ددنیا نه یو ډیر ویرونکے بیابان او بوږنوونکی سوراړا جوړه شوی وی.

دتمثیل په دے برخه کښے هم لکه داولنئ برخے په شان دبنیادم وایکیو اخیرنئ جوړه پاتے وی او په دے دود "دژوند دوزخ" دانسانی نوعی دآغاز او انجام یو ترلے او مربوط داستان معلومیږی. په اولنئ برخه کښے دآدم او حوا دکردارونو په حواله دژوند دادرامه شوع کیږی او په دویمه برخه کښے داخرینئ انسانی جوړے دلاسه دژوند دا اوږده ډرامه خپلے اختتامی ننداړے ته رسی.

داسے ښکاری چه فاضل او پیاوړے مصنف ددے فکر انګیز او فلسفیانه تمثیل په لیک کښے په دے موضوع باندے دانګریزئ ژبے د نوموړی شاعر بناغلی ملټن د فردوس ګم ګشت (Paradise Lost)

او د ستر اطالوی شاعر بناغلے دانتے د تخلیق (Divine Comedy)[1] نه متاثره شوے وی - خو د "ژوندی دوزخ" په دویمه برخه کښے چه د ژوند د بتامئ کومه نقشه ښودلے شوے ده - هغه یقیناً چه یو ه نوے تصوریه وړاندے کوی - او ښاغلی رسّا د ژوند د ابتدا دغه قصّه د خپل ژور فکر او نومور و تخلیقی قوتونو په دنړا کښے په ډیره ذره ؤ د ابنکو نکے تمثیلی پیرایه کښے سرته رسولے ده.

په دے لړ کښے دا نکته هم د توجه جوګه ده چه "ژوندی دوزخ" د ښتو ډرامے په لنډه تنګ میدان کښے د مذهب او فلسفے په موضوع باندے او لنډے ډراماګۍ ذیار د ے - په عالمی ادب کښے د مذهب او ډرامے ترون یو ډیر زوړ او لرغونے روایت ته اشاره کوی - او د یو ے اندازے مطابق د کوم اولس په مذهب کښے چه د بت پرستئ رواج عام وو د مغوئ په ادبی او ثقافتی ژوند کښے د ډرامے مواد او دستور هم د نورو نه سیوا ښکاری -

د ښاغلی سید بادشاه حسین په خیال -

"د ډرامے دوه ارخونه دی - یو تمثیلی او بل ادبی - تمثیلی ارخ ډیر زوړ دے او د هغه وخت نه[2] رواج دے - کله چه ادب، ژبه

---

[1] ډیوائن کامیډی (Divine Comedy) د دنیا په عظیمو نظمونو کښے شمېرلے شی - په ډیوائن کامیډی کښے دا ټلی د دیارلسمے او څوارلسمے صدئ لوی خیالی شاعر او مفکر دانتے د خپل خیالی آسمانی سفر په حواله د ماضی د څنو تاریخی غټو سره په ملاقات کښے په غوښ و انسانی، ادبی، سیاسی او روحانی مسئلو باندے بحث کوی -

[2] اردو میں ډرامانګاری سید بادشاه حسین حیدرآبادی (باردوم) ص ۱۸/۱۹

او تمدن هم لا د تاریخ د سترګو نه بې درکه وو - دا تمثیلي ارخ په
شوي و کښې مذهبي وو ځکه چه هم مذهب شاید د نړۍ د ټولو نه
لرغونې خیال دې هم له دغې کبله چرته چه په مذهب کښې د
بت پرستۍ رواج وو هلته د ډرامې د ځېګون او ودې د پاره
فطري سهولتونه هم موجود وو او په کومو مذهبونو کښې چه د
"دیوي" "دیوتاګانو" "تصور ډېر عام نهٔ وو هلته د ډرامې جوړې
هم او نهٔ نګیږې شوې دي - د یونانیانو او هندوانو د دیومالائي عقیدو
د مقبولیت له کبله په یوناني او سنسکرت ژبو کښې د ډرامې
ابتدا او ارتقاء د نورو په نسبت وړاندې اوشوه."

او د دې حقیقت په رڼا کښې "ژوندون دوزخ" د خپل موضوع له خوا
زمونږ د ډرامې په تاریخ کښې یو اجتهادي او تجرباتي زیار دې - د کردارنګارۍ
له رویه د دې ډرامې په اوله برخه کښې د حوا کردار په ډېر فطري او اثرناک
انداز کښې ښیٔلې شوې دې - او په دغه کردار کښې د یوې ښځې د فطرت، احساساتو
او نفسیاتو ساهو او سپیڅلې مصوري شوې ده - او د لهجې او مکالمو استعمال ئې
هم ډېر روغ او تراشلې معلومیږي او سټائیلي ټیکونکي په دې نازکه او حساسه
موضوع باندې د دیک په وخت خپلو کردارونو او د صنوئي اطوارو او خلقتونو
ته د عملي شکل ورکولو په عمل کښې د لازمي پام او احتیاط سره د رسا پوهې
ساهو فکر، لوړ تخیل او د روښانه بصیرت ثبوت ورکړې دې.

د ژوند د دوزخ اوله برخه د انسان د ارضي ژوند په ابتدا او په
مزکه د آدم او حوا د خپل کوي او مستقبل په تصور ختمیږي - خو د تمثیل په
دویمه او طویله برخه کښې د انساني تاریخ د مادي، روحاني، معاشرتي او عمراني

ACKU

اړخونو له خوا یو تفصیلي فلسفیانه بحث شوے دے۔ او دغه بحث د ایټمي جنګ په نتیجه کښے د پاتے شوؤ آخرینی آدم او آخرنۍ حوا ترمینځه جاري وي ۔ دغه آخرنۍ ښځه د یوے ماډرن تعلیم یافته جینۍ په شکل کښے او آخرینے سړے د یو رسیدلی فلسفي په څیره کښے ښکاره شوي دي ۔

دغه ښځه بیا آدم له نوی سره په دنیا کښے د ژوند تیرولو د پاره راګرما ول غواړي خو د جنګ د تباهو او د انسان د فسادي فطرت څخه مایوسه او په ذهني توګه دغه اوتر آخرینی آدم ته ژوند یو بے مقصده خوب او دیوني سندره ښکاري ۔

## اخرینۍ ښځه

"ګوره نه که مونږ واده نهٔ وے کړے نو چا رچا ېیره دا ښائسته دنیا به چا اباد وله ۔ دا خو به زمونږ د مرګ نه پس یوه ورانه ویجاړه ویره او صحرا پاتے شوے وه ۔۔۔۔۔۔" یوه لویه خوابه ویره ۔ ښه ده چه واده مو اوکړو چه د خدائے دا دنیا آباده شي ۔"

خو د دے ځواب دغه مایوسه فلسفي داسے ورکوي ۔

" لکه چه اوس ویرانه نهٔ ده ۔۔۔۔۔ هو ۔۔۔۔۔ دا دنیا جوړ مونږ پیدا کړے ده چه مونږ ته د آبادۍ ذمه وارېو ۔۔۔۔ ګوره جینۍ ! زهٔ خو درته صفا وایم چه زهٔ خو د دنیا د

---

[1] د ژوند دوزخ ، سید رسول رسا ص ۱۵۱ - ۱۵۲

[2] ایضاً ص ۱۵۲

بربادۍ ذمه واریم - د آبادۍ ذمه وارے نهٔ یم - که تهٔ د دنیا
د آبادۍ ذمه واری په سر اخلې نو داځکه چه تهٔ بے وقوفه ئے.
زما تر نیژده خو ژوند عبث او لاحاصل کوشش دے ."

او د ژوند دا اوږده او نهٔ ختمیدونکے دراما د آخرینۍ جینۍ په خواهش یو ځل بیا شروع کیدل غواړی خو د دغے لیونی فلسفی دلاسه انجام ته اورسی - څوک چه په نشه کښے جینۍ له هم زهر ورکړی او په ځله هم د زهرو پیاله نوش کړی او د مرګ په وخت هغه ځنل تأثرات داسے وړاندے کوی .

" مرګ[1] دے ته وائی لکه چه دا زما مرګ دے - څومره ښکلے مرګ دے - څومره د آرام مرګ دے څومره د تسلۍ مرګ دے ........ آخر سقراط غه کړی وو خو ایله داکنه چه د زهرو پیالئ نهٔ تېښته او نهٔ کړه - د زهرو پیاله ئے اوڅښله او ایله ځان ئے اووژلو ..... ما هم د زهرو پیاله په خوښه اوڅښله - خو تش ځان مے اونهٔ وژلو - د ځان سره مے د بنیادم غمناک جهان هم ختم کړو .... زما په مرګ یواځے ژوند مړ نهٔ شو - زما په مرګ د بنیادم مرګ هم مړ شو او د همیشه د پاره ."

---

[1] د ژوند دوزخ ، سید رسول رسا ص ۲۷۷

# رستم او سهراب

د ډرامې په میدان کښې د عالمي ادب نه ډېرے کمے فن پارے په پښتو کښې ترجمه شوي دي - رستم او سهراب د شمیر په مغوڅو ډرامو کښې په دے وجه داهمیت وړه ډرامه ده چه یو خو دا ډرامه د سټیج دلوازماتو او ضرورتونو له خوا یوه مکمله ډرامه ده او بل خوا دا د اردو ژبے د نامتو او استکار لیکوسکی او د خپلے زمانے د تیټر د بابا آغا حشر کاشمیری لیکلې شوے ډرامه ده - او زموږ د ډرامه لیکونکو دپاره د سټیجي ډرامے یوه ښکلے نمونه هم ده -

ښاغلی افضل رضا د رستم او سهراب پښتو ترجمه هم په کامیابئ سرته رسولے ده - رستم او سهراب قیصه د پېړو راسے دداستاني ادب په لمن کښې په مختلفو رنګونو او شکلونو کښے پیش شوے ده - خود ډرامے په شکل کښے آغا حشر دے قیصے او ددے کردارونو ته له یوے بیلے زاوئے نه کتنه کړے ده - په ډرامه کښے د آغا حشر د مخصوص طرز مکالمه بازي کله کله په ذهن د روند وائے اچوی خو دا قسم مکالمے دنن نه د مخکښ شپیته کاله وړاندے د سټیج د ډرامے رواج او ضرورت وو - لکه د سهراب د خپلے مور تهمینه سره دا مکالمه -

" د رستم زوئے د خپلو مټو او تورے نه علاوه د بل چا نه هم د مدد غوښتنه نهٔ کوي . . . . . . وے سهراب د توراني جنګ

---

له رستم او سهراب ، ترجمه افضل رضا ص ۶۳ ، ۶۴

په اعتبار نه ، د چل جرأت او طاقت په زور د ایران غرور سته
پښتون ټپوی - خدائے زما ساتونکے ، همت زما ملګرے - توره زما
خد متګره[1] - د جنګ میدان زما لاره او د کیکاؤس تخت زما د سفر
آخری منزل دے ۔"

په دے ډرامه کښے د رستم او سهراب د کردارونو نه زیات د یوے
ایرانۍ پیغلے ........ ګرد آفرید " کردار د خصوصي پام او توجه وړ کردار دے
د چل قام او وطن په ننګ او شان باندے د مینے د غے ننګیالے ایرانۍ په مخکښے
د رستم غوندے نامتو او په چل طاقت غاوره پهلوان او د سهراب غوندے
متهور او جنګیالے سالار هم د خسنړو په شان ښکاری - او دا سے معلومیږی
چه ډرامه لیکونکی د چل فکر او قلم زور هم په د غے یو کردار باندے
تمام کړے وی - ګرد افرید د ایران د یوے سرحدی قلا د سردار ذړه ور او
بهادره لور وی او څه وخت چه سهراب په ایران د قبضے په نیت په د غے
قلا حمله کوی نو د غه وخت د قلا د فوځ عنداره غری سهراب له د صلحے
په خواست ورتلل غواړی خو ګرد افرید ئے مخ نیوے کوی چه تاسو صلح د
چا سره کوئ ۔

" د سهراب سره ؟ د ایران د بدخواه د قوم د دښمن سره - طاقتور[2]
سره د کمزوری - د کاڼړی سره د ښیښے ۔ د سیلۍ سره د څسترې ۔ ملګرتیا
چرے هم نهٔ کیږی صلح د سیلابونو سره کیږی ۔"

---

[1] خد متګاره - مزدوره

[2] رستم او سهراب (ترجمه) ص ۷۱

اوکله چه دغه په تمام مېنه بهادره پېغله د سهراب مقابلې ته راووځي او په جنګ کښې ماتې اوخوري او دخپل اس نه راوغورځېږي - نو په دغه اوان کښې ئې د سرنه خود بېل شي - د سر وېښته ئې راخوارۀ شي او دیو بې لاثاني ښائسته پېغلې په څېر د سهراب د سترګو وړاندې اودرېږي نو دغه برې سمد ستی ذرۀ بائلي او دخپلې مینې اظهار په دې ټکو کښې کوي -

" دښمن په مقابله کښې تل د سرې غروس ماتې خوري. پاسه د زما فتح نۀ ده ستا فتح ده -"

او د سهراب د دې روئې دد عمل په مخ هم دغه شان اوشي - اوجینۍ په ذرۀ کښې هم د دې خپل دښمن دپاره د مینې جذبات راوپارېږي - خو دوطن مینه دتن په مینه غالبه شي او دغه یوځلې بیا د سهراب مقابلې ته راووځي خو د سهراب ښکر ایرانیانو لهماتې ورکوي او دژوبلېدو په حالت کښې چه دډرامه ېکونکي دګرد افرین په کردار کښې دیوې مینې جینۍ او وطن پرستې پېغلې کوم ګس وچ تأثرات وړاندې کړي دي د مخ مثال نشته - دغه خپلې تورې ته د اسې غاطبه شي -

"د دې جسم نه د روح دبېلېدو وخت نژدې دې - ترکومې چه مرګ دا دوارۀ بېل نۀ کړي - زما دخوانۍ سنګاره - زما دلاسو کالیه ! زما د ژوند وفادارې سهیلۍ ! تۀ زما نه بېلېږه مه - یوځل د سهراب په وینه کښې....

---

ل رستم او سهراب (ترجمه) ص ۸۰

ٔ ایضاً ص ۹۲

( د محبت جذبه پرے غالبه شی ) آه خومره بنکلے نوم خومره خوږ نوم ! ددے نوم په اوریدو دا ے معلومیږی چه د زړهٔ په دنیا کښے د محبت دسندرو باران وریږی ( د خیال بدلون ) محبت! دچا محبت ؟ دسهراب محبت . خبردار که تا دایران ددښمن سره محبت اوکړو نو زهٔ به تا د سینے نه اوباسم . په پښو به دربانـدے اوګرځم . "

او بیا څهٔ وخت چه د قام غدار ، بهرام د "ګرد افرید" په ملا کښے خنجر ښخ کړی او ګرد آفرید بهرام له په مرګ غلی شی . او د ساه ایستو په اراده ئے غارے له زور ورکوی نو په دے خیال اساره شی چه .

" تهٔ[1] کمینه ئے . نمک حرامه ئے . دغاباز ئے . قاتل ئے . هرڅه ئے . خو بیا هم زما وطنی ئے . د قوم پرستو په مذهب کښے دبدو بدل بدی نهٔ ده . زهٔ د خپل وطن دعزت په صدقه کښے تا ته خپل خون بخښم ."

حقیقت دادے چه د ګرد افرید په کردار کښے د یوے قام پرورے او وطن پرستے ښځے د بے لوثه مینے او سترے قربانئ یوه لاثانی ننداره وړاندے شوے ده . او د پښتو ډراماتی ادب پښکے نه د آغا حشر کاشمیری د "رستم او سهراب" دا ترجمه یوه د قدر وړه پیرزوینه ده .

---

[1] رستم او سهراب ، ترجمه ص ۹۷

# رېډيائي ډرامه او کردارونه

ډرامه دستېج وي که د رېډيو يا د ټېلي وژن خو په بنيادي توګه ډرامه ډرامه وي او د هرې ډرامې تصوّر د کردارونو د وجود نه بغير ناممکنه دے - خو په رېډيائي ډرامه کښې د ښکلي افسانے په شان د ښتيې کردارنګارۍ د پاره ډېرے کمے موقعے په لاس راځي - او د هغې غټه وجه د وخت کمے دے -

په رېډيو باندے د پښتو ډرامے دورانيه په شروع کښې د نخلس منټو نه تر نيمے ګېنټې پورے وه - او په موجوده وخت هم د رېډيائي ډرامے دورانيه د ګېنټې نه کمه ده - بيا د آواز په دنيا کښې دا هم ډېره ګرانه او عجيبه خبره ده چه ډرامه دِ په پرکونو کښې پېش کړے شي - د دغے لنډ تنګ وخت په حدونو کښې چه په تېرو نخوسو کالو کښې کومے رېډيائي ډرامے نشر کړے شوې دي - په هغو کښې اکثريت د داسے ډرامو دے چه په کښې زيات زور په واقعاتو ، پلاټ ، او مکالمو شوے وي او کردارونه په کښې عموماً ثانوي حيثيت لري -

وے بيا هم د ډرامے د فن استاذانو په ډېرو بنديزونو او محدودو وسائلو کښې هم څنے داسے فنپارے ليکلي دي چه هغے نه مونږ د کرداري افسانو په جوړ کرداري ډرامے هم ويښلے شو - او د رېډيو د ډرامے په حيله

پښتوادب ته یې شمیره پېغلی او یادګاری کردارونه په لاس ورغلی دی .

# عبدالکریم مظلوم

د ریډیائي ډرامې په لړ کښې چه په پښتو کښې کومه اوله نامه راځي هغه د ښاغلی عبدالکریم مظلوم ده - او مظلوم هغه پښتون لیکونکے دے چا چه په پښتو کښې په اول ځل ریډیائي ډرامه اولیکله.

د کال ۱۹۳۵ ء او ۱۹۳۵ ء ترمنځ ځو مانه ښاغلی مظلوم د ریډیو دپاره په پښتو کښې ډرامې اوفیچرونه اولیکل - او "ډګهرے" په نوم ئے د ریډیائي ډرامو یوه مجموعه هم چاپ شوه - خوله بده مرغه دغه کتاب د ډیرے مودے راسے بې درکه دے -

د ښاغلی عبدالکریم مظلوم د ژوند ښاغلی مختیار احمد زاهد د صفحے مقالے نه کومه چه د قند په ډرامه نمبر کښې چاپ شوے وه ) هم دا برېښي چه د مظلوم په خپلخانه کښې هم د دغه کتاب درک نه لګی -

ولے د صفحے نه هم زیاته د افسوس او بدنصیبئ خبره دا ده چه د پېښور ریډیو سټېشن په ریکارډ کښې د ځل اولنی ډرامه نویس د ډرامو مسودے شته او نه ریکارډ - مجبوراً که موږ اوس د مظلوم د ریډیائي ډرامو او د هغه د کردارونو په حقله څۀ وئیل یا لیکل غواړو نو هغه د ښاغلی زاهد د هغه مقالے په حواله کومه چه د قند په ډرامه نمبر کښې "زما پلار او پښتو ډرامه" د سرخط

---

لـه په حواله د امیر حمزه خان شنواری قند پښتو ډرامه نمبر ۱۹٦۰ ء

لاس ے سیکلے دہ۔

په دغه مقاله کښې چه د مظلوم حبیب دځهرے د ډرامو کومے لسنړ نے بیان شوی دی ۔ دهغے له رویه یقیناً چه دغو ډرامو په پښتو ادب کښې ځنې ښکلی او پېڅلی کردارونه متعارف کړی دی ۔ په دغه ډرامو کښې بانړیځے ناټې ۔ وکیل او بیمه ایجنټ درے واړه په ترتیب سره هم په دغو کردارونو باندے بناء شوے ډرامے دی ۔ او دغه درے واړه ډرامے د د لیکسیو او خوندورو پلا ټونو سره سره دکردارنګارۍ ډیرے ډولنۍ نانے هم وړاندے کوی ۔

په بانړیځې ناټې کښې د تفریح سره خوا په خوا د معاشرے په طبقاتی روشونو باندے پوتیرۀ طنز هم موجود دے ۔ او د هغه وخت د خانانو دبیګارۍ نظام ژړا هم پکښے شوے دہ ۔

بانړیځے ناټۍ دکلی کسب ګر وی ۔ ټول عمرۍ دخانانو مکانو په بیګارونو کښے خوړلے وی او چه بوډه ورځ تنګ شی نو کړه په خپ بارکړی او شپه په شپه د خپلے ښځے سره پېښور بنارته او تېنتی او بنارته د رسیدو سره سم چه یو بنارے دۀ ته دسر خوشلو دپاره کښینی نوځه هغه منزل ستوما نه کړے وی او ځمۀ چارۀ دکلی دملک بیګارونو وهلے وی ۔ اوچه په سترو لاسو چارۀ د بناری په سر راکاږی نو هغه غوځ شی ۔ شور او غوغا جوړه کړی او دهغۀ په چغو سوړو تور بناریان په بانړیځې ناټۍ ټسومار جوړ کړی ۔ په دغه شور هنګامه کښے دکلی ملک صیب هم دچوته نه راپیدا شی ۔ ناټۍ دبناریانو نه خلاص کړی او د ناټۍ غریب سره یوه لادپاتی شی چه بیا د ملک دبیګارونو دپاره دهغه سره کلی ته روان شی ۔

———

## وکیل

په دې ډرامګۍ کښې بناغلي مظلوم یو نوی وکیل او د هغهٔ د منشي د بې ارزښته قصّه په ډېر خندنۍ ماحول کښې پیش کړې ده.

وکیل صیب تول ورځ په خپل دفتر کښې ناست وي او د ځان نه پچان شړي. او د خپل ناقابلتوب غصّه په خپل منشي اوباسي. او هغه له شپه او ورځ داتونسوته ورکوي چه ستا په منشي توب کښې د خلقو د خندا ښوم. څوک راله هېڅ مقدمه نهٔ راوړي.

او یوه ورځ منشي په خواړه وزاړه یو داسې موکل راولي چه هغه ډېرې غټې غټې خبرې کوي. وکیل او منشي هم په زړهٔ کښې من من غټېږي چه غټه سامۍ مو بیا مونده. او دا موکل ملمه شپې ته د ځان سره پاتې هم کړي. خو سحر چه وکیل صیب او د هغهٔ منشي خبرېږي نو موکل د ځان سره بستره هم تښتولی وي.

## بیمه ایجنټ

په دې ډرامه کښې د یو بیمه ایجنټ د ژوند عکاسي شوې ده. چه هغه عمرله خلق په خپلو خوږو او هوښیارو خبرو کښې رانیسي. او د بیمې پالیسۍ ورې خرڅوي. خو یوه ورځ په داسې ناپوهه کلي والو واوړي چه د ځان خلاصې ورته ګران شي. یو بانسړیتي د هغهٔ د خبرو نه دا مطلب واخلي چه دا سړے خلقو له

دخدائے په نامه ییسے ورکوي خو شرط پکښې دا دے چه سرے مړ شي . دغه ساده سړے دبال بچ دسکالئ په خیال ځان په چاقو اووهي او چه خلق پرے خبر شي نو هغه چغې جوړے کړي چه بیے والا راتینګ کړئ او پیسے ترے راله داخلې .

دبیمه ایجنټ غریب نه وار پار خطا شو . آخر څه په خوارو زارو د یو پوهه سړي په مداخلت دهغهٔ خلاصے اوشي خو دهغې ورځے نه پس د بیمے له روزګاره توبه ګار شي .

## امیر حمزه خان شنواري

د دیهاتي ډرامے په اوله دوره کښې چه دعبدالکریم خان مظلوم نه پس کومه لویه کارنامه راځي هغه دامیر حمزه خان شنواري ده . او په دے کښې به د دیے خبرے ګنجائش نهٔ وي چه د دیهاتو د ډرامے په عوامي تاریخ کښې دبناغلي حمزه برخه دحرچا نه سیوا ده هم دمقدار او هم دمعیار په توګه ....... او دستاینلی یکوال په خپلو الفاظو کښې .

" ما به د دیهاتو دپاره دومره ډرامے لیکلے وي چه که په سوونو نهٔ دي نو په شلونو خو ارومرو دي ."

ستر حمزه دژوند په رنګارنګ موضوعاتو او د پښتني چاپیرچل په مختلفو اړخونو باندے ډرامے لیکلے دي . په دغو ډرامو کښې المیه هم شته

---

له قند مردان ډرامه نمبر ۱۹۶۰ء ۲۲۲

او طربیه هم - سنجیده هم او مزاحیه هم - او په دغه مناسبت د حمزه په ډراموکښې د رومانی نه تر روحانی او د تاریخی شخصیاتو نه د کلی وال او بانډیځو پورې هر قسم کردارونه بیا موندے شی -

د کردارنګارئ په لړ کښې د حمزه صیب په ریډیائی ډراموکښې د ټولو نه اول د خوشحال خان خټک نوے ډرامے تذکره به بے ځایه نه وی - ددے ډرامے د نشریدو نیټه د کال ۱۹۶۳ء د اپریل د میاشتے شلمه نیټه ده-ددے ډرامے اهمیت په دے هم سیوا دے چه په دے کښې په اول ځل د خوشحال بابا غوندے ستر تاریخی او ادبی شخصیت د یو ډرامائی کردار په شکل وړاندے شوے دے - او بناغلی حمزه په دے وړه غوندے ریډیائی ډرامه کښې د ستر خوشحال د شخصیت کړه وړه په ډیر موزون او ښکلی انداز کښې د پیش کولو ذیار کړے دے - په دے لنډه غوندے ډرامه کښې خوشحال بابا یو خوا د اورنګ زیب د فوځونو او مغلو ا لے د مقابلے تیارے کوی او بل خوا د ناخلفه زوئے بهرام د بے ننګئ په چرو غوځ پښیمانه شوے دے .

د ډرامے په نورو کردارونو کښې د خان وفادار زوئے عابد خان د ذکر وړ کردار دے - او د خټکو د قبیلے د یوے بے نومه او غریبے کورنئ یو ځوانکے نذے شریف خان په حقیقت کښې ددے ډرامے هیرو دے - ځوک چه د خپل قبائلی هیرو ستر خوشحال په ننګ ځېل کوی او ښځه او کم ے بن ے ص ځمه شاته پریږدی - نخښے لیندہ واخلی او د دښمن سره په جنګ کښې په یوه موقع خوشحال بابا د دښمن د ېتے حملے نه بچ کړی او د ننګ او پښتو په

---

له مسوده د خوشحال خان خټک د حمزه خان شنواری ریډیو پاکستان پېښور

مزکه خپل سرکېږدی -

د شریف خان کودار په اګرچه څه تاریخي جواز نهٔ لري و لے دخوشحال بابا دمغلوا لے خلاف په اوږ د تاریخي جد وجهد کښے په عوامي سطح باندے د یو دا سے پښتون کردار تخلیق کول ذمونږ د ادب په تاریخ کښے په خپله یوه تاریخي کارنامه ده کومه چه دحمزه غونډے تخلیقي ذهن ترسره کړے ده -

په ډرامه کښے دخوشحال خان بابا د شخصیت سره دهغه ډرا ماټي کردار ډیر جوړښت او مناسبت خوري - دخوشحال د شخصیت وقار دبدبه - خودداري پښتني هوډ او مړنتوب او د هغهٔ علمیت ددے کردار په مکالمو کښے په ډیره موزونه پیرایه کښے ځائے کړې شوې دی او فاضل ډرامه نګار په پلاټ کښے د واقعاتو د تاریخي صحت التزام هم ترمناسبه حده ساتلے دے - جرنیل خوشحال سردارخوشحال - او د پښتو شعر او ادب سربنګر خوشحال چه دخپل ناخلفه او بے وفا ذوئے بهرام د ناکړ دوله کبله دیوغوځ ځیګرې او ملاماتي پلار په څیر راوړاند ے شي نو دهغهٔ تاثرات دا سے وي -

" بهرام هغه بهرام چه دهٔ به اوږل نو ماله به خوب
پچه لوئے شو او په بنهٔ بد پوهه شو نو ما ورته تهوله
خاني پریښوده تو افسوس چه هغه ناخلفه د مغل سره
ثابت شي نو ما به دا د لستوڼي مار ولے دومره په ناز لوبولو"

دسترخوشحال د تشخص د اظهار دپاره ډرامه ییکونکي په

---

[1] خوشحال خان خټک - ریډیو ډرامه - امیرحمزه خان شنواری
اوله ننداره - ۲۰ - ۵ - ۱۹۵۳ -

ACKU

ډیر زیات او هوښیارتیا د مکالمو په ځای ځای زیات تر د خان بابا ځینې اشعار راخستي دي - څه وخت چه اکبر خان او ظفر خان، خان بابا ته د مغلو د ښکر د یلغار په حقله خبرداری ورکوی او دا هم وائي چه اورنګزیب تر پوزې پورې راغلی دی نو د خان جواب دا وی -

" هغه ته نو دا خیال کاوه چه خوشحال ښې بوډا خوږ ه تمړی ده - خلک ته به یې واچوم - تیره به شي او هضم به شي - خو اوس ورته حال معلوم شه چه زه هغه چه .....

درست جهان مې ومغل وته خیبر کړه

ځای په ځای یې پښتانه وته تنګ دی

لا په خوب کښې په لرزه پریوځی له کښه

چه د چا تر غوږ زما د توری شرنګ دی

که په دا دوړ مې کورې هغه زه یم

چه داغ په خاطر ایښی د اورنګ دی



---

۱ خوشحال خان خټک - ریډیو ډرامه - امیر حمزه خان شنواری

دریمه ننداره

# ګمان د ایمان زیان دے

د ریډیو ډرامے په دغه ابتدائی دوره کښے امیر حمزه خان شنواری د سنجیده موضوعاتو سره سره خوا په خوا څښے خوندورے مزاحیه ډرامے هم اوليکلے او "ګمان د ایمان زیان دے" نومے ډرامه د بناغلی حمزه د دغے طرز یوه مشهوره یادګاری ډرامه ده.[1] ډرامه بے شمیره ځله د ریډیو نه نشر شوے ده. او د دے مرکزی کردار شاه مست تر نن ورځے پورے یو ژوندے او دلچسپ کردار دے.

شاه مست یو بے ډوله، ناراسه او ساده بنده وی. او د هغه ښځه ګلبدنه شپه او ورځ هغه له پیغورونه ورکوی خو د شاه مست بنده پرے خوانه ګرځی. آخر یوه ورځ د ښځے کالے د خرڅ دپاره یوسی. کالے په لس روپئ خرڅ کړی. نیمه په جوارئ بائیلی او نیمه مولوی صیب له د تعویذ شکرانه ورکړی چه کار روزګار ئے اوشی. شاه مست تعویذ بنی مټ ته واچوی او بیا د یو "صیب" دفتر ته د نوکرئ په خیال لاړشی.

دے بے تعلیمه وی او ورسره ورسره بیوقوف هم. خبرے اومیلس ئے هم فضول وی او په هره دویمه خبره ئے "ګمان د ایمان زیان دے" په خله راځی. د افسر سره د هغه د خبرو اترو حال داوی.

---

[1] دا ډرامه د نن نه څه ځلویښت کاله اګاهو لیکلے شوے وه.

"افسر - بنه ده نو ته لاړ شه .

شاه مست - چرته لاړ شم صیب - گمان دایمان زیان دے .

افسر - کور ته ...... زه مجبور یم .

شاه مست - نه صیب ! خدائے دِ تا مجبور نهٔ کړی - تهٔ خو افسر یے .

افسر - زهٔ مجبور یم - مجبور - تهٔ پوهے شوے .

شاه مست - چه تهٔ مجبور ئے نو ما نوکر کړه کنــه - گمان دایمان زیان
دے - واخله دا .

افسر - داخهٔ دی .

شاه مست - صیب ! اګټے دِ ماشومانو له راوړی دی - دسیر سیر
نه به کم نهٔ وی - او زهٔ دیر غریب سړے یم - دا واخله
او ما نوکر کړه ."

او چه شاه مست په وهلو وهلو د صیب د دفتر نه راروان شی نــو
خپله غصّه په مولوی صیب اوباسی - او مغهٔ ته وائی چه تعویــذ دِ واخله او
خپلے پیسے واپس راکړه - او د مولوی صیب سره په تکرار او بد و ردو ویـلو
باندے په شاه مست د کفر فتویٰ اوشی - مخے تور شی په خر سور شی او په
تول کلی ګیټے اوشړیږی .

دد غے نه پس دے ساده سـړی له خوګ چرس ورکړی چه دا بنار تــه
دخرڅ د پاره یوسه - او شاه مست په ناخبرئ ګیټے په بنار ګیټے په جار د
پولیس والا په وړاندے هم د چرسو دخرڅ نعرے وهی - په دغه ننداره ګیټے

---

۱ے گمان دایمان زیان دے دیـریاڅ ډرامه امیرحمزه خان شنواری .

دده پـه ساده توب بنـده له خندا هم ورشي او ژړا هم -

شاه مست :- يـه دوكانـداره !

دكاندار :- څـهٔ وائے -

شاه مست :- چرس نا خلے - ګمان دايمان زيان دے -

دكاندار :- ځـے وبـلي دي -

شاه مست :- چرس ! چرس - پـه غوړونو کښے ډيـر نقصان دے ګمان دايمان زيان دے -

دكاندار :- ځا - كومه کے جنګلي چا نوره -

چرس ته خوځ کړے - تاته او به نيسي -

شاه مست :- (خاندي) دچا آشنا بـه ے اونيسي - زما خيـل چرس دی -"

او دغه شان دچرسو دا ساده بيـوپاري شاه مست پـه ډک بازار کښے چغے وهي او پوليس والاٌ سره دچرسو حوالات ته روان کړي -

پـه دے ډرامه کښے ددے کردار ستکراري مکالمے يا تکيه کلام "ګمان د ايمان زيان دے -" زموږ پـه ډرامه کښے ديو نوی روايت ددا کيښودہ - داتکيه کلام تردے وخته پورے زموږ دمزاحيـه قسم کردارونو سره تړلے وی - پـه تيره تيره د تيـلی ويژن پـه اوږدو سلسله وارو ډرامو کښے اردو مرو يو نيم کردار سره څه مخصوص تکيه کلام تړلے وی -



# خان بهادر صاحب

دامیرحمزه خان شنواری دا ډرامه په کال ۱۹۵۹ء کښې ليکلې شوې او نشر شوې ده - او ددې زيات اهميت په دې وجه هم دې چه هم په دې پلاټ باندې تقريباً لس کاله پس بناغلی حمزه چېل ناول "نوې چپې" ليکلې دې.

ددې ډرامې مرکزی کردار "محبوبا" يوه شاعره وی . چه اصل نوم ئې خورشيد جهان وی او وفا تخلص کوی - دالور ځيانې شاعره دخان بهادر يوسف خان لور وی - او دهغې ذلمې سره دواده نه انکار کوی کوم چه ددې پلار خوښ کړې وی - دا دکور نه په پټه راوځی او دمحمدامين خان په کور کښې حند متکاره شی -

دمحمّدامين خان زوئې سليم او لور گلرخ دواړه ددې هوښيارې بنائسته او اشرافې جينئ محبوبا ډېر خيال ساتی - او محبوبا د "وفا" په نامه باندې ددوئ نه په پټه چېل نظمونه ليکی - او چاپ کوی ئې - په آخر کښې خان بهادر صيب له چېله لور په لاس ورشی هغه چېل شکست اومنی او چېله لور دهغې دخوښې ذلمي رفيق له په نکاح ورکړی -

دموضوع او پلاټ دنوې والی نه علاوه دا ډرامه دچېلو کردارونو له وجې هم دهغې زمانې په مناسبت دپښتو ډرامې په ميدان کښې يو منوې غوښ اونوې تجربه ده -

---

۱ دنوې چپې تفصيلی ذکر ددې مقالې د ناول په باب کښې راغلې دې -

# ژرنده ګرے

دا میر حمزه خان شنواري په یکلو شوو بے شمیره ریډیائي ډرامو کښې "ژرنده ګرے" یوه داسے اصلاحي ډرامه ده چه د افادیت سره سره د سامو او ښځے کودار نګارئ یوه ښکلے نمونه ده - او "ژرنده ګرے" یو داسے کودار ښکاري چه د ځغے رغونه په صوفیانه پس منظر کښے شوے ده - ژرنده ګرے چه "شیرګل" ته قصه کوي نو داهم ورته وائي چه هغه په خپله د دے قصے یو کودار دے خو "شیرګل" نه دا خبره پټه ساتي چه هغه د دغے قصے کوم یو کودار دے.

د ډرامے واقعه خو یوه عامه کلي واله واقعه ده چه یو غریب دهقان حکیم خپله لور جمیله خپل وراره نعمت ته وسپلي وي - او د کلي خان قاسم چه ے او غواړي نو هغه ترے ځکه انکار اوکړي چه د هغه په زړه داپے پښتو خبره وي. د قاسم خان د زور له مخے هغوئ بل کلي ته مخه اوکړي خو په لاره کښے په هغوئ ډزے اوشي - حکیم او د هغه وراره نعمت دواړه اونګي خو د مرګ نه بچ شي - او چه قاسم خان ته پته اولګي چه حکیم کاکا د جمال خان غوندے طاقتور خان د پناه دلاندے هم په هغه ددعوے کولو نه ډډه اوکړه نو د هغه په کودار کښے یو لوے انقلاب راشي - هغه جمیله خپله خور کړي او د خپل جائیداد د سل جریبه زمکه په هغے پسے اولیکي -

ژرنده ګرے د دے واقعے راوي هم وي او د دے ډرامے یو کودار هم - خو هغه ځان تر آخره پټ ساتي چه هغه څوک دے - ولے بیا هم د هغه د خبرو نه دا اندازه لګي چه هغه دُنیا او د دُنیا مینه پریښے ده - هغه یو درویش صفته

ACKU

انسان ښکاری - یو داسے انسان چه دچا په وړاندے دمینے تعلق ریوستن او بشپړ شکل کښے ځان ثرګندوی -

ژړندہ ګرے :- ما به دا خیال کړ نو چه په مال دولت نا شونے کار هم کیدے شی - خو ھیسه ددوو صادقو مینو جدا کول په هیڅ طریقه ممکن نهٔ دی - بلکه دریم ئے چه مینځ ته راشی سنو ځان برباد کړی - ګوره دے ژړنسے ته کنه -

شیرګل :- ژړنسے ته خو ګورم - خو مطلب ؟

ژړندہ ګرے :- مطلب دادے چه د ژړنسے دا دواړه پلونه سینه په سینه دیو بل سره ملاؤ دی لکه دوه مینن چه د وصال په حال کښے وی ........ او دا دانے ئے دریم اوګنړه چه مینځ ته ورغے او د دواړو مینو په وصال کښے ئے د خلل پیدا کولو کوشش اوکړو نو اوړه اوړه ئے بهر ته ګذار کړے -"

او د ژړنده ګری دے خبرو اوریدو نه پس په دے خبره کښے څه شک پاتے نهٔ شی چه د ژړنده ګرے بل څوک نهٔ دے قاسم خان دے -

---

له ژړنده ګرے ، حمزه شنواری ، اوومه نــداره -

# سمندرخان سمندر

د ريډيائۍ ډرامے په اوله دوره کښے چه کومو سترو او نوموړو ليکوالو د ډرامے د فن په سنږه سترګه کښے جوته برخه اخستے ده. په هغه کښے د حاجي سمندرخان سمندر د بدرشو نوم هم ډېر ځلانده دے.

د ريډيو د پاره سمندر صيب بے شمېره ډرامے ليکلي دي او د هغه ډرامو عمومي رنګ اصلاحي او کړه وړه ئے سنجيده او موضوعات او کردارونه ئے د خپل پښتني کلي وال چاپېرچل سره اړه لري. د سمندر صيب په ټولو ډېرو مشهورو ډرامو کښے داسے هم شته چه هغه په اولسي توګه خو مقبولے ډرامے دي ولے بيا هم د هغے کردارونه غېر حقيقي او تصوراتي معلومېږي لکه "د آسمان بنجارې" او "سور پېزوان".

د آسمان بنجارې کښے يو داسے سوداګر ښکاره شوے دے چه هغه د هر چا د زړهٔ ارمان او د خوښے سودا پوره کوي خو په بدل کښے ترے د اختونکي د عمر څو کالونه غواړي. په افادي او اخلاقي توګه د دے کردار او د دے ډرامے د اهميت نه انکار نهٔ شي کېدے خو د عقلي امکانيت او ادبي صداقت له خوا د اقسم له واقعات او کردارونه هيڅ جواز نهٔ لري.

په سور پېزوان کښے هم په حادثاتي او اتفاقي ډول دوه مئين په هغه وخت خودکشي کوي کله چه د جينۍ (معشوقے) د ولۍ د مېلک د زلمي کور ته راشي. او د نږدو نږدو کلو او سيد ونکي د اهلک او جينۍ په دے غلط فهمۍ کښے پاتے شي چه ګني داوادهٔ د دوۍ د خوښے او مرضۍ خلاف

دبل چا سره کېږي . حالانکه پلار ئې په خپله جوړهم د دغې دوا ړو ميئتو

ديو ځای کولو بنا کړې دی خو هغوئ ته پته نه وي او په بې خبرئ

کښې دواړه خودکشي کوي . دا قسم له نا شونکو او اتفاقي واقعاتو ته کېدې

شي چه هغه وخت ډرامه ويلی شوه - او دا د هغه وخت د اولسي ذوق

غوښتنه وه . خو د سمندر صيب په وروستو ليکلو شوو ډرامو کښې د پلاټ

او کردارو نو د ادبي او امکاني ربښتو نولئ په حقله خصوصي توجه ورکړې شوې

ده . د سمندر صيب ډرامې عموماً اصلاحي وي او د هغه کردارونه د معاشرې

د متوسطې طبقې سره تعلق لري .

"لورخور" د بناغلي سمندر د دغې اصلاحي طرز يوه مثالي نمونه ده .

د دې ډرامې محوري کردار د متوسطې درجې د خانانو د کورنئ يوه ښايسته جينئ

"غمه" وي - دواده نه مخکښې غمه د خپل پلار بنکرخان په کور کښې د خپل

يوسر مشر ورور شيرداد سره بې لچه مينه کوي - خو د هغې پلار او ورور

دواړه د پښتنو د رواج مطابق په جائيداد کښې د لورخور برخه نه مني .

غمه د نسيم غوندې خوشي او عياش سړي ته واده شي او د بنکرخان

جائيداد غونټ د شيرداد غوندې د لوچه لاسو ته پاتې شي . نسيم د ښځې

نه زيات د هغې د داج (جهيز) غرضي وي او نسيم د خپل ناولي او لالچي ذهنيت

اظهار هغه وخت کوي کله چه هغه بل واده کول غواړي او اسحٰق مولانا د غمې

وکالت کوي . نسيم مولانا ته صفا پرېکړې واټي .

" پلار[۱] په اغوستو جامو کښې را اولېږله . ما وې چه خپله

---

[۱] لورخور - سمندرخان سمندر دريمه پرده پنځمه ننداره .

ACKU

برخه ذمکه په ورکړی موږ پټ دے - ډیر کالی به ورته جوړکړی
نور سامانونه به ورسره را اولیږی - نو . . . . "

اوکله چه نسیم دګلشن ارا غونډے یوے باذرئ ښځے دودولو
اراده اوکړی او دجرګو مرکو باوجود هم هغه غټے ته اوبهٔ خوړےکړی - اوطلاق
ورکړی نو دغټے سره دغه لار پاتے شی چه دچل وړور شیرداد خان کورته
راشی - شیرداد په ناخوالئ ددنیا د شرم نه خو رله دسر سیورے ورکړی.
و لے دهغهٔ واشه ښځه ذرینه درواینتی ورندارېانو په شان دخاوند
په کور کښے داسے دور وجود نهٔ شی زغملے - شیرداد هم ددغ خُلَه وړے
اوجنګیالئ ښځے په وړاندے ځان بے وسه او مجبورګنړی - دښځے په
وړاندے دهغه سره د لاچارے خور هـسـړو خـه اهمیت نهٔ وی - اودغه شان
غټه دپلار دورور ) دکورنه هم بے نوا روانه شی -

(او دلته یو ځل بیا دشهید ے سکینے دواقعاتو تکرارکیږی)

غټه دمایوسئ په حالت کښے سیند ته توپ کول غواړی - خو
سمندرصیب دچل کردار دپاره دشهیدے سکینے په شان انجام مناسب نهٔ ګنړی
(خودکشی کول هسے هم دریدیو د پالیسئ خلاف عمل وو )

نو ځکه دعبدالله په شکل کښے یو فرښته صفته ځلمے دغټے
غونډے بنا ئسته پیغله دمرګ نه بچ کړی اونکاح پرے اوتړی -

ددے ډرامے دپاره داانجام موزون انجام وو خو ددے نه پس هم
دډرامه لیکونکے دشیرداد اونسیم دکردارونو سره دشاعرانه انصاف په خیال
هغوئ دواړه په یو وخت دخپلو خپلو ښځو دلاسه په ذهرو وژنی او

عجیبه خبره داده چه دواړه هم په یو وخت اسپتال ته دارسی اومری - دغه عجیبه او د معمول نه خلاف واقعات او پیښې ددې بناشته او مقصدی ډرامې وقعت کموی -

وې بیا هم د غټې کردار ذموږ په معاشره کښې د لورخور د مجبورو او ذیاتو داستان په ډیر پیچلی انداز کښې وړاندې کوی -

# داوُچے خان

د ریډیائی ډرامې په تاریخ کښې چه " د اوچے خان " نومے ډرامې ته کوم عوامی شهرت نصیب شوے دے - شایدکه د پښتو بله ډرامه هغه بیامومی - عجیبه خبره داده چه ددے ډرامے دیکونکے بیګم - اے داوُد په نوم بله یوه د ذکر وړه ډرامه هم نهٔ ده نشر شوے - دا بیله خبره ده چه د بیګم جیسے نومورے ښځن بناغلے داوُدشاه برق د پیښور دیډیوسټیشن په ابتدا کښې ځنې ډرامے هم لیکلے وے او ددے سټیشن په مشهورو صداکارانو کښې هم د هغهٔ نامه شامله ده -

ددے مقالے د تحیرنے په لړ کښې د پیښور د سټیشن د موجوده وخت د ځنو ثقه او ذمه وارو افسرانو (سینئر پروډیوسرانو) په حواله دامعلومات هم ترګوتو شو چه دا ډرامه په حقیقت کښې بناغلی داوُدشاه برق لیکلے ده خو د هغهٔ د مرګ نه پس د هغهٔ د بی بی بیګم اے داوُدشاه په نامه اوترے شوه -

داوچے خان په مزاجیه رنګ کښے د قدرت الله خان د ډرونه نفسیاتی المیه ده - قدرت الله خان یو داسے کردار دی چه هغه وی خو غریب وے دخانانو دکورنئ سره د تعلق په بناء دنیکونو د زمانے زاړهٔ تهٔقو نه شماری. په خوارئ مزدورئ ورته څان بدی ښکاری - او د هغهٔ ښځه ګلبدن شپه او ورځ هغهٔ ته نصیحتونه کوی خو د قدرت الله خان په سر د نیکونو د زمانے د لرغونے خانئ نشه داسے سوره وی چه د هغهٔ نه یو بے حسه او بے بوده شے جوړ کړی -

د قدرت الله د ډرونه المیه داوی چه سپوره ئے تیریږی نه او د څه پورے ئے درک نهٔ لګی - داوچے خان د بناؤسته فطری او بے ساخته ډراماځ او مزاحیه پیښو له کبله یوه عظیمه کامیډی ده - چه ساده او بے ساخته مکالموئے د خوشرنګه رقیستی غمو په شان په رونق او ښکلا کښے نوره هم اضافه کړے ده -

د دے یو نندارے نه د قدرت الله خان د کردار او د اوچے دخان د فنی او معنوی ښکلا اندازه ډیره ښهٔ لګیدے شی -

"قدرت الله[1] :- داوبے سپوره دوړئ - تشو پیازو سره به ئے خورم -

ګلبدن :- نو نور به ئے څهٔ سره خورے -

قدرت الله :- چنګرے - پیتی - غوښه نشته - کم بختے! غوښه به د چنګرے وه - شوملے به د پیدا کړے وے .

---

[1] د داوچے خان بیګم اسے داؤد اوله ننداره

ګلبدن :- ولے تا راته غوښه راوړے وه څه - اوغواښينه
راته لنګه ولاړه ده څه چه ما ستهٔ شوملے درته کيږدم،
په خود شه د نوابانو خبرے مهٔ کوه -

قدرت الله :- (په قهر) نوابان د سر اوخوری - نواب څهٔوی.
خبره دخان کوه - موږ ه خانان يو -"

اوبيا چه دښځې په وينا اوخبرو او دحالاتو د مجبورئ
له کبله قدرت الله د نوکرئ په خيال رحيم ګل له ورشی او رحيم ګل ورته
سترې مشی واثئ -

رحيم ګل :- او ! قدرت الله - راځه کښينه چيلم اوڅښکه.

قدرت الله :- رحيم ګله ! که خفه کيږے نه نو يوه خبره درته کوم -

رحيم ګل :- وايه ولے به خفه کيږم !

قدرت الله :- خبره داده چه دچا نوم نيمګړے مهٔ اخله. داګناه ده چه خبره کوے - لاچاته اوازکوے نو پوره نوم ئے اخله - اورے.

رحيم ګل :- زهٔ چاته نيمګړے نوم نهٔ اخلم -

قدرت الله :- ماته د اوس نيمګړے نوم وا نهٔ خستو .

رحيم ګل :- ما څه اوويل -

قدرت الله :- "قدرت الله" د اوويل کنه.

---

له داوچے خان بيګم اے داؤد دوتمه نندارہ

رحیم گل :- نوخه به ے ویـُـل ۔

قدرت الله :- "قـدرت الله خان "

[1] اوخه وخت چه داوچے خان رحیم گل ( د بجلو لائن مین ) ته دخپلے نوکرئ

دپاره خواست کوی نو هغه هم دخانئ په شان کښے ۔

" میاشت[2] پس به امید دے چه مشر ورورے دِ بشکته

نه درے ذره روپئی دا اولیږی بے غمه درے تهانګے به پرے واخلم.

....... دیو ے میاشتے دوؤ خبره ده ۔ بیا چه زما درتهانګے

چلیږی نو زهٔ پردئ مزدورئ لا نوکرئ څه کوم ۔ چه کله دے

که خېری کار پیښیږی ۔ لا چرته ځے دا ځے ۔ نو تها نګه به درته

ولاړه وی ۔"

قدرت الله له به ے ورځے په ناخوالئ دبجلئ په محکمه کښے درحیم گل

سره مزدورئ ته غاړه کیږدی ۔ خو په دغه ورځ هغه له چرته دغورزو پرزو نه

اته روپئ په لاس ورشی او هغه ( دیو ے روپئ ورځ په حساب دهغه زما نے په

مناسب ) داتو ورځو خانی بیا موی ۔ او کلیدنه ئے دِیږ پوهوی خو د قدرت الله د

ژوند فلسفه داوی ۔

" چه کومه ورځ تیره شوه په هغے دخدا ئے شکر اوباسه ۔ دصبا

غم به هغه په خپله کوی ۔"

زرهٔ سواندے رحیم گل په قدرت الله پسے سړ وختی داشی چه د

---

[1] داوچے خان بیګم اے داؤد دوئمه نسـداره

[2] داوچے خان بیګم اے داؤر دریمه نسـداره

خان سره ئے کار ته روان کړی خو د قدرت الله اوکړ نوروی او دهغهٔ لهجه بدله وی -

" ساده خو په دے ئے چه ته دومره نهٔ پوهیږے چه خانان اوخان خیل هم چرته پردئ مزدوری کوی - ماخو درسره هسے توقے کولے -"

خو د قدرت الله خان دا تو روپو د اتو ورځو خانی چه ختمه شی نوهغه بیا د رحیم ګل لمن راټینګه کړی اوهغهٔ ته دکار دپاره زاری شوروکړی خو د هغهٔ په زارئ کښے هم یو شان وی او دهغهٔ په عاجزئ کښے هم یوه دبدبه پرته وی -

رحیم ګل[2] :- قدرت الله خانه - په دے دنیا کښے ډیرکسان دی چه پرون بادشاهان وو اونن په پردو ملکونو کښے دبے وطنو په شان ژوند تیروی - نهٔ ئے څوک پیژنی او نهٔ ئے څوک پښتنه کوی ."

قدرت الله :- هو ورور ه ! دښتیا د ا ووئیل - هرو دا دے موږ ته اوګوره کنه - دنیکهٔ ئے څومره دوړ وو او زما حال پخپله وینے -"

او رحیم ګل چه قدرت الله خان سره روان کړی او مغه بره د بجلئ ....... - ستنے ته اوختږی او دهٔ ورته اسدرپایه بیوے وی نو له درایه ئے دځیل کور کوڅے بیلدکسان تر نظره شی - دغه وخت داوچے خان

---

[1] داوچے خان بیګم اے داؤد خلو رمه نسدارہ

[2] " " " پنځمه نسداره

ته بیا غیرت اودریږی او هغه رحیم گل ته وائی چې۔

"زړ[1] راکوزیږه ۔ دغه کسان دے خوا راروان دی۔ او
که هغوی زهٔ په دے کار اولیدم نو بیا به سے لاړه شی ۔"

او دغه شان قدرت الله د خپل کردار د هغه نفسیاتی خول سنه
رابهر نهٔ شی کوم چه د خاستیٔ خیال د هغه نه چاپیره کړے وی ۔

---

[1] د اوچے خان بیگم اے داؤد آخری نسـخه اره

# دسقراط مرګ

دسقراط دمرګ واقعه دعلم او ادب په تاریخ کښې یوه داسې دردناکه او اثرناکه واقعه ده چه د قدیم یونان دغه روشن خیاله مفکر او فیلسوف ته واهی ژوند وربخښلې دې - او د "جام جم" درنګینې اصطلاح په شان دسقراط دزهرو د پیالئ تریخ معنویت هم دېرو راسې زمونږ دادب دخصوصاً د ختیزې شاعرئ) دترقي پسند فکر دیو علامت په دود وراوان دې -

ښاغلي سید رسول رسا په تیرو ځلونښتو کالو کښې په مختلفو موضوعاتو باندې بې شمیره دیډیائی دراسې لیکلې دي او دسقراط دمرګ دغه واقعه ئې هم په ډیر اثرناک انداز کښې د ریډیائی ډرامې په شکل کښې وړاندې کړې ده - او ددغه نوموړی عالم او حق ګوئیه فلسفي سپیځلی تشخص ئې دیو ډرامائی کردار په دول دنیا ته مخامخ کړې دې - او سقراط مونږ ته یو داسې ستر انسان ښکاره شي چاچه چیله هستي او ځل تشخص دانساني نوعي د ښیګړې او اجتماعي فائدې په تصور کښې ورک کړې وي - او دغه د ژوند مرام دنیکئ ښکلا و صداقت لټون وي -

دډرامې په عین شور کښې چه سقراط دیو شپونکي په ځیر خپلو ګډو بزو سره لګیا وي - نو دغې خبرو ته هم دغه داخلاص همدردئ انصاف پروروئ جذبات راځاځي -

سقراط[1] :- بس بچے! بس بچے - شپول ته دننه شئ.
دنیا دشر مخانو دکه ده لیوان به مو اوخوری."
(کور کښې ښځې سره)

بي بي! "تن ے ګڼ ے مې ے نهٔ کړے شوے - اوړ ے پاتے شوے
درسته شپه به خوب نهٔ راځي."

سقراط یو درویش صفته بنده وی او د هغهٔ ښځه هغهٔ
له دا قسم پیغورونه ورکوی.

"ته[2] خو په نیک ژوند پسے سودائی شوے - بس یله
خبره د نشته خو نیکی ده - حق دے او ته ئے ....... دخلقو
ښځے او زوزاد دسرو سپینو سره لوبے کوی او زما دا سے سپیرهٔ
برخه ده چه مننګ ے تر غاړه شوے دے - دشتونه په نشت
خوشحاله دے او دویش نه په تالان."

خود سقراط په نزد د ژوند مقصد سرهٔ او سپین ټولول نهٔ
وی - هغه ژوند د پوهے، ښیګړے او عبادت په معنو کښے اخلی او بیا چه
ښځه هغه یو اځے پریږدی نو هغه دګڼړو بزو د پالنے او خدمت نه د ښیا دمو
خدمت ته را واوړی او د ایتهنز په بنار کښے دیو داسے معلم او مفکر په
شکل کښے دحق او نیکئ فلسفه او درس دنیا ته وړاندے کوی چه هغه دوخت
او زمانے ددوایاتو او دخلقو د عقیدو او تصوراتو خلاف یو بغاوت اوګڼړلے
شی - او چه څهٔ وخت دځلو دوبنانه خیالاتو حق ګوئی او بے باکئ په صله

---

[1] رنګا رنګ ګلونه، سید رسول رسا ص ۷

کښې دهغهٔ خلاف مقدمه جوړه شی او دیونان ستر سیاستدان اناطیس، نوموړی شاعر میلاطی او مشهور واعظ لائیکن، په ځېل ځېل انداز او ځېله ځېله پیرایه کښې په هغه باندې تکونه کوی او دهغهٔ خلاف دقتل فتوے ورکړے شی - نو داعظیم دانشور او میړنے انسان په ډیر ساده خو مدلل انداز کښے هغے ټولو له داجواب ورکوی .

" ما ډیرو فلسفیانو ، خطیبانو ، ناصحانو او سیاستدانانو سره بحثونه کړی دی - په دے بحثونو کښے ماته دامعلومه شوه چه دوئ په هیڅ نهٔ پوهیږی او په دے هم نهٔ پوهیږی چه دوئ په هیڅ نهٔ پوهیږی او ځېله لږه پوهه او علم ورته ډیر ښکاری - البته دکو موخلقو چه د پوهے شهرت نهٔ وی په هغوکښے ډیر پوهه خلق هم لیدلی دی - داد فقیرانو او قلندرانو طبقه ده - دانائ د عرفان ده - د توحید ده -"[1]

او د سقراط د کردار عظمت او لوړتیا هغه وخت انتها ته اورسی څه وخت چه دیونان لوئے عدالت سقراط د ځېلو افکارو، حق گوئی او بے باکئ په مله کښے په زندان کښے واچوی او د مرگ بناء ئے اوتړلے شی- نو دهغهٔ هوښیار او وفادار شاګرد په څه چل هغهٔ ته ځان رااورسوی او سقراط ته د جیل نه د تیښتې دپاره وائ خو هغه دے ته غاړه نهٔ ایږدی ځکه چه -

" دځوم حکومت د قانون لاندے چه ماتر اوسه پورے په

---

[1] رنگا رنگ گلونه، سید رسول رسا ص ۱۹

[2] ایضاً ص ۲۸

منزه دآرام ژوند تیرولو اوس چه هغه قانون ما ته د مرگ سزا

راکړه نو دا ماته اخلاق نهٔ ښکاري چه دا سزا زهٔ په رونړتدی

قبوله نهٔ کړم او ورته لکه د غلو په شان ځان پټ کړم - دا خبره

زما ضمیر نهٔ مني - دا کار سقراط نهٔ شي کولے زهٔ په بل وطن کښے

د ژوند نه په خپل وطن کښے مرگ له ترجیح ورکوم "

او د غه رنگ سقراط په مسکه تندره د زهرو هغه پیاله نوش

کړې کومه چه د وخت مصلحتونو د هغهٔ د پاره جوړه کړے وی - حو د حق-صداقت

پوهے او عرفان په میوادونو کښے هغه تر عمره عمره ځان له ژوند او

نوم اوګټي -



# تیلی ویژن ډرامه کښې

# کردارنګاري

پهٔ دے خبره کښې خو څهٔ شک نشته چه د ډرامے کردارونه پهٔ سټیج یا (پرده) باندے د عمل - حرکاتو - مکالمو او لهجو له رویه پېژندے شي او د افسانے او ناول د روایت خلاف د ډرامے کردارونه د خپلے پېژندګلو د پاره د لیکونکي پهٔ اوږه لاس اچولے نهٔ کرځي - - - - بلکه پهٔ خپلو پښو ولاړ وي - د ډرامے کردارونه خپل باطن د خپلو افعالو (پهٔ وسیله) پهٔ خپله ښکاره کوي -

د افسانوي او ډراماني ادب ترمینځهٔ د کردارنګارۍ د دغے فرق ته بنا غلي اګسټن تهامس ډیره ښکلے او دلچسپه اشاره کړے ده - د دغهٔ پهٔ خیال

" د ناول او ډرامے ترمینځهٔ غوښن فرق د "وو" (Was)

او "دے" (is) فرق دے -"

ناول لیکونکے د تیرو شوؤ واقعاتو او کسانو تذکره کوي او پهٔ داسے شکل کښې ښکاره چه دغه واقعات یا دغه کسان وو - خو پهٔ ډرامه کښې مونږ دغه واقعات او خلق پهٔ موجود شکل کښې پهٔ خپلو سترګو وینو او ګورو -

هم له دغې کبله د ډرامې کردارونه د پلاټ نه په ځپله د عمل په ذريعه سر را اوباسي او د کتونکو او لوستونکو سره د ليکونکي د وينا او مرستې نه بغير ځپل تعارف او پېژندګلو په ځپله کوي.

د ډراماني عمل له خوا د ډرامې د پاره سټيج يو لازمي ځيز دے. خو د پښتو ډرامې په لړ کښې د سټيج د نشت والي له کبله داکمے په موجوده دور کښې تر ډېره حده د ټيلي ويژن پردے پوره کړے دے. او په دے وينا کښې به مبالغه نهٔ وي چه ټيلي ويژن د ځپلو مخصوصو سهولتونو په وسيله د سټيج نه هم په زيات غوريز، ښيښي، او پېځلي فني شکل کښې د ډرامې د پرمخ تګ او ارتقاء د پاره لارے هوارے کړي دي.

په تېره تېره د اوږدو سلسله واره ډرامو په وجه زمونږ په ډرامه کښې د کردارنګارئ ارخ ته زياته توجه ورکړے شوے ده. ټي وي ډرامه هم د موضوعاتو او واقعاتو له خوا او هم د کردارنګارئ له رويه د روان ژوند او ژوندو حقيقتونو سره ډېره خوا په خوا روانه ده. په دے ډرامو کښې په اکثرو کښې زمونږ د ځپل چاپېرچل عمومي پېښې او واقعات او ليدلي کتلي کردارونه په ډېر اثرناک انداز کښې د پېښې کولو ذيارونه شوي دي. او د ټولو نه زيات د قدر وړ شے زمونږ په ټيلي ويژن ډرامه کښې د عصري شعور د پوهے او اګاهئ دے. په پاکستان کښې د ټيلي ويژن ډرامے د تذکرے په لړ کښې د بنا علي آغا ناصر د يوے مقالے دا ټوټه د پام او توجه جوګه ده.

"[1] یہ ڈرامے ملک کے مختلف علاقوں میں بسنے والے ادیب اور ڈرامہ نگار

---

[1] ادبی زاویے ۔ اکادمی ادبیات پاکستان ص ۱۱۳

لکھتے ہیں - اور موضوع کے اعتبار سے ان میں تنوع اور حقیقت پسندی پائی
جاتی ہے - ان ڈراموں میں ہمیں اپنے معاشرے اور اپنی زندگی کے مسائل بھی نظر
آتے ہیں اور ان مسائل کے حل کی طرف کہیں کہیں اشارے بھی پائے جاتے ہیں
---- ان ڈراموں میں ہمارے نفسیاتی الجھنیں، اجتماعی مسائل، خاندانی رشتے
اخلاقی اقدار، ثقافتی رویے، ملکی، قومی اور ملی مسائل کو موضوع بنایا
جاتا ہے -"

د ټیلي ویژن دپاره چه په پښتو کښے کوم کسانو ډرامے لیکلی
دی په هغو کښے زیاته برخه د موجوده دور د نسبتاً زلمو لیکونکو ده او دغو لیکونکو
د نوی وخت د غوښتنو او د ټي وی ډرامے د مخصوص تکنیک په دنیا کښے په اولس
کښے مقبولے او معیاری اوږدے سلسله وارے ډرامے او لیکلے - د دغو ډرامو
کردارونه د چل چاپیر چل نه اخستی او د چل اولسی ژوند نه چاپیر شوی
کردارونه دی - او کومے کمئ چه تر دغه وخته د کردار نګاری په توګه زمونږ
په ریډیائی او کتابی قسم ډرامو کښے محسوسیده هغه تر ډیره حده په ټي وی
ډرامه کښے د پوره کولو زیاد شوے دے -

د ابتدائی دورے د ټي وی ډرامے په کمزورو باندے د ریډیائی
طرز د مکالمه بازئ او فلمی رنګ د حادثاتو او اتفاقاتو سیورے سورېنکاری
خو د وخت د تیریدو سره د دغه قسم خامیانو د لرے کولو خیال او ساتلے
شو -

هسے خو د پښتو اولنئ ډرامائی سلسله د بناغلی سید رسول رسا په ناول

"خودکشی" پاشے بنا شوے ډرامه " ورکے لارے" وه چه د ټي وي د پر دے دپاره ورله ډرامائي تشکیل محمد اعظم اعظم ورکړے وو خو د موثرے کردارنګارۍ له رویه اولنۍ طبعزاده ډرامه "روښانه تیرے" ګڼلے شي.

روښانه تیرے دیو چالاک، چل ولي او موقع پرست بنده غلامي د ژوند قصّه ده خو په دے ډرامه کښے د غلامي د کردار په حواله بے شمیره نور داسے کردارونه هم مخے له راشي چه دهغوئ څهرے نور څهٔ وائي او لهجے بل څهٔ. د مخونو نقشے ئے یو څه ښائي او د زړونو آئینے ئے بل څه. او دوغے کردارونو منافقت او دوه پړیقے روئے دهغو د زړونو او مخونو تر مینځه فاصلے او مزلونه اوږ دوی. او هغه روښانه محفلونه کوموته چه له ورایه سترګے برېښي. په حقیقت کښے دبے ارزئ او ناامیدئ په تیرو کښے ډوب پراتهٔ وي.

د روښانه تیرے په کردارونو کښے څنے ښه هم شته او دغه وارهٔ ښهٔ او بد د غلامي د کردار نه چاپیره چورلي. غلامے دکلي یو لوچه سرے خو چالاک او سیانړه جوارګر وي. هغه موقع شناس هم وي او موقع پرست هم. او د اجمل خان غوندے ساده باده سړے په ډیر چل او هنر دبنار د جوارګرو ځایونو ته د تللو نه منع کوي او په کلي کښے ورته په چمله ډیره کښے د جوارئ پراچوي او د خپلو خوږو پستو خبرو په دام کښے دغه د سرو زرو مرغئ راانښلوي.

روښانه تیرے دښپارسو تهوکونو ډرامه ده او د غلامي کردار داول نه تر آخره په دے ډرامه باندے خور دے. هغه د ډرامے په اوله پرده کښے د خپل فطرت نه پرده پورته کوي او خپله پیژندګلي زموږ سره کوئي.

اجمل خان چه په ښار کښے د "بخش" په ځائے کښے جواری بائیلي او

غلاے ورپسے پہ کلی کښے دچلو پسو دغوښتلو پہ غرض کورتہ ورشی نو ځہ پہ خوبرہ او پستہ لهجه کښے چل ښکارہ رانیسی ۔

"غلاے[1] !  دا جواری موږ ہم کوؤ خو دا کارہ خراب کارہ دے ۔ ستاسو دجاے سرہ نۂ جوړیږی ۔ کہ ځان ترے صبروے شئ نو ښہ بہ وی ۔"

اوچہ اجمل خان دغلاے پہ دے خبرہ اوخاندی نو غلاے دچل مقصد خبرہ داسے پہ مخہ بیائی ۔

"غلاے ۔ چہ صبر یږے نۂ شے خان نو بیا دمایو سوال بہ منے ۔

اجمل خان :۔ څۂ سوال ۔

غلاے :۔ شغل دِکوہ خو ښارونو ماروتو تہ بہ ورپسے نۂ ځے ۔

اجمل خان :۔ ولے پہ ښار کښے څۂ چل دے ۔

غلاے :۔ هلتہ ټول چل چل دے ۔ مغوئی دیں سیانړکان دی ۔ بخشی زمایار دے ۔ دیسں خیال ے ساتی ۔ خبرہ ے نُے چرے غوږ زوے نۂ دہ ۔ خو زما پہ مغه ہم شک راغلے دے ۔

اجمل خان :۔ نو بیا !

غلاے :۔ زما پہ ځاے کښے ہم کلہ ناکلہ ټرکری کیږی ۔

---

[1] روښانه تپرے ، محمد اعظم اعظم
ټوک ۱ نښداره ۵

ACKU

اودا سے څو په ځوبیه دغفورخان دِ غونډے
کسان هم پیښه کوی -که خا مخا دشغل ته
زړهٔ کیږی اودا سے ستا دجوړ کسان راغونډیږی
نو ذهٔ به دد پسے خبر رالیږم ـ"

دغه شان غلاے دجوارئ په پړ کښے دځپلے تمکنئ اوچالاکئ په چالونو دومره حد ته اورسی چه داجمل خان دجائیداد دنیمے برخے مالک شی - او باقی نیمه هغه داجمل خان دمرګ نه پس ددروغو په کاغذ په ځان پسے اوخیژوی - اوپه دے کار کښے هغهٔ ته داجمل خان دیو تربور سیفوری او دکلی دسترمخورین اواثرناک شخصیت باچاصیب مرسته او تائید حاصل وی ـ

په دے ډرامه کښے دباچاصیب کوداریو دتنازع کردار ګرځیدلے شی - باچا صیب یو داسے مشر وی چه دهغهٔ دذات سره دکلی او علاقے عام خلق ډیر عقیدت لری - خو په اصلیت کښے هغه یو لوئے دغله انسان وی اود هغه خاص سړے اوخلیفه عبدالباری دهغه دناپاکو ارادو اوناوړو چارو د پوره کولو دپاره لوے لوے لارے ګوډرے لټوی ـ

په ظاهره دادواړه کردارونه دطنز ومزاح په رنګ کښے ډوب ډیر خوندور کردارونو معلومیږی - په اولسی توګه هم دټیلی ویژن ناظرینو دحضرت جی او عبدالباری کردارونه ډیر خوښ کړی اوستائیلی دی ـ خو سره دځپلے دلچسپئ کشش اورنګینئ په دوبنانه تیرے کښے دباچا صیب اوعبدالباری دکردارونو نه څهٔ قدرے دتصنع اوتکلف دنګونه راڅاځی او شاید چه په دے لړ کښے لیکونکی دفتی غوښتنو نه زیات دعوامی ذوق اواولسی خوښے دتسکین خیال ساتی ـ

او د اجمل خان د مرګ نه پس چه غلاے په څېله قومه کښې د هغهٔ

د جائېداد د څېلولو په غرض په باچا صیب باندے د تهکئ کا غند پیکل غواړی

نو باچا صیب هم د پیسو په لالچ کښې د هغه غاړے ته ورخوئېږی خو د هغې

نه مخکښې سودا داسے کرموی ۔

"باچا صیب قصّه خونکاری ډیره ګرانه !

خان (غلاے) سره د څېلو پیسو هیڅ پیکلے ثبوت

نشته ۔ مدعی شته خو نهٔ مدعا علیه شته نهٔ ګواه ۔

عبدالباری :- صاحبه که قصه ډیره ګرانه دهٔ ۔ ولے تاسو ته

اسانه دهٔ ۔ کوم کار چه مشکل شی هم ستاسو د لاسه

حل شی ۔

باچا صیب :- زمونږ یار دے ۔ خو دروغ مونږ مرګز نهٔ

شو ویلے ۔

عبدالباری :- دروغ ! توبه توبه ۔ دروغ به د دوئ په

ژبه دروغ وی ۔ چه ستاسو مبارکے خُلے له راشی

نو دروغ به دروغ څنګه پاتے شی بیا خو دروغ هم

رښتیا شی ۔"

د باچا صیب د متنازعه شخصیت نه علاوه د دروښانه تیرے غونډے

په کامیابه او معیاری ډرامائ سلسله کښې د ګوتے نیولو یو بل ځائے هم کیدے

شی او هغه د کردار نه زیات د واقعاتو د عمل او پلاټ سره اړه لری ۔

---

ے روښانه تیرے ۔ محمد اعظم تهوک ۳ ننداره ۲

داجمل خان په جائيداد چه غلاٸے دباچا صيب او سيفورى دوئ په سازش قبضه اوکړى نو دمغهٔ کوسن ره بنځه دخپل ماشوم څوټے جمال سره خپل کلے پرېږدى او غلاٸے هم په بنار کښے دغلام محمدخان په نوم ژوند تېروى نو يو عجيبه اتفاق دا اوشى چه څهٔ موده پس چه جمال ذيعے شى نو هم دغلام محمد خان په کور کښے (په ناپيژندګلو) دډرائيور په حيث نوکر شى - داقسم له ډراماٸى اتفاقات او پيښے په فلمى قيصو کښے څه ځاٸے لرى - خو دامروزه ژوند او عام حقيقت نه لږ شان بيرته بنکارى -

نو دکردارونو په لړ کښے د روښانه تېرے مصنف د ذيات فکر او توجه نه کار اخستے دے - او په دے حقله ډېر کم تيروتے دے - دبخت مير اتى وال او بدوکى نه واخله د سيفورى پورے او دعبدالبارى باچا صيب، جمال او ياسمين نه د غلاٸى پورے ټول کردارونه په خپل خپل ځاٸے د عمل لب ولهجے ـ کړو وړو ـ او اولسى دويو په مناسبت موزون او تراشلى کردارونه بنکارى -(سيوا دهغے خامو نه کومو ته چه وړاندے اشاره شوے ده)

خو دکردارونو په دے غټ جونيق کښے د غلاٸى کردار له ورايه نه ډير بنکاره بريښى - دايو منفرد او مکمل کردار دے - او په ټوله ډرامه کښے د شورو نه تر خاتمے پورے په بشپړ ارتقاٸى شکل کښے موجود دے - او داسے معلوميږى چه د ډرامے نور ټول کردارونه هم دهغے يو محور سره چاپيره چورلى -

د غلاٸى کردار په مختلفو ادوارو او حالاتو دا تيريږى - او د حالاتو او واقعاتو دبدلون سره پلتے خورى او د ژوند دخوښتنو او مصلحتونو په سمى ځان اړوى راړوى - خو په بنيادى ډول دهغهٔ د فطرت مکر

او عیاری په چل ځانځ ولاړ وی -

په شوروکښے غلاے یو داسے لوڅه جوارګروی چه په چله چالاکئ په چله ورانه ویجاړه دیره کښے پرے واچوی او د "سلیمو" غونډے تکمار او سیفوری غونډے بدمعاش په برکت دمورئ خاوند شی - او چه د اجمل خان غونډے ساده کانو سفید پوشو خانانو کوتے اوتروړی او دځه نه ځه جائیداد مالک هم شی نو د غلاړ نه غلاے خان شی - او غلاے خان چه ځهٔ وخت په ځان پوهه شی چه د اجمل خان تربورانو او د کلی د خانانو کورنئ اوس هغه په نظر کښے اختے دے او باچا صیب هم هغهٔ ته د جوارئ دیرے په لړ کښے د امکانی خطرو په حقله خبردارے ورکړی نو غلاے د جوارئ کاروبار بندولو ته غاړه کیږدی ځکه چه هغه په هر کار کښے د جذباتو نه زیات د عقل نه کار اخلی - او د هغهٔ سر پیچ ملاتړ سیفورے چه په دے خبره احتجاج اوکړی نو غلاے ورته دیرے په سره سینه او چل هنر خپله رائے ځرګندوی .

"غلاے :- بنه به داوی چه د ځه مودے د پاره جواری بیخی بنده کړو - د دنیا خیال به هم لږ بدل شی او بیا بنهٔ درته پته ده چه په دے کارونو چیادارہ سرے بنهٔ نهٔ ښکاری - د خپلے بے عزتئ راسره ډیره ویره ده .

سیفورے :- د بے عزتئ ؟ اول خو داشے په مینځ کښے

---

له روبنانه تیرے - محمد اعظم اعظم ، توک له تند اره ا

نهٔ وو خونهٔ پوهیږم چه دا اوس درسره دومره
دعزت خیال څنګه پیدا شو ۔ عزت جوړ دچو نے
دے دیوالونو ته وائی (دغلامی دحجرے نوی
عمارت ته اشاره کوی ۔) دحیثیت خاوند شوے کنه!

غلامے :۔ دحیثیت خبره نهٔ ده سیفورخانه!
دا دوخت وخت خبرے دی ۔"

او هم دغه دوخت شعور او دموقع شناسئ خصلت دغلامی
نه غلامے خان جوړ کړی ۔ هغه چه څه وخت په ځان پوهه شی چه په
کلی کښے دهغهٔ بنیادونه ډیر مضبوط نهٔ دی او دهغهٔ ددروغو دخانئ آبادے
ایله په بهانه دے نو هغه بنارته کډه یوسی او دجوارئ په ځائے په
سفید پوشئ کښے "توربیوپار" شورو کړی او سمګلنګ ته ګوتے واچوی.
بے لحه اسباب او ډیسو پریوانی دهغهٔ دډوسند طریقے ۔ شان او مرتبه
هر څه بدل کړی ۔ او یو وخت داسے راشی چه هغه خان غلام محمد خان
شی او دبنار داوچتے سوسائټئ یو اهم غړے شی ۔ خو ددے هر څه باوجود
دهغهٔ دکمترئ احساس تر آخره پورے دهغهٔ نه جدا کیږی نه ۔ دهغهٔ
تعلیم یافته او نیک خصلته لور یاسمین چه دخپلے کمرے صفائی کوی نو غلام محمد خان
ته دا خبره دخپل شان نه پریوتے بنکاره شی او یاسمین ته په دے انداز کښے
مخاطب کیږی ۔

" دکوم کار دپاره چه کوم لاسونه پیدا شوے وی هغه به
بنه بنکاری آخر ددے کور نوکران به څهٔ کوی ۔"

دخپل ظاهري شان او پوزیشن ساتلو په خیال چه غلام محمد خان دکوم ناجائزه کاروبار اسره اخلي - هم هغه کاروبار چه پلټه اوخوري نو هغه د کلي جائیداد ته پامته داره شي او هغه سیفورے کوم چه په کلي کښے دده دمزکے په سرمزے کوي دۀ ته رابرسنه شي او په باچا صیب چه هم چنړه نادے بند شي نو د غلام محمد خان نه په شا شي او په بنار کښے چه د حامد علي غونده لباسي دوستان هم په دے پوهه شي چه دخان صیب اوس تش نوم پاتے دے او هغوئ هم ترے نه اوکښیږي نو دغه وخت غلام محمد خان ذړۀ ماتے شي او د هغهٔ دسترګو په وړاندے هغه نور غلامے اودریږي کوم چه ډیره موده مخکښے هغه په کلي کښے پریښے وو -

غلام محمد خان سره تر آخره پورے دا احساس هم مګرے وي چه د کلي دخانانو په ژبه هغه اول هم غلامے وو او اوس هم غلامے دے او په کلي کښے ګذران هغه ته په نفسیاتي توګه ډیر ګران ښکاري - خو په دے حالاتو کښے دوباره کلي ته واپسي اوس د هغه مجبوري وي ځکه چه بے دکلي دمزکے نه اوس د هغهٔ بله هیڅ اسره پاتے نهٔ وي - خو دغه مزکه هم د تنازعے مزکه وي او د هغے دتهګئ دکاغذ راز هم باچا صیب ته معلوم وي او هم سیفوري ته - او سیفورے په دے موقع دخپلو مفادو په خیال د دروغو د دغے کاغذ اصلیت ښکاره کول غواړي -

غلامے د سرنه تر آخره د یو تجارتي ذهنیت سړے وي - هغه په بنیادي توګه یو جوارګر وي او په آخري داؤ باندے د ژوند ټوله موړي لګول غواړي او ځهٔ وخت چه سیفورے دخپلو تربورانو ( دکلي دخانانو ) په وړاندے داجمل خان په جائیداد د غلامي د دروغو د قبضے حقیقت په ډاګه کړي نو په دغه

وخت هم غلامے حوصله نهٔ بائیلی په باچا صیب پسے لارشی هغه د باچا صیب کمزورے رګ راتینګ کړی ـ دوئ دواړه دیویل په غلا پوهه وی او د غلام محمد دا مکالمه د هغهٔ دکاروباری ذهنیت ډیره ساهو عکاسی کوی ـ

له "چه څهٔ شوی دی باچا صیب په هغې به کانړے کیدو ـ خو اوس اصل خبره د کاغذ ده ـ ـ ـ ـ"

که ستا ژبه ګویا شوه نو زما ژبه به هم بنده پاتے نهٔ شی ـ

دلور د مرګ حادثه د غلام محمد خان ملا ماته کړی او د ډرامے داخری دمشپاړسم ) ټوک په آخرینئی نشه اره کښے چه څهٔ وخت غلامے دیو "یلن" منطقی انجام ته مخامخ کیږی ـ نو هغه دیو ویلن او ناخوښی کردارنه زیات زموږ په وړاندے دیو المیه (Tragic) کردار په څیر اودریږی ـ دهغه میکبیتهٔ (Macbeth) په شکل کښے څوک چه دځپلو خواهشاتو په دارځټلے وی د هغه سیزر (Julius Caesar) په شکل کښے په چاچه په آخری وخت کښے ځپل نږدے ملګری هم ګوزارکوی ـ

داجمل خان زوئے جمال رڅوک چه په دغه کورکښے د ډرامے په حیثیت پاتے شوے وی او دچا په خیال کښے چه غلام محمد خان یو ډیر ستر انسان وی ) چه غلام محمد ته ځپل ځان څرګند کړی چه

" زهٔ د هغه اجمل خان زوئے یم دچا په جائیداد چه تا ناجائزه قبضه کړے ده ـ

نو دغه دار دهغهٔ زوئے ته هم ښکاره شی او دهغهٔ په زړهٔ کښے

---

له روښانه تیرے ټوک ۱۵ نندداره ۵

دخپل پلار نه دومره کوکه پیدا شي چه کور ورته پرېږدي او هغه ترې هم روان شي او د دوستانو نه پس چه خپل اولاد هم د غلام محمّد خان سره پرېږدي نو د غه صدمه د هغهٔ دپاره د زغم او برداشت نه بهر شي - د هغهٔ دماغ هم د هغهٔ سره ملګرتیا پرېږدي او د دې صدمې نه پائمال شي -

---

# نوے منزل

---

په روښانه تیره پېړۍ د محمد افضل رضا نوے منزل په اولسي پیمانې باندې خوښه کړې شوې معیاري ډرامه ده - د دې ډرامې د هیروئن شهناز کردار یو داسې ژوندے او فعال کردار دے کوم چه د موجوده دور د یکلو لوستلو پېغلو دپاره د ژوند په زغل کښې خپل روښانه منزل په ګوته کوي او په دغه لاره کښې چه کوم خندان او مشکلات مخې له راځي د هغې سره د مقابلې چل هم ورښائي -

په دولسو برخو کښې پیش کړې شوې د دې ډرامې پلاټ څه په دا دور ترتیب شوے دے .

رستم خان د خپلې یانازبینې لور شهناز د تعلیم ډېر ارماني وي - د رستم خان یتیم وراره (اسلم) ته شهناز کوژدن شي - هغه په خپله هم په کالج کښې سبق وائي - خو د غلط صحبت او ناکاره دوستانو له وجې تر تعلیم نیمګړے پاتې شي - او د اسلم خان مور د دخانې په دے خیال زوے له واده کوي چه کېدے شي د

وادهٔ سره دهغه عادتونه بدل شي - او په سمه لار زا واوړي - خو په اسلم باندے دوادهٔ هیڅ اثر اونهٔ شي اوهغه دخپلے ناوړے کالی په جوارئ بائیلی - رستم خان دخپل کالی دذکر په څټله ددے نه خبریږی او اسلم ته ډیرے سخت سپورے وائی او اسلم شهناز په دے جرم کښے رانیسی چه تا خپل پلار ته زما په سرچغلی خوړلے ده - هغه په غصّه کښے خپله ښځه دپلارکره لیږی خو بیا دهغې دپلار دبرخے دجائیداد په لالچ کښے هغه بحالا کوی او بیرته ئے کورته راولی - اسلم په ظاهره دښه وچاړو نه توبه اوباسی او دکاروبار په غرض په شهناز باندے دهغې برخه مزکه خرڅه کړی خو سغه پیسے هم دکاروبار په ځائے دجوارئ په میدان لاړے شي -

ددغے نه پس شهناز په سکول کښے استاذه شي - اسلم هم په خپلو کړو ستومانه وی خو دهغهٔ خوشا تهاری یاران هغهٔ ته داپیغورونه ورکوی چه ستهٔ دښځے ګټے ته ناست ئے - او دشهناز سره ددے خبرے حل داوی چه هغه اسلم ته داشرط ږدی چه تهٔ به خپل نیمګړے تعلیم سرته رسوے - نو بیا به نهٔ نوکری پریږدم - دشهناز په محنت اوخوارئ اسلم " بی.اے " کوی بیا نوکر شي او دغه وخت چه شهناز په خپله دنوکرئ پریښودو اراده څرګنده کړی نو اسلم ورته وائی چه -

"اوس ما نوے منزل اونوے رڼا اولیدله - زما دقوم ماشومانو ته ستا غوندے داستاذے ضرورت دے چه هغوئ د دوښانه مستقبل په لوری روان کړی -"

دا ډرامه په یوعام سیلاټ باندے جوړه شوے اصلاحی ډرامه ده خو دشهناز دکردار شوخو دګونو ددے ډرامے دپلاټ په عمومیت کښے هم

یو خصوصیت ذہن یے دے اوددے یو کردار دشخصیت جاذبیت دکتونکو ستر ے تر آخره پورے دډرامے سره لګولے وی .

دشهناز کردار چه څومره رنګینی اوجاذبیت لری دومره درونه والے اوعظمت هم لری - خو متاسفاً د نوی منزل نور کردارونه دیر تت، پرس اونیمه خواکردارونه ښکاری - اوپه ځنو ځایونو خو ددغے کردارونو په کړو وړو، خبرو اترو او رویو باندے اوپره جذباتیت سور ښکاری چه هغه هیڅ منطقی جواز نهٔ لری - لکه اسلم خان (کوم چه دډرامے ثانوی مرکزی کردار دے) چه دخپلو بد عملو اوخرمستو له کبله دجائیداد نه لاس اووینځی اوپه آخره کښے چه بی اے اوکړی او نوکری مونده ورته کوان شی نو په ژوند اومعاشره باندے دهغه تنقیدی لهجه دغیر ضروری جذباتیت ښکار ښکاری - کومه چه په هیڅ شکل دهغه دکردار دپس منظر سره جوړ نهٔ خوری .

شهناز[1] :- دیر خفه دګیر کورته راغلے - خیر خو دے .

اسلم :- ژوند نوم دخفګان اودستګیرئ دے .

شهناز :- چا سره دے خبرے وارولے څه ؟

اسلم :- دخپل تندی سره ے اپریئ دهلو ته ذرهٔ کیږی .

شهناز :- ولے ؟

اسلم :- داپه دے چه خدائے خبر چه په دهٔ ے څه لیکلی دی - ځائے په ځائے ے تستونه ورکړل.

---

[1] نوے منزل - محمد افضل رضا تتوک ۱۲ نسخه اره ۲

شهناز :- او بیحرته کامیاب نهٔ شوے ۔ پس په دے دومره خبره ډِوارخطا دے ۔ خیر دے نصیب کښے به د لا انتظار روی ۔

اسلم :- انتظار ۔ خو درے انتظار هم څه حدشته که نه ۔۔۔۔۔۔ دا صبر ، انتظار او امید یوازے بے وسو ته راغلی دے که ددنکو د نکو مانړو اوسیدونکو په برخه هم شته ۔

ACKU

# تیرے او رڼرا

داوړدو ډرامائي سلسلو نه علاوه په ټي وي باندې ځنې د کم شمېره پړکونو نسبتاً وړې ډرامې هم داسې راغلې دي چه په هغو کښې د ساهو اولسي تعبیري او اصلاحي موضوعاتو په حواله داسې کردارونه وړاندې شوې دي چه هغه ادبیت هم لري او افادیت هم - او د اهمیت نه ئې په هیڅ ډول انکار نهٔ شي کیدې -

د ښاغلي محمد همایون هما "تیرے او رڼرا" په دې لړکښې د خلوېشتوکونو یوه ښائسته او اثرناکه ډرامه ده - د خپل موضوع له مخه دا زمونږ د روان ژوند سره ډېره نږدې علاقه لري - او مصنف په دې ډرامه کښې د پښتو ډراموډموضوعاتو دروایتي انداز نه ډېره کرې ده - "د تیرے او رڼرا" مرکزي کردار برکت الله په یوه سرکاري اداره کښې سپرنټنډنټ وی - او خپل فرائض په ډېره ایمانداریٔ تر سره کوي - خو دغهٔ د دفتر بے ایمانه کارکنان د دغهٔ نه خوشحاله نهٔ وی او مشر افسر ئې هم په خبره خبره ټوکی -

دغه شان رویه د هغهٔ سره د خپلے ښځې او زوئے هم وی - ځکه چه د برکت الله ایمانداریٔ په وجه د هغوئ په خیال د کور تول بر برکت الوتے وی - په تنشه تنخواه خو د کور خرڅ هم نهٔ پوره کیږی -

په دفتر کښے دیو بارسوخه ټیکیدار کاغذونه د څنو دفتري خاموله کسـله د برکت الله په میز بے دستخطئ پراته دی - ټیکیدار د خپلو بلونو د خلاصولو دپاره اول هغه رضا کول غواړي او بیا پرے دباؤ اچوی - مشر افسر هم برکت الله

ته په خبرو اشارو کښې ددے کار دکولو دپاره واۍ او دهغهٔ د ایماندارۍ په رنګ دړے ستغې رویې دخطرناکو نتیجو په حقله خبردارے هم ورکوی - خو برکت الله دځلې لارے نه نهٔ اوړی۔په دے حقله هغه دځل زوئے سلیم دوینا خیال هم نهٔ ساتی څوک چه دتیکیدار دلوں فرزانه دسبق مګړے وی - دبرکت الله پیغله لور جمیله په کور ناسته وی او دهغے پسلاں دناداری له کبله دځل زوم دداج غوښتنې نهٔ شی پوره کولے - دپوره کولو ئے ایکی یوه لاروی - درشوت او بے ایمانۍ لار-خو برکت الله په هغه لار قدم پورته کولو ته تیار نهٔ وی او دځلې ایماندارۍ په تهس کښې هغه یوه ورځ دتیکیدار په سازش کښې داګیر شی - او په هغهٔ درشوت ددروغو مقدمه جوړه شی - خو په آخر کښې دهغهٔ ناشوے ګناه دنیا ته په داګه شی دهغهٔ نوکری په ځائے شی - دهغهٔ زوم ته هم دځل سخس د ایماندارۍ او ناداری احساس اوشی - او برکت الله دعزت او رښتولئۍ پتکے په سر کوں کیږ دی -

دبرکت الله په کردار کښې بناغلی "همّا" دیو داسے باهمته اصول پرسته ساده او ایماندار سرکاری ملازم نقشه وړاندے کړے ده چه دوخت مصلحتونه او دحالاتو ناکردے په هیڅ رنګ کښې هم دهغهٔ دارادو مخ نیوے نهٔ شی کولے۔ برکت الله یو داسے روغ انسان وی چه هغه دمصلحت دپاره هم دروغ ویښا لوپه ګناه ګنړی - څهٔ وخت چه هغه درشوت په مقدمه کښې اونولے شی نو دهغهٔ زوئے سلیم پسلار ته داقانونی نکته ښئیل غواړی چه هغه د دومره قدرے اوواۍ چه نوټونه د مخکښې نه دهغهٔ جیب کښې پراته وو - خو برکت الله ورله داجواب ورکوی -

"ماپه ژوند کښې چرې هم دروغ نه دی ویلی . دا دروغ راباندې مه وایه زویه - زه خپله بې ګناهي په زور په یوه ګناه نه شم ابته کولې ."[1]

او په دې مختصر غونډې جواب کښې د برکت الله د شخصیت واړه خلاصه پرته وی .

---

# باور

د سعدالله جان برق دا ډرامه د پښتونخوا منتو په دیارلسو ټوکونو باندې خوره ده او په کال ۱۹۷۸ء کښې په ټیلي وژن پیش شوې ده . د باور د پلاټ اډانړه د پښتنو د روایتی تربورولۍ په ستنو باندې ولاړه ده او غټه کشاله پکښې د جائیداد کشاله ده .

په دې غونډه ډرامه کښې دیو زیګ ، ضدی ، جاهل او لالچي بنده زرغن کردار ایکی یو داسې کردار دې چه هغه د کتونکو سترګې او ذهن ځان پورې نیولې ساتی تاج ملوک د زرغن خورځې هم وی او زوم هم . خو هغه هم د خور سره پټه په پټه دښمني پالی او هم د زوم سره .

او د هغې غټه وجه داوی چه د زرغن او بښې قدیم (د تاج ملوک پلار) د هغوئ جائیداد په بیعه اخستې وی او س د قدیم د مرګ نه پس د زرغن د ژوند مرام داوی چه د قدیم د یتیم زوئې (رخپل خورځۍ او زوم) تاجملوک

[1] تیرې او رښا محمدهمایون هما ښلورم ټوک

دلاس نه تول جاشیداد را اوشوکوی او په دے غرض غځه د تاج ملوک نه واړه جاشیداد دخپلے لور "رفیقے" په ولور کښے بیکی او په داسے کولو کښے ذرغن د خپلے ښځے په وړاندے خپلے ناپاکے ارادے داسے بربنډ وی -

" لورهم ورکوم او په زړهٔ کښے ورته پرته هم ده تاته پته نشته ښځے - دا "بختوره" زما میرنئ خور زما اولنئ دښمنه ده - دا دپلاړ خوښه وه او زهٔ ئے نهٔ وُم خوښ - ځکه چه ددے مور ے دپلار خوښه وه - او بیا د بختورے خاوند قدیم! هغهٔ ته او دهغهٔ آل اولاد ته زما زړهٔ چرے هم نهٔ شی ښهٔ کیدے - زموږ ټول جائیداد دهغوئ دخپتے دلاندے دے."

په دغه حساب زرغن د تاج ملوک د لاس نه ټوله مزکه اوشوکوی او تاج ملوک په خوارئ مزدورئ پسے د وطن نه بهر لاړشی او په دوبئ کښے دومره پیسے پیدا کړی چه د زرغن دعیاش زوئے "انور" نه په بیرته خپل جائیداد واپس واخلی -

دے ډرامے دپلاټ خاکه او د زرغن او تاج ملوک کردارونه د ساغر اپریدی دافسانے "ولور" سره نژدے مشابهت لری - دکومے تفصیلی ذکر چه په دے مقاله کښے په خپل ځائے راغلے دے - خصوصاً دیو جاهل خود غرضه - لالچی - فریبی او ظالم ماما او سخت کردار په "باور" او "ولور" دواړو کښے یو رنګ او نقشه لری -

— — —

---

ے باور - سعدالله جان برق اول توک

ACKU

# ناموس

دټیلي ویژن دراما په تاریخ کښې په ناموس کښې په اول ځل د کردارنګارۍ شعوري زیار شوے دے. دشلو قسطونو په دے دراما(سیریل) کښې یوه مرکزي واقعه دشوې او نه تر آخره پورے په دراما کښې دول دنورو ثانوي واقعاتو دچپو نه پورے وتے ده چه داصل قصې دډرامے) مرکزیت اودتأثر یووالے نے روغ اوسالم پاتے شوے دے دکومېلو واقعاتو په مضبوط مزي تړلي د ناموس هریو کردار په خپل ذات کښې یو مکمل کردار نګاري. دا ډرامه په پښتو کښې په کال ۱۹۸۰ء کښې ټیلي شوے ده او بیا وروستو څو کاله پس چه په اردو کښې پیش کړے شوه نو په قامي سطح هم محض دخپلے ساهو او موثرے کردارنګارۍ له کبله اولس خوښه کړه.

دناموس قصه د عزت الله خان دناموس قصه ده. خان بهادر عزت الله خان دخپلو دوایاتو اوخاندانی وقار دبچاوی په خاطر خپل زوئے عظمت الله دکورنه شړي. د عظمت الله ګناه داوی چه هغه په خپله خوښه د خپل تهیر نه بهر دیوے غریبے کورنۍ جینۍ واده کړی. عظمت الله هم د پلار غوندے ضدی خو یو خودداره اوغیرتی سړے وی او دپلار په لویه خانۍ کښے هغه خپله ځوانی دیو کلرک په شکل ډیره په خوارۍ او کړاینتونو کښې زړه کړی. خو داصولو دجنګ نه پذشاکیږی نه.

---

ـه ۸۵ - ۱۹۸۴ء

خان بهادر صیب هم په تنهائی کښے دخپل زوئے په غم کښے ډیر ډیر اونولیږی - خو دخپل ضد نه اوړیدل هغه ته نهٔ پښتو بنکاری نهٔ غیرت. ځکه چه دهغهٔ په خیال کښے عظمت الله دخاندان په ناموس تور لګولے وی.

او خان بهادر صیب دخپل کور په بندیانو دعظمت الله سره په تلل(اغلی) هم بندیز لګولے وی -

دخان بهادر صیب دکردار دغه نفسیاتی دوجاله دتولو نه زیات هم دهغه شخصیت له زورنه ورکوی خو دخپل درد اوخوږ احساس ددنیا نه پټ ساتی. خپل زوړ وفادار نوکر شیرمحمد ته په یوځائے کښے وائی -

"زهٔ هغه نهٔ یم شیرمحمده - زهٔ هغه سړے یم چه دبدن بیکاره ټوټه دخپله لاسه پریکوم -"[1]

او دخان بهادر صیب اشاره هم دخپل زوئے عظمت الله ارخ ته وی - خان بهادر عزت الله خان په بنیادی ډول یو اشراف، زړه سواندے او اصولی سړے وی خو دهغهٔ دشخصیت نه درواياتو یوه داسے فولادی قلا جوړه شوے وی چه دهغے نړول نه دهغهٔ دوس خبره وی او نهٔ د بل چا ددغے فولادی شخصیت په جوړولو د اوورانولو) کښے دهغهٔ دمشری زوئے بیرسټر کرامت الله هم لوئے لاس وی -

کرامت الله یو داسے چالاک او جهاندیده سړے وی چه دخپل غرض اومطلب دپاره نه په خپلو وروڼو سریه کوی - نهٔ په پلار - خو په خپل لباس، پسته ژبه اوخوشامند وهغهٔ دخان بهادر صیب غوښ ے

---

[1] ناموس - محمّد اعظم اعظم څوک اتنداره ۶

يو حيس ے انسان په خپل موټي کښې داسے کلک نيولے وی چه هغه د بیرسټر د وينا نه بله نهٔ کوی - بیرسټر په نوم خو تعليم يافته وی وے د هغهٔ د وجود دننه يو داسے وحشی اوسی چه د هغې قابو کول د چا د وس خبره نهٔ وی - کرامت الله خپل کشرے ورور راحت الله د پلار په سترګو کښې محض په دے قصور غور زوی چه هغه رښتيا خبره کوی او په يوه پوهيږ ی - راحت الله په ظاهره يو چټ پټی جاهل او جنګيالے بنده ښکاری خو په حقيقت کښې هغه د خان بهادر په کورنئ کښې يو داسے حق پرسته سړے وی چه د بیرسټر د مکر او فريب مقابله ښهٔ په نره او ښکاره کوی - هغهٔ له د خوشامند و چل نهٔ ورځی خو د پلار عزت او احترام د هغهٔ په زړهٔ کښې د هرچا نه سيوا وی - او کله چه د بیرسټر په لمسه هغه په دے ګناه د کوره اوباسی چه هغه د عظمت الله کورته ځی او د هغهٔ زوے له خپله لور ورکول غواړی نو د عزت آباد[1] نه د وتو په موقع هم هغه خپل زوے آصف له د خان بهادر صيب د عزت او احترام د غه سبق ورکوی -

په دے ننداره کښې د راحت الله کردار د عظمت د يوے ځلے مناره په شکل کښې اوديږی - هغه راحت الله کوم چه په نهٔ څه خبره جنګ ته جوړ وی د هغې پلار خلاف سپکه خبره اوريدل نهٔ شی زغملے د چا د لاسه چه هغهٔ ته د خپل کوره او خپل کلی نه د شړلو حکم شوے وی .

"راحت الله[1] - زهٔ روان يم بچو

اصف - تاسو به ځئ او موږ به دلته پاتے کيږو ؟

---

[1] ناموس - ټوک ۱۷ ننداره ۱۱

دخپل ځګرتوټې هم څوک دځان نه بېلوي ؟

راحت الله :- داستا دېنګه ارمان دے آصفه !

آصف :- زما نېکه - دا سے نيکه .......

راحت الله :- چپ چپ - غلطه خبره د خُلے نه اونه باسے ستاسو اوس هم دهغه نيکه خودئ ښنيئ .

آصف :- موږ به د نوږدو مړه شو -

خودلته به يوه ورځ هم تيره نه کړو -

راحت الله :- داسے کيدے نه شي زما بچيه !

آصف :- زموږ ترڅ داسے کولے شو اوموږه ئے نه شو کولے ؟

راحت الله :- ستا ترڅ ډير خوش قسمته دے آصفه - چه د هغه لور نشته -

آصف :- بابا ! دخپلے خورشا هدے ته ګوري )

راحت الله :- ته به ما دلته نه وے پريښے آصفه - خو دا سغله خور به د ځان سره دچا په دروتو ګرځوم - داخو زه د خپل وروريه کورهم نه شم کيښنولے ."

دبيرسته کرامت الله کردار د راحت الله عکس وي - هغه درے ورا ے وران کارے روسان ) وي اوهغه دخپلو غرضونو يو دا سے اوږ د جال غوړولے وي چه په هغے کښے په واره واره دهغه ټول ښکارونه را ايښلي او ديوتجربه کار اولوبغاړي ښکاري په شان دموقعے په سوکښے ناست وي او په کره اوموزون وخت په خپل ښکار باندے ګوزار کوي .

راحت الله چه دخپل وروں عظمت الله زوئے سره دخپلے لور رشتے ته غاړه کیږدي نو بیرسټر بیا په دغه مقام د وروں او پلار دواړو کمزورے رګ رانیسي او دغه استعمالي ذهن دموقعے او حالاتو نه په دے طرز د فائدے اوچتولو زیار کوي۔

" راحت الله :- خپل ځان راته معلوم دے خو دخپل جرم نه خبر نهٔ شوم۔

کرامت الله :- د جرم احساس هله پنده ته کیږي چه په ورومبی ځل جرم کوي۔ او چه جرم عادت شي او یوه نشه شي نو بیا خو یوه عامه خبره شي۔

راحت الله :- که دعزت آباد د مجرمانو شمیر ے شورو کړو نو په جیلونو کښے به هم ځائے نهٔ شي بیرسټر صیب!
خو تاسو ته بس یو زهٔ مجرم ښکارم ځکه چه زهٔ په یوه پوهیږم۔

کرامت الله :- دخپل پلار په مخکښے داوینا او دا لهجه داجرم نه بغاوت دے۔"

او د راحت الله دغے جرم له د کومه چه یوه روغه او دقاعدے خبره وی ) داسے هوا ورکړی چه خان بهادر صیب د عظمت الله په شان دویم زوئے هم له کوره اوشړي او تپول جائیداد د "زیبي پلاز ا" په شکل کښے د بیرسټر دلور زیبا په نوم اوخیږي۔ او چه دغه مرحله تیره شي او د

---

له ناموس تپوک ۱۶ نندارہ ۸

عزت آباد د قسمت واگے د پېرسته لاسوله راشی نو بیا په عزت آباد کښې د
خان بهادر صیب ځائے هم پاتے نهٔ شی - او خان بهادر صیب ته دغه نازولے اونیک
فرزند په خپل اصلی شکل کښې څرګند شی نو اوبهٔ دورځه تېرے شوے وی - د
بیکسئ په دغه دړ دیدلی حالت کښې د مغه باغیان او مجرمان زامن په خپل پلار
ننګ اوخوری اوچه څهٔ وخت خان بهادر صیب د خپل نوکر شیرمحمد په کور کښې
دیره وی او د مغهٔ زوئے راحت الله پلار له د مغهٔ ورور (عظمت الله) دراتګ
زیرے ورکړی چه خان بهادر صیب په حکم ئے شل کاله د عزت آباد نه بهر تیکړے
وصلے وی نو خان بهادر صیب پرے باور نهٔ کوی -

"خان بهادر - مغهٔ د ژوندی پلار خبر وانهٔ خست د
مړ پلار تپوس له به څهٔ راشی -

راحت الله :- د مغهٔ جنګ د خان بهادر صیب سره وو - د
پلار دړ دو نو دلته راوستے دے کل بابا -"

د ننګ او ناموس پت او پښتو داوړه غوندے واقعه دومره اثرناکه وی
چه د عظمت الله کردار له یو دوامی رنګ ورکوی - دډرامے په انجام کښې چه
بېرسته مړ شی او د مغهٔ لور زیبا د جائیداد کاغذونه یو ځلے بیا خپل
نیکهٔ ته اوسپاری نو خان بهادر صیب په خپل ژوند د عزت آباد دمشرئ
پټکے خپل کړلی - ناشلی او معذوره زوئے عظمت الله ته په سر کول
غواړی -

خو عظمت الله د خپل کودر عظمت دا سے ښائی چه د پلار پټکے خپل
کشر ورور راحت الله ته په سر کوی او په خپله د خان بهادر صیب سره په
باښوه کښې په دے خیال پاتے کیدل غوره کوی چه -

" ما په ټول عمر کښې د پلار هیڅ خدمت نهٔ دے کړے.
د باقي عمر به زهٔ د دوئ د دعا سیوری کښې تیروم.
دوئ چه چرته وی هلته به زهٔ هم یم.

---

له ناموس ټوک ۲۰ آخری نـــــداره

# زول او ډیوه

د بناغلی ښاد محمد خان بیگلے شوے دا قسطواره ډرامه هم د پښتو پښتو منتهو په دیارلسو ټوکو کښې پیش کړے شوے ده. د دے ډرامے محیطی نقطه د دلبرخان کردار وی. د ډرامے نور ټول کردارونه په شریکه هم دے یو کردار له پښتی ورکوی.

دلبرخان یو داسے مثالی او عـــلامتی کردار دے څوک چه د خپل چاپیر چل داوسیدونکو د اجتماعی ښیګړے او مفادو په غم کښې په ځان د دنیا هره سخته او کړابت تیروی او د خپل ایکی یوسربجی شهزاده د ورکیدو غم پسخاک محض په دے خیال شاته غورزوی چه هغه ته د خپلے علاقے د ماشومانو په څهرو کښې هم د خپل شهزاده څهره لیدے

شي -

ددے درویش صفته او مثالي اِنسان ذات دنيکئ - خيں او ښيگړے د رڼا منارہ وی - او ددهٔ په عکس "مراد خان" يو ښځی خود غرضه او مفاد پرسته بنده وی او هغه په قدم قدم ددلبرخان د اولسی ښيگړو د تعميری منصوبو مخالفت کوی - او د تور دل په ذريعه د هغه نه د هغه ماشوم زوئے شهزاده تښتوی کوم چه اتفاقاً د يو دارے شته منے کورنئ لاسوته اورسی چه د چاچِل اولاد نهٔ وی - او بل اتفاق داوی چه ددغه کورميرمن "بانو" د مراد خان خور او خيزی -

دلبرخان د ماشومانو د پاره د سکول او د اسپتال په جوړولو کښے کامياب شی او د هړاے په آخر کښے هغه له خپل ورک زوئے هم په لاس ورشی- مرادخان ځ تورن شی او کومو خلقو چه عمرله د مراد خان په شان ددلبرخان د اولسی ښيگړے د منصوبو ځ ښوے او مخالفت کړےوی هغوئ ټول په جرگه په هغه پسے لاړ شی چه هغه بيرته خپل کلی ته راولی خو دلبرخان هم هلته پاتے کيږی ځکه چه دخداے په مزکه بانډے هغه ته هر، کلے خپل کلے ښکاری -



# زولنے

په ټیلی ویژن باندے پیش کړے شوۍ د پښتو ډرامائی سلسلو کښے تر دے وخته پورے زولنئې د ټولو نه اوچت ډرامه ده - دا ډرامه د نخویښتو منځتو په ښه ویښتو پرکونو کښے شوے ده - او د مقدار سره سره د معیار په توګه هم دا د پښتو په کامیابو سیریل ډرامو کښے شمیرلے کیږی -

د دے ډرامے د بے شمیره کردارونو په جوړښت کښے د کردار نګارئې فن ته خصوصی توجه ورکړے شوے ده - چه په هغو کښے د یوسف - جمیلے - جانی - حامد علی صیب - افغانی صیب - شهرت - چاچا - نوری - او پالوان ټولو کردارونه په خپل خپل ځائے باندے روغ او مکمل کردارونه دی او مصنف له خپلے خوا د دے غونډو کردارونو د ذهنی ، اولسی ، ماحولی او نفسیاتی بندیزونو او رویو په حقله تر خپله وسله پوره پوره خیال ساتلے دے دا ټول کردارونه په خپل خپل ځائے د خپل چاپیرچل او ذهنی ، معاشی او طبقاتی پس منظر په رڼا کښے ژوند کوی - د دوئ اعمال او مکالمے د دوئ د سیرتونو سره ډیر فطری نزدے والے لری - په دے کښے به شاید ډیره کمه مبالغه وی چه د زولنے په اوچت ده سلسله کښے دا ګنړ شمیره کردارونه په خپل خپل ځائے خپل انفرادیت او شناخت لری -

نو د دے ډرامے په ټولو کردارونو باندے د "جانی" کردار خور او سور ښکاری او جانے د زولنے د ټولو نه مضبوط او موثر کردار دے - جانے د کلی د خانانو په یو عزتمنده کورنئ کښے پیدا شوے وی خو د صغه پلار د مرګ نه وراندے ټول جایداد په عش او فضولو شغلونو باندے والوزوی - او خپل

زوے دژوند انډیبتونو اودونیا پیغورونو ته ورانسے کړی - دجانی ترپوران مغهٔ له دهغې جینئ د ورکولونه هم انکاری شی کومه چه دهغهٔ په نامه ناسته وی - دهغهٔ تعلیم هم نیمګړے پاتے شی اوهم په دغې حالاتو کښے جانے کلے پرېږدی اوپه ښار کښے دیوبے لارے شوی اوعبث ژلمی په شان بےمقصده ژوند تېروی دابے مقصده اوبے مرامه ژوندنه دجانی نه یو سرکش، بدمعاش جوړکړی اوپه لږه موده کښے دے حدته راشی چه دښار لوئے لوئے بدمعاشان دهغهٔ په مخکښے سرونه ښکته وړی - په ښار کښے دجانی زیاته ناسته پاسته د "پانوان" په قهوه خانه کښے کیږی - دابنارے چائے واله په جانی ډیرمئین وی او هغهٔ ته نصیحتونه کوی - هم دغلته دجانی سره دیو یتیم اوماشوم پالشی یوسف ملاقات اوشی دچا په سرچه هغه دغفوری غوندے سرپېنچ بدمعاش دیو سری سره لاس واچوی اوبیا دجانی دلاسه دغفوری سرے اوتګی او دیو ناتوانه پالشی هلک په تس کښے جانے جیل ته لاړشی -

ماشوم پالشی یوسف هم یو خودداره اوحساسه هلک وی - هغهٔ ته د پالشیانو کار سپک ښکاره شی - اودجیل یوکلی وال مدګری نوری په مرسته هغه دافغانی صیب داخبارونو په ایجنسئ کښے هاکر شی - افغانی صیب (لالاجی) یو نیک زړے صحافی وی او دهغهٔ په برکت یوسف تعلیم هم سرته اورسوی اوبیاهم دهغهٔ سره داخبار په دفتر کښے دیو ذمه وار اوپښته ور صحافی په دود کارشروع کړی -

په دغه آوان کښے جانے دجیل نه بهرته راوځی دهغهٔ درمائ خبر په اخبارونو کښے هم راشی دیوسف په ذهن کښے دجانی جیل ته دتلو واقعه بیا تازه شی - جانے یوځل بیا خپل زوړ کاروبار ته کوتے واچوی اوداځلے دیستهر امسان غوندے دښار دیو غټ سمګلر په ولقه کښے راشی اویوسف دجانی داصلاح

په غرض په هغهٔ پسے اوګلی ۔

جانے چه یوسف اوپیژنی نو د هغهٔ په ترقئ او بنه ورځ باندے بے حده خوشحاله شی ۔ دوئ دواړه د یو بل سره ډیره مینه ساتی خو دواړه د بدلو لارو لاروی وی ۔ یوسف اوس یو تعلیم یافته زلمے وی او په سوسائټئ کښے یو اهم مقام لری ۔ او جانے هم په خپل خیال کښے اهم وے د دنیا په سترګو کښے "ډیر خراب سړے" وی خو د یوسف په نظر کښے د دے خراب سړی په وجود کښے یو معصوم، پیڅلے او شریف انسان ځلیږی او هغه په دے تکل کښے وی چه د حالاتو ناکردو او چاپیریال نا هوارو چه د جانی وجود څنګه سوے سکور کړے وی د هغے د ډیرو نه هغه لعل را اوباسی کوم چه د اصلی جانی د روح جوهر دی ۔

بل خوا د سیټھ امان غوندے د معاشرے ناسورونه په خپله لباسی سفید پوشئ کښے پټ جانے د خپلو ناولو غرضونو د پوره کولو دپاره په هغو تیرو کښے ساتل غواړی په کومو کښے چه قسمت هغه راګیر کړے وی ۔

دجیل د راوتو نه پس چه سیټھ امان په وړومبی ځل جانے خپلے بنګلے ته را اوبلی او هغهٔ ته د ډوډئ ست کوی نو د جانی د سیرت پیڅلتیا د هغه اصول پرستی او بیباکی په ډیر خوندور انداز کښے ځان ښکاره کوی ۔

" جانے[1] :- ستا ډوډئ نه خورم سیټھ صیب !

امان :- ډوډئ نه خورے که زما ډوډئ نهٔ خورے ؟

---

[1] زولنے ۔ محمد اعظم اعظم تهوک ۲ ننداره ۲

جانے :- حرام رزق زما هضمیږی نه

امان :- زما رزق حرام دے ؟

جانے :- ستا رزق حلال دے که حرام خو په ما حرام دے

اوجانے دیر خواب سړے دے خو نمک حرامه نهٔ دے..

........ جانے نهٔ کر ځیدے شي خو چه دچا

په تالی اوخوری دهغه سره نمک حرامی نهٔ شی کولے.

اوکه ستا نمک ے اوخوړ نو ټوله معامله به ګړبړ شی؛

اوچه دسیټهه امان غوندے تجربه کار اولوبیدلے سړے پوهه شی چه جانے داسے څیز دے چه نهٔ په زرو ځپلیدے شي اونهٔ په زرونو دزارۍ نه کار داخلی اوهغهٔ ته ددوستۍ دانه واچوی - اودرغے دوستانے په پیس ایه کښے جانے ځیل "توربیوپار" ته وراش ے کړی.

سیټهه امان دځپلو مخصوصو غرضونو له مخه جانی ته دنصیحت په دود وینا کوی چه هغه دِراوس دپالوان دقهوه خانے په شان ځایونو کښے نوره ناسته پاسته پریږدی ځکه چه داسے ځایونه دجانی دجلے سره نهٔ بنائی - نو د جانی غیرت راوپاریږی - هغهٔ ته دامان په وینا کښے چل او فریب ښکاری - اود هغهٔ په خیال کښے دامان غوندے سیټهانو ته دپالوان غوندے یاراتو قدر دیر دنګ وی .

امان :- دخوارلسو کالو مزل تهٔ دجیل خانے نه ایله[1]
قهوه خانے ته راورسولے او زهٔ نهٔ غوارم چه ستا

---

[1] تروللنے - توک ۸ تنسدارد ۵

دخوانئ څلے دِهم په ټهوه خانه کښے جوړشی -جانیه!
تاته مادوست وښلی دی او زما دوست به زما په شان
وی -

جانے :- زما دوست به زما په شان وی امان صیب -
او زهٔ ...... دیر خواب سرے یم -

امان :- دخواب نه خواب سرےهم په ښکلی جامه
کښے پټیدے شی جانیه!

جانے :- ښکلے جامه زما دنته انسان پټولے شی ختمو له
ئے نهٔ شی -

امان :- ددے مطلب دا شو......

جانے :- ددےمطلب داهم نهٔ شوچه زهٔ ستا د
دوستئ دپاره ټولے یارانے پریږدم - دوست که سټهم
امان وی که پالوان - جانی ته یو ښکاری -"

دجانی په خیال کښے دادنیا د زور اورو دنیا وی - اودنیا زوراور کمزوری
لواړ تیروی - خیل بنادی اشنا پالوان ته مخه دیوسف په حواله په یو ننداره
کښے وائی -

"جانے :- دادنیا ډیره ظالمه ده پالوان - دلته چه څان
کمزورے کړی نو داخلق به دِ لواړ تیر کړی -

پالوان :- هوئے داده ریان خو نهٔ دی انسان دی

---

له زولئے - قسط ۱۹ ننداره ۸۰

انسان ته په انسان څنګه تیر کړے جا شیه!

جانـ - زوراورته د پوړۍ هضمول ګران وی - خو د کمزوری حق هضمول اسان او دے (یوسف) کمزورے دے. مظلوم دے"

د جانی د ژوند المیه د ماحول المیه وی - دا د محرومۍ د هغه احساس نه ځیګیدلے وی - کوم چه د ماشوموالی نه د هغهٔ سره مل وی. یو بے کوره بے موره او بے پلاره ماشوم چه په خپل ځ سر د د نیا بے رحمه څپیړو ته مخا مخ شی. نو څوک هم دا سے نه وی - چه دهغه په سر د مینه او دلاسے لاس راکاړی. او د دے په رد عمل کښې د هغهٔ د وجود ټول زهر د کرکے او نفرت په شکل کښې د هغهٔ کړهٔ د پړهٔ راویره شی - او د هغهٔ د لهجے نه راځاڅی. هم له دغه کبله چه کله یوسف هغهٔ له د مشر ورور مقام ورکړی - او د هغهٔ مور جانی ته زوئ او وائی - نو په هغه کښې یوه لویه تبدیلی راشی - او د دغه تبدیلۍ احساس جانی ته هم وشی -

"یوسف زما په وجود کښې هغه انسان بیا ژوندے کړو - کوم چه دے ظالمے زمانے وژلے وو ......

زهٔ به د کور تصور ته بوږ نیدلم خو اوس زما ارمان دے چه زما هم پهٔ دے دنیا کښې چرته کور وی - پالوان!"[1]

خو جانی چه کله نیهم امان غوندے پنجه ور د حرص د پنجے نه ځان د شریفانو دنیا ته د راویستو هڅه کوی - او د زردارانو مفادو ته پرے د

---

[1] زولفے - قسط ۲۰ ننداره ۲

نقصان رسیدو اندیښنه پیدا شي نو مغوئ ورپسې دغفورۍ غوښې د کورۍ بدمعاشان اونګوی اوجانے یوځل بیا په غیرت کښے څپله پیشه راتینګول غواړي خو دیوسف اودهغهٔ دمورسره کړے لوظ ئے په ورانے اودربړی اوپه هغه لوظ تینګ پاتے شي -دجانی په فطرت کښے دانسانی شرافت توکے دهرڅهٔ نه زیات اوځلاسنده وی - دهغهٔ حریف غفورے چه د سیټ امان په سازش دجیل په تمبو وردننه شي نو جانے په څپل دښمن دخوشحالیدو په ځائے دفکر په دریاب لاهوشي او دیوسف دوئ په کور کښے د هغهٔ دمور (زیتون) او "نورې" په وړانے په دے حالاتو دهغهٔ ردعمل دیو زړهٔ سوانډی انسان دوسته رسید لی فلسفی په شان ښکاری -

"جانے[1] - دغورزیدلی دښمن په وصلو کښے به مزه څهٔ وه - اوس زما سره د غفورۍ دبچوغم دے -

زیتون - د غفورۍ بچی - ؟

جانے - ددےښار په سوانګرو اوپالشیانو کښے به یو څو نور هم زیات شي -

نورے - دسیټ امان په تس کښے تلے دے هغه به ورله وظیفه لیږی کنه -

جانے - سیټ امان ! کوم انسان چه زما اوستا د بدن دوینو نه سرمائهٔ جوړوی هغه به دقام بچو له څهٔ ورکړی ؟"

---

[1] زوبلے - ټوک ۲۵ ننسدارہ ۸

دجانی فطرت د فرښتو غوندے معصوم او پاک وی - خو د حالاتو په چکر کښے د مفاد پرستو یادارانو ناولی غرضونه هغه د پاکئ او شرافت ژوند ته نزدے نۀ پرېږدی او د ډرامے په انجام کښے چه څۀ وخت هغه سیټ امان ته غوښتنه پیښږی ے جواب ورکړی نو د سیټ امان د مکر او فریب نه ډکه څېره په خپل اصلی رنګ کښے ځان ښکاره کړی -

"امانؐ - دومره خواب سړے دومره ښۀ سړے نۀ شی کېدے جانیه !

جانے - زۀ کوشش کوم چه په ما کښے هغه خواب سړے مړشی - خو ټ اوسه لا ستا غوندے د خلقو دلاسه ژوندے دے -

امان - چه هغه ژوندے وی نو تۀ به هم ژوندۍ ے جانیه ! چه هغه مړشی نو تۀ به هم مړشے ."

او ددے نه اګاهو چه د سیټ امان ګولئ د جانی د سینے نه پورے اوځی د جانی تخبنه رسا شی او د سیټ امان فسادی کردار خپل منطقی انجام ته اورسی - جانے په دغه جرم کښے د څو کالو دپاره بیا جیل ته لاړ شی او د هغۀ چنغله یوځلے بیا د هغۀ په انتظار کښېنی - او یوسف چه د خپل په خُله کښے هغه له دلاسه ورکوی نو جانے ورله په خپل مخصوص انداز کښے داجواب ورکوی -

---

له زولئے - قسط ۲۶ سین ۱۲

" دژوند دلاسه ما عمر له سزا خوړے دے یوسفه!
نو په دے خوشحاله یم چه ما هم ستا د پیشے عزت اوساته
اوهم د خپلے ."[1]

---

# مشال

---

د ترلو (مربوطو) پلا تونو د ډراماٸی سلسلو (سیریل)
سره خوا په خوا دتمثیلی ویژن په پرده باندے په تمثیلی انداز کښے داسے
اوږدے قسط وارے سلسلے هم پیش کیږی چه په هغے کښے په بیل بیل
ټوک کښے په یو مخصوص موضوع باندے دځنو ترلو کردارونو په حواله
مختلفے واقعے په ډراماٸی انداز کښے راځی - دغه قسم له ډراماٸی سلسلے
د "سیرین" په نامه بللے شی - په دغو سلسلو کښے اکثر مزاحیه او طنزیه
وی او د خندا په پیرایه کښے د معاشرے په مختلفو اړخونو باندے په
تعمیری انداز کښے تنقید شوے وی - او په ځنو سیرین ډرامو کښے سنجیده
انداز هم استعمال شوے وی.

تراوسه پورے په تمثیلی ویژن باندے په پښتو کښے په دغه قسم

---

[1] زولنے - قسط ۲۶ سین ۱۳

سلسلو په کښې ـ سون پوره "مشال" "دوه او دوه پنځه" "دروغ رښتیا" او "ننګونه" ډیرے کامیابے او مقبولے سلسلے راغلے دی خو د کردار نګارئ له رویه په سنجیده قسم سیریز کښې "مشال" او په مزاحیه رنګ کښې "دروغ رښتیا" نمائنده ډرامائ سلسلے دی ـ

د ښاغلی محمد افضل رضا "مشال" د پولیس د کار کردګئ په موضوع بانـدے په پښتو کښې اولنئ کامیابه تجربه ده ـ دا ډرامائی سلسله د یو پولیس حوالدار ګل محمد د کردار په حواله په وړاندے روانه وی ـ چه دوستی بیا د انسپکټرئ درجے ته اورسی ـ

ګل محمد د پولیس د عام روایتی شهرت په عکس یو ایماندار، فرض‌شناس او د اولس مددګار غرے وی ـ د هغهٔ لمن د رشوت او بے ایمانئ له داغه پیخی پاکه وی ـ ځکه خو په کور کښې د هغهٔ ښځه شپه او ورځ هغه له پیغورونه ورکوی او د هغهٔ زوئے امجد هم د پلار نه په دے مرور وی چه هغهٔ د پولیس غوښے نوکرئ کښې هیڅ جوړ نهٔ کړل ـ د هغهٔ ملاتړ ماتحت سپایان کمالے او جمالے هم د خپل افسر په سلوک او رویه باندے داقسم له تنقیدونه کوی ـ

"[1] چه داسے خلق پولیس کښې وی نو خاورے به رانه څوک ویړی ـ"

نو د ګل محمد په وړاندے د پولیس نوکری د اولسی خدمت او ښیګړے د یو مقدسے ادارے او د یو سپیڅلی مشن درجه لری ـ د خدائے

---

[1] مشال ـ محمد افضل رضا ټوک ۱ ننداره ۵

ACKU

دمخلوق بے غرضه خدمت او د قام او وطن بےلوثه مینه دګل محمد دژوند سرمایه وی او د معاشرے د وران کاړو او پساتیانو خلاف جهاد کښے هغه دمیځ قسمه قوبانئ ورکولو نه شاته کیږی نه -

د بنا غلی رضا د اډراماځ سلسله دخپل افادیت او دلچسپئ له کبله په اولس کښے ډیرته مقبوله شوه - او ددے په کامیابئ کښے دګل محمد دکردار سنګینی او دجمالی او کمالی د کردارونو رنګینی یو برابر لاس لری -

او دا ذکر به هم بے ځایه نهٔ وی چه هم په دے موضوع او په دغے بنیادی خیال باندے یا وروستو دلاهور ټیلی ویژن سنټر نه یوه ډیره مقبوله او کامیابه اردو سلسله " اندھیرا اجالا " هم پیش کرے شوه - چه د عنوان تر حده پورے هم د "مشال" سره جوړښت او مطابقت لری - د اردو ډ بے ددغے سلسلے په بے مثاله کامیابئ او شهرت کښے دځنو سترو تجربه کاړو فنکارانو د فطری او سپیځلے اداکارئ هم لویه برخه وه -



ACKU

# دروغ رښتيا

د ټي وي په مزاحيه سلسلو کښې د ښاغلي خالقداد امين دروغ رښتيا د شهرت او قبوليت له رويه يو کامياب او معياري کوشش وو - د دې سلسلې د کاميابۍ زيات دار مدار په هغو ټرلو (Stock) کردارونو باندې دې کوم چه په مختلفو ټوک کښې د يوې نوې واقعې په حواله د خپلو مخصوصو کړو وړو، ټرلو او کوټلو فطرتونو او دلچسپو خوندورو حرکتونو په زور مخ په وړاندې روان وي.

د "دروغ رښتيا" دروغ هم په داسې رښتيني او فطري انداز کښې وړاندې شوي وي. چه د رښتياؤ مينه پرې ماتيږي او رښتياؤ له يې هم د مبالغې داسې ذره راښکونکې رنګ ورکړې وي چه سپورو اوړو او درونوالې د طنز ومزاح په کرښئ کښې د ننه په ذهن بوج نۀ ښکاري.

په دروغ رښتيا کښې د فيض طلب، سنګ پارس او بادام ګل کردارونه زيات اهم کردارونه دي. فيض طلب يو ساده باده کلي وال سړې وي - په ښودو کښې هغه يو غريب دوکاندار وي خو د دوکاندارۍ د پاره ويښې دماغ تاجرانه ذهنيت او پوهه پکار وي او له بده مرغه د فيض طلب سره په دغه ټولو کښې هيڅ نۀ وي - د هغۀ تکيه کلام "خبره د حساب ده" د هغۀ د فطرت او سيرت ښې غندنه کوي ځکه چه هغه د دنيا په حساب کتاب

هرو پوهیږي نه - دهغهٔ په مقابله کښې دهغه آشنا سنګ پارس یو ډیر سیانړه ګرځید لے - خبرلوټے اوخبله ورسرے وی - چه ژبه ئے لکه دقینچئی اودماغ ئے لکه دمشین چلیږی - اوچل غرض په موقې کښے کلک ګرځوی -

سنګ پارس - فیض طلب دځان سره لکه دماشوم لاس نیوے ګرځوی اوپه ....... هغه باندے ددهٔ شخصیت داسے حاوی وی چه دسنګ پارس خبره ورته دکانړی کرښه ښکاری - اوددنیا هر کار او روزګار ددهٔ په خوښه اومشوره کوی -

دفیض طلب دکردار سره دهغهٔ دسادګئی په وجه دهرچا مینه او همدردی وی - خو کله کله دغه ساده والے دحماقت دحده پورے دمبالغ رنګ واخلی - اودکردارنګارئ دفن له رویه دایو غیر فطری عمل او ناخوښه رویه معلومیږی - اګرچه دټیلیوژن په مزاحیه پروګرامونو کښے په مزاح کښے دمبالغ دارنګ یو فیشن جوړ شوے دے ولے په فنی توګه دا څهٔ ویاړلے عمل نهٔ دے -

دمثال په دود چه څه وخت دسنګ پارس په نګرانئ کښے دفیض طلب په دوکان بولی لګیدلے وی -

"برکتے[1] - ذما په تهه زره شو - او تهه سوه دیتکی -

شیرے - ذما په لس زره شو او زر دیتکی -

فیض طلب - دپه چل پتکی لاس الادی ) دونړو - ذهٔ

دوکان خرڅوم - خو پټکے بالکل نهٔ خرڅوم - سنګ پارسه

---

[1] دروغ دښتیا - خالقداد امید

دوئ پوهه کړه -

سنګ پارس - کښېنه مړه - دوئ پوهه دی خو ته لږ

ځان پوهے کړه - بڼه ده وروره دواړه ستا شو۔"

خو په عمومی دول دا کردار ویر فطری او حقیقت ته نژدے ښکاریږي شوے دے - فیض طلب چه څومره ساده وی دومره په زړه دوغ صفا ، او یو مینږے بنیادم وی - او د هغهٔ دکردار هم دغه خوبی هغه د خپلو کتونکو ناظرینو په زړونو پورے کلک ټینوے وی .

د فیض طلب په مقابله کښے سنګ پارس یو تیز ، تېرهٔ او متحرک کردار دے - او دد ے دواړو کردارونو تصادم او موازنه په مړه موقع یو نوے عجیبه او خوندور کیفیت څیګوی - او د سنګ پارس دغه بے ساخته تیزی او معصوم جارحیت دخلقو په زړونو کښے د هغهٔ خلاف دومره کرکه نه پیدا کوی څومره چه دا د فیض طلب سره دهمدردئ دجذباتو د راویښولو کار کوی - او د تېلی ویژن کتونکو په مرنوی توک کښے د سنګ پارس په اصلی پیکر کښے کته ته لېواله پاتے شوی دی -

څهٔ وخت چه دفیض طلب قسمت پلټه او خوری دهغهٔ دبخت ډیوه بله شی او د معز جاشید ادے ګوتو له راشی او هغه دفیض طلب نه فیض طلب خان شی نو سنګ پارس ورته نور هم ځان راجخت کړی او په ځائے دد ے چه دهغهٔ په لهجه کښے دنوؤ حالاتو په سمی د خوشامندے رنګ راشی په هغے کښے نور هم ترخ والے پیدا شی او سنګ پارس په زیات جارحانه انداز کښے دفیض طلب په اعصابو سور شی - او په داسے کولو کښے دهغهٔ د دماغ فطری تیزوالے او دهغه پیدا شی چالاکی او حاضر دماغی لوئے کار کوی -

په کلی کښې د نوے حجرے جوړولو دپاره سنګ پارس فیض طلب ته په دے انداز کښې وکالت کوی -

" سنګ پارس - اوس ته سوچ اوکړه - داد ډپټي کمشنر دناستے ځائے دے - تحصیلدار به دلته کښیني - !
تهانیدار به دے حجرے ته راځی ؟

فیض طلب - بنار ته نه ځو سنګ پارسه ؟

سنګ پارس - یره خو فیض طلب ! چه غلے ناست ئے نو سړے وائی چه په سړے اوګرځیدے اوچه خبره اوکړے نو سړے وائی چه دسړد لاش ئے اوغورزولے

فیض طلب - یره خو سنګ پارسه ! ته هر وخت ما ته ټهرېږه -

سنګ پارس - سپیکیږه سپیکیږه - داخبرے مه کوه - په بنار کښې ستا دی څوک ؟ خاورے راخله او خُلے ته ئے اچوه - دلته درته لس شل کسان لګه د نوکرانو کښیني پاسی - ناشکره ! ته په دے کښې هم دبنار بګټئ وائے ؟ "

په حقیقت کښې سنګ پارس یو داسے ژوندے کردار دے - چه هغه په نورو ټولو کردارو نو باندے خور اوحاوی وی او د هغهٔ وړاندے نور ټول کردارونه ډیر چیت ښکاری - هغه د فیض طلب د کمزورو نه په ډیر نفسیاتی انداز

---

له دروغ دښتیا - خالق داد امید

ښته پ - ک ۲۸ - ۶ - ۱۳

کېنې فائدے پوره کوی - هغه وچ په موچه دځان نه یو بارسوخه او معوزیز سرے جوړ کړے وی - او فیض طلب له دا احساس ورکوی لکه چه دعلاقې ټول افسران دهغهٔ دوستان وی او دتعمیل تقاضے هرکار دهغهٔ په اشاره کیږی - او فیض طلب تر آخره دهغهٔ په ذات بانډے پوره یقین او عقیده ساتی -

دسنګ پارس سره دهغه بریڅ بادام کل هم دذکر وړکردار دے - بادام په ذرهٔ صفا او دیوے لارے بنده وی - او دچل بادار سنګ پارس دچالاکئ او موقع پرست ذهنیت نه په ذرهٔ ذرهٔ کښې کرکه کوی - خو هیڅ وس ئے پرے نهٔ رسی - بادام دچل نایټک دټولو چالاکو نه خبر وی او چپله ئے دا حال وی چه په خیره بوږنږهٔ نهٔ اچوی او سنګ پارس مخ په مخ او تک په تک په ټوقو ټوقو کښې په موقع موقع ټوکی هم - دبادام تکیه کلام " بچ پکښې وایه " په حقیقت کښې دسنګ پارس دبے بنیاده لافو شافو او دهغهٔ دچل ولی خبرو مخ نیوے کوی - دهغهٔ بے باکه لهجه دسنګ پارس په کردار بانډے په قدم قدم دتنقید او محاسبے کار کوی -

" سنګ پارس - بره هغه خانه خراب چرته تړک نهٔ وی وهلے!
فیض طلب یادوم -
بادام - ایله به دغمونو نه بے غمه شی -
سنګ پارس - چل غم ژاړه خانه خرابه -
بادام - چه سر سلامت وی نو ټوپئ ډیرے نایټکه -

---

ئه دروغ دبڼتیا - خالقداد امید
ت - ک ۱۹۷۸-۵-۲۷

د فیض طلب نه شمروزے شو - دشمروزی نه کمالے شو

لا مخکښے دِ خدائے خیر کړی -

سنګ پارس - بادامه - دخپل څادرنه پښے مهٔ اوباسه ګنی

دادرته وایم چه په تشه ډوډۍ شل تیارخوارهٔ خوبه درله

راولم -

بادام - بچ پکښے وایه ..... سرے درته دښتیاوښا

هرو کوے نهٔ شی - "

په دروغ دښتیا کښے دکردارونو په دے تکون دټوے سلسلے

اداکاره جوړه وی - او په دے تکون کښے هره یوه منلع خپل اهمیت لری - د

فیض طلب کردار د بناغلی خالقداد امید خپل طبعزاد کردار دے - خو دسنګ پارس

اوبادام ګل جوړئ هم دټیلی وژن د یوے مشهورے اردو مزاحیه سلسلے

"الف - نون" د "الن" او "ننها" دکردارونو پښتو عکس ښکاری - دا تاثر

هم کیدے شی او توارد هم - خو دکردارونو ددغه نزدے مشابهت نه علاوه

د "دروغ دښتیا" سلسلے واقعات ، پلاټ اوچاپیرچل باندے دهیڅ قسمه

بهرنو اثراتو چاپه نهٔ ښکاری - دا یوه خوندناکه اوسودمنه مزاحیه سلسله

وه چه تر ډیرے مودے پورے دخپلو مخصوصو کردارونو په برکت دټیلی ویژن

په پرده اوځلیدله -

په دے کښے شک نشته چه په موجوده دور کښے ټیلی وژن دډرامے په لړکښے د

پښتو ادب لوئے خدمت ترسره کوی - په دے ډرامو او ډرامائی سلسلو کښے دژوندو

او حقیقی کردارونو سره ددوان ژوند دمسئلو احساس دماحولی غوښتنو ادراک، اود

زمانے دشعور آواز هم شامل وی -

―― ..... ――

# BIBLIOGRAPHY

1. AN INTRODUCTION TO THE STUDY OF LITERATURE
*William Henry Hudson*
Morrison & Gibb Ltd., London & Edinburgh 1970.

2. A SHORT HISTORY OF ENGLISH LITERATURE
*Sir Ifor Evans.*
Hunt, Barnard & Co., Ltd., Aylesbury, Great Britain 1963.

3. ASPECTS OF THE NOVEL
*E. M. Forester*
Hazell Watson & Viney Ltd., Aylesbury, Great Britain 1974.

4. THE ENCYCLOPADIAN AMERICANA Vol. 6
New York - Chicago Americana Corporation
Printed and bounded by American Books Stratford Press
U.S.A. 1952.

5. THE FRONTIERS OF DRAMA
*Una Ellis-Feror*
Methuen & Co. Ltd., London
3rd Edition, 1948.

6. OXFORD JUNIOR ENCYCLOPAEDIA Vol. 5
London Geoffrey Cunberlege, 1949.
(Reprinted 1951)

7. THE PLAYWRIGHT'S ART
*Rogger. M. Busfield Jr.*

Harper & Brothers Publishers New York 1958.

8. PROBLEMS IN READING AND WRITING
*Henry W. Sams* and *Waldo F. Mcneir.*
Printice-Hall Inc. New York 1949.

9. SHAKESPEREAN TREGEDY
*A.C. Bradley*
Macmillan & Co. Ltd.
St. Martin's Street, London 1912.

10. STUDIES IN SHORT STORY
*Adrian Jaffe & Virgil Scott.*
William Sloane Associates - Inc.
Publishers New York 1949.

ACKU

# اردو

(۱۱) ادب کا تنقیدی جائزہ - ڈاکٹر سلام سندیلوی

مکتبہ میری لائبریری لاہور۔ استقلال پریس لاہور ۱۹۷۱ء

(۱۲) ادبی زاویے اکادمی ادبیات پاکستان اسلام آباد ۱۹۸۳ء

(۱۳) اردو ڈراما تاریخ و تنقید عشرت رحمانی

اردو مرکز لاہور - تعلیمی پریس لاہور ۱۹۵۷ء

(۱۴) اردو میں ڈرامانگاری

سید بادشاہ حسین حیدرآبادی

تاج بک ڈپو اردو بازار لاہور بار دوم ۱۹۵۰ء

(۱۵) بوطیقا عزیز احمد

کل پاکستان انجمن ترقی اردو کراچی - انجمن پریس لارنس روڈ کراچی

بار دوم ۱۹۶۱ء

(۱۶) توبۃ النصوح ڈپٹی مولوی نذیر احمد

مدینہ پبلشنگ کمپنی بندر روڈ کراچی ن م

(۱۷) داستان سے افسانے تک سید وقار عظیم

اردو اکیڈمی سندھ کراچی - مشہور پریس کراچی ۱۹۶۰ء

(۱۸) ڈرامہ نگاری کا فن پروفیسر محمد اسلم قریشی

زرین آرٹ پریس لاہور ۱۹۶۳ء

(۱۹) روایت اور بغاوت سید احتشام حسین ایم۔اے

ادارہ اشاعت اردو حیدرآباد دکن - رزاقی پریس لاہور ۱۹۵۷ء

ACKU

(۲۰) فن افسانہ نگاری — سید وقار عظیم

ناظر پرنٹنگ پریس کراچی ۱۹۶۹ء

(۲۱) مراۃ العروس — ڈپٹی مولوی نذیر احمد

عشرت پبلشنگ هاؤس انارکلی لاهور۔ مطبوعه

نامی پریس پیسه اخبار لاهور

(۲۲) ناول نگاری — ڈاکٹر سہیل بخاری

مکتبه میری لائبریری لاهور - حمایت اسلام پریس لاهور ۱۹۶۶ء

(۲۳) ناول کی تاریخ اوتنقید — علی عباس حسینی

لاهور اکیڈمی لاهور - مشهور پریس لاهور ۱۹۶۷ء

(۲۴) ناول کیا ہے — ڈاکٹر محمد احسن فاروقی - ڈاکٹر نورالحسن هاشمی

عالمگیر الیکٹرک پریس لاهور - اردو اکادمی لاهور ۱۹۶۴ء

(۲۵) همارى داستانیں — سید وقار عظیم

اداره فروغ اردو لاهور

(۲۶) ماهنامه عالمگیر لاهور

افسانه نمبر ۱۹۴۴ء

(۲۷) ماهنامه قند مردان

اردو ڈراما نمبر ۱۹۷۶

## پښتو

(۲۸) ادم درخانئ — صدر خان خټک

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

پبلک ارټ پریس پېښور ۱۹۶۰

(۲۹) ادم درخانئ دیوه څېړنه — پروفیسر محمد نواز طائر
پښتو اکېډېمي پېښور یونیورسټي - غني پرنټرز پېښور
سنه ۱۹۸۱ء

(۳۰) امانت — شیر زمان غمژن
اشرف نیوز ایجنسي پي پېښور ۱۹۷۱ء

(۳۱) انګازے — ارباب رشید احمد خان
شاهین پرنټنګ پریس پېښور

(۳۲) اُور او اُوبهٔ — ایس - اے رحمان کاکاخیل
یونیورسټي بک ایجنسي پېښور ۱۹۶۰ء

(۳۳) بي بي نوره — سید تکریم الحق کاکاخیل (روغ لیونے)
رحمان نیوز ایجنسي پېښور
پبلک آرټ پریس پېښور

(۳۴) پانړے پانړے — طاهر اش آفریدی
عظیم پبلشنګ هاؤس پېښور
غني سنز پرنټرز پېښور ۱۹۷۶ء

(۳۵) پت — میر مهدی شاه مهدی
یونیورسټي بک ایجنسي پېښور
پبلک آرټ پریس پېښور ۱۹۵۹ء

(۳۶) پښتنې — سمندر خان سمندر
یونیورسټي بک ایجنسي پېښور ۱۹۵۹ء

(۳۷) پښتو افسانه (تحقیق او تنقید) محمد اعظم اعظم

عظیم پبلشنګ هاوس پېښور

منظور عام پریس پېښور ۱۹۷۶ء

(۳۸) پلوشے نادر خان بزمی

بزم ادب پښتو اکوړه خټک

(۳۹) پېغله صاحبزاده محمد ادریس

عظیم پبلشنګ هاوس پېښور

پبلک آرټ پریس پېښور دوېم ځل ۱۹۸۵ء

(۴۰) تربور (عرف زیبا) ایس اے رحمان کاکاخیل

یونیورسټی بک ایجنسی پېښور

خورشید عالم پریس ریلوے روډ لاهور ۱۹۶۱ء

(۴۱) جونګړه (دمظلوم دنیا) عبدالاکبرخان اکبر

(۴۲) چارګل همیش خلیل

دارالتصنیف پېښور - منظور عام پریس پېښور ۸۳ ۱۹ء

(۴۳) څولۍ ګلونه ماسټر عبدالکریم

اداره سیر پېښور ۱۹۵۷ء

(۴۴) خودکشي میاں سید رسول رسا

یونیورسټي بک ایجنسي پېښور - حمایت اسلام پریس لاهور ۱۹۷۲ء

(۴۵) خوږ ژوندون عبدالخالق خلیق

اداره اشاعت سرحد پېښور دویم چاپ) ۱۹۶۴ء

ACKU

(۴۶) داغونه — ملک افضل خان
ادارہ فروغ تعلیم پېښور

(۴۷) دیوډې تال — میرمهدی شاه مهدی
دعبر د مجلې اداره - منظورعام پریس پېښور ۱۹۵۸ء

(۴۸) د پښتو داد ب تاریخ — صدیق الله رښتین
کابل عمومی مطبع - ۱۳۲۵ش

(۴۹) د خپس ادب — مراد شنواری
منظورعام پریس پېښور ۱۹۵۸ء

(۵۰) درس عبرت — عبدالله جان اسیر
یونیورسټی بک ایجنسی پېښور
منظورعام پریس پېښور ۱۹۵۶ء

(۵۱) دراحت افسانې — سید راحت زاخیلی - مرتب افضل رضا
پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي -
سپین زر پرنټرز پېښور

(۵۲) دړوند دوزخ — میان سید رسول رسا
مکتبه شاهین پېښور - شاهین پریس پېښور ۱۹۷۳ء

(۵۳) دے اوښکې — صدرخان خټک - مقدمه خیال بخاری
پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

(۵۴) د ملونو خواګې — طاهر اثر افریدے
شاهین برقي پریس پېښور ۱۹۷۱ء

ACKU

(۵۵) درے ننگیالی محمد عظیم افریدی

حمیدیه پریس پیښور ۱۹۷۳ء

(۵۶) د قصه خوانۍ گپ منشی احمد جان

بهاری لال بک سیلرز اینډ ستېشنرز پیښور ۱۹۳۰ء

(۵۷) دوېنو جام محمد اسلم خټک

فیروز سنز لمیټډ لاهور (نوے ایډیشن)

(۵۸) ډرامه پروفیسر محمد افضل رضاؔ

عظیم پبلشنگ هاؤس پیښور

پبلک ارټ پریس پیښور (دویم چاپ) ۱۹۸۵ء

(۵۹) رحمان کورونه شیر زمان غمژن

حمیدیه پریس پیښور ۱۹۷۴ء

(۶۰) رستم او سهراب اغا حشر کشمیری مترجم محمد افضل رضاؔ

یونیورسټي بک ایجنسی پیښور

نیو ایګل سټار پریس پیښور ۱۹۷۲ء

(۶۱) رنګا رنګ ګلونه میاں سید رسول رساؔ

ضیاء آرټ پریس پیښور

(۶۲) زړګے سترګے اشرف درانی

یونیورسټي بک ایجنسی پیښور۔ نظام پرنټنګ پریس پیښور ۱۹۵۷ء

(۶۳) ژوند ی غمونه زیتون بانو

مکتبهٔ اردو سنګ ظهیر اباد پیښور

شاهین پریس پیښور ۱۹۷۹ء

ACKU

(۶۴) دسرو تعویذ — رشید علی دهقان

یونیورسٹی بک ایجنسی پیښور ۱۹۵۸ء

(۶۵) شاهنامه بزبان افغانی — مولوی نعمت الله

حاجی عبدالخالق پیښور ۱۹۴۹ء

(۶۶) شمټی — میاں سید رسول رسا

یونیورسټي بک ایجنسي پیښور۔ منظورعام پریس پیښور

(۶۷) شنډی ګل — اشراف حسین احمد

نیا مکتبه محله خداداد پیښور

پبلک ارټ پریس پیښور

(۶۸) شهزاده بهرام او ګل اندامه — فیاض

پښتو اکیډیمی پیښور یونیورسټي ۱۹۶۸ء

(۶۹) شهیده سکینه — عبدالخالق خلیق

اداره اشاعت سرحد پیښور

منظورعام پریس پیښور (دویم ایډیشن) ۱۹۵۵ء

(۷۰) شیرینۍ فرهاد — مولوی نعمت الله

میاں حاجی عبدالخالق پیښور ۱۹۵۹ء

(۷۱) ضرب کلیم (اقبال) — مترجم سید محمد تقویم الحق کاکاخیل

پښتو اکیډیمی پیښور برائے اقبال اکیډیمی کراچی ۱۹۶۸ء

(۷۲) طوطی نامه جدید — احمد جان

حاجی عبدالخالق پیښور

(۷۴) قصّه امیر حمزه احمد

میان حاجی عبدالخالق پیښور ۱۹۶۹ء

(۷۵) قصّه جلات محبوبه عبدالکریم

میان حاجی عبدالخالق پیښور

(۷۶) قصّه د جهان ارشهزاده احمدی صاحبزاده مرتب هیش خلیل

دارالتصنیف جهانګیر پوره پیښور ۱۹۷۱ء

(۷۷) قصّه د چنړی احمدجان

حاجی عبدالخالق پیښور

(۷۸) قصّه د درو تهکانو مولانا ولی محمد

حاجی عبدالخالق پیښور ۱۹۵۷ء

(۷۹) قصّه شاه وګدا عبدالحمید ماشوخیل

هند و پریس دهلی ۱۸۸۱ء

(۸۰) قصّه فتح خان قندهاری مولوی نعمت الله

حاجی عبدالخالق پیښور

(۸۱) قصّه ګنبه شهزادګۍ سید فاضل شاه بارکزی

مطبع یوسفی دهلی ۱۸۸۰ء

(۸۲) قصّه موسی خان ګل مکۍ مولوی نعمت الله

حاجی عبدالخالق پیښور ۱۹۶۹ء

(۸۳) قصّه یوسف خان شیربانو علی حیدر جوشی

حاجی عبدالخالق پیښور

(۸۴) کږے لارے — ګل افضل خان

ادارهٔ فروغ تعلیم پېښور

(۸۵) که آباسین راغلے نهٔ وے — حسن خان سوز

مجلس فکر و ادب مردان - کوثر پریس بنک روډ مردان

(۸۶) ګجرے — قلندر مومند

یونیورسټي بک ایجنسي پېښور ۱۹۵۸ء

(۸۷) ګل خان — شیر زمان غمژن

یونیورسټي بک ایجنسي پېښور - منظور عام پریس پېښور

(دویم چاپ)

(۸۸) ګل صنوبر — طالب رشید

پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي

(۸۹) لوګے او دنیا — حسن خان سوز

مکتبه ارژنګ پېښور - شاهین پرنټنګ پریس پېښور

(۹۰) مات ینګړی — زیتون بانو

(۹۱) مامونئ — میاں سید رسول رسا

یونیورسټي بک ایجنسي پېښور ۱۹۶۳ء

(۹۲) مجموعهٔ نظم هائے افغانی — مولانا عبد الرحیم

(قلمی نسخه) ق ۱۳۳ پښتو اکېډیمي لائبرېري

(۹۳) مفرور — میاں سید رسول رسا

یونیورسټي بک ایجنسي پېښور ۱۹۶۳ء

ACKU

(۹۴) ملی ھندارہ — محمد گل نوری

پښتو ټولنه عمومی مطبع ۱۳۲۵ ش

(۹۵) مورے او ښیښتے — اشراف حسین احمد

ادارہ ساھو یکونکی ۔ اول ځل کال ۱۹۶۳ ء

(۹۶) نشان — میر مھدی شاہ مھدی

ادارہ اشاعت سرحد پیښور ۔ پبلک آرټ پریس پیښور ۱۹۵۶ ء

(۹۷) نظمیات — قلندر مومند

عظیم پبلشنگ ھاؤس پیښور

سرحد الیکټرک پریس پیښور ۱۹۶۳ ء

(۹۸) نقش نګین — میاں حبیب گل کاکاخیل

انوار الاشاعت پیښور ۱۹۵۷ ء

(۹۹) نوے چپے — امیر حمزہ خان شنواری

یونیورسټی بک ایجنسی پیښور

اتحاد پریس بیل روډ لاھور ۱۹۵۷ ء

(۱۰۰) نوے روښتی — قاضی رحیم اللہ

یونیورسټی بک ایجنسی پیښور

منظور عام پریس پیښور ۱۹۵۸ ء

(۱۰۱) نوے کول — امیر محمد ساغر افریدی

نور محمد ځیگر افریدی

منظور عام پریس پیښور ۱۹۷۲ ء

ACKU

(۱۰۲) نیمګړے خوب ایس - اے رحمان

اداره اشاعت سرحد پیښور

منظورعام پریس پیښور ۱۹۶۲ء

(۱۰۳) هنداره ذیتون بانو

اداره اشاعت سرحد پیښور

سرحد ایلکټرک پریس پیښور کال ۱۹۵۸ء

## مجلے

(۱۰۴) افغان - مردان دسمبر ۱۹۲۶ء

۱۰۵ کلین پشاور یونیورسټي جنرل ۱۹۸۳ء - ۱۹۸۴ء

(۱۰۶) اووه ورځنے رهبر پیښور ستمبر ۱۹۵۶ء

(۱۰۷) قند مردان (پښتو) افسانه نمبر

(۱۰۸) قند مردان دډرامه نمبر ۱۹۶۰ء

(۱۰۹) قند مردان جلد ۳ ګنړه ۱ - ۲

(۱۱۰) قند مردان دویم دور ګنړه ۵

(۱۱۱) افغان پیښور - مختلف ګنړے -

(۱۱۲) میاشتینۍ اباسین کراچی مختلف ګنړے -

(۱۱۳) پښتو - دپښتو اکیډیمي پیښور یونیورسټي مختلف ګنړے -

## ریډیائی ډرامے مسودے

(۱۱۴) خوشحال خان خټک امیرحمزه خان شنواری

(۱۱۵) خان بهادر صیب امیرحمزه خان شنواری

ACKU




PROPERTY OF
ACKU
33452